بسم الله الرحمن الرحیم

# کتاب پېژندنه


| | |
|---|---|
| د کتاب نوم: | د پښتو ادب لرغوني دوره |
| لیکوال: | لومړی ټولګی |
| کتونکی: | پوهندوی محمد اسمعیل یون |
| خپرندوی: | یون کلتوري یون |
| د خپرندوی | |
| پرله پسي نومره: | ۳۲ |
| چاپشمېر: | ۱۰۰۰ ټوکه |
| چاپکال: | ۱۳۸۹ل کال |
| کمپوزر: | ضیاءالرحمن ضیاء |

# نيو ليک

## سریزه:

# د پښتو ادب د نیمې پېړۍ ادبي پېښنه

پوره پنځوس کاله یا نیمه پېړۍ کېږي چې (پښتو څانګه) د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي په چوکاټ کې د یوې ځانګړې څانګې په توګه فعالیت کوي، همدا سږ (۱۳۸۹ل) کال یې د خپلې پنځوسمې دورې فارغان ټولنې ته وړاندې کړل. دې څانګې ددې نیمې پېړۍ بهیر کې (دوه زره تنه) زیات و کم کادرونه ټولنې ته وړاندې کړي، چې له دې جملې څخه اکثرو یې د هېواد ژبې او فرهنګ ته نه هېرېدونکي خدمتونه کړي دي.

د پښتو څانګې هر فارغ د پوهنتوني اصولو له مخې د خپل فراغت په وروستي سمستر کې یو مونوګراف (پایلیک) لیکي. مونوګراف اکثره، علمي، تحقیقي او تحلیلي بڼه لري. په پښتو څانګه کې یو زیات شمېر فارغانو خپل دا وروستي کارونه په ښه ډول ترسره کړي دي. کوم مونوګرافونه چې په پښتو څانګه او د کابل پوهنتون په عامه کتابتون کې موجود دي، شمېر یې تر (پنځه سو) عنوانو اوړي، ددې مونوګرافونو ډېر کم شمېر (یوازې په شمار

ځو مونوګرافه) چاپ شوي، خو په دې کې داسې مونوګرافونه هم شته چې په بیا بیا چاپ ارزي. په (۱۳۷۲ل) کال ما (د ژبو او ادبیاتو پوهنځي د پنځوسو کلونو پښتو کتابښود) چاپ کړ او د هغه په ترڅ کې مې د ژبو او ادبیاتو پوهنځي ټول لیکل شوي او یا زما لاس ته راغلي مونوګرافونه په ترتیب سره معرفي کړل، زما هدف دا و چې یو خو دا پایلیکونه خلکو ته ور وپېژنم، بل د پښتو څانګې کړی کار څرګند کړم، د تکراري مونوګرافونو د لیکنې مخه ونیسم او ددې ترڅنګ د پښتو ادب مینوالو ته د ځینو هغو پایلیکونو څرک ولګوم چې د چاپ اړتیا یې احساسېږي او په چاپ ارزي.

تر هغه وروسته د پښتو څانګې هغو محصلینو، چې له ما سره یې مونوګرافونه نیولي، ما ورته اکثره نوې موضوعګانې ټاکلي چې تر پخوانو هغو یې بشپړ توپیر درلود او تر بشپړاوي وروسته یې ځینو د چاپ لاره هم خپله کړې ده. (یو کم شل کاله) کېږي چې زه په پښتو څانګه تدریس کوم، سره له دې چې ما د پښتو څانګې په بېلابېلو ټولګیو او ناپښتو څانګو دواړو کې تدریس کړی، خو زیاته هیله مې دا ده چې زه د پښتو څانګې په لومړي ټولګي کې تدریس وکړم، علت یې دادی چې نوي محصلین له نوې روحیې سره راځي، که د دوی هیلې په پیل کې مړاوې شي، نو د تحصیل په بهیر او تر هغه وروسته دوی د خپلې ودې او شخصیت جوړونې یوه پاموړ برخه انرژي له لاسه ورکوي. د تېرو لسو کلونو په بهیر کې زه اکثره پر همدې لومړیو ټولګیو درس لرم، د درس په پیل کې زما هیله همدا وي چې د دوی هیلې او ټولنیز شعور وده وکړي، د لیکوالۍ

او شاعرۍ مهارتونه زده کړي، د جرئت وزرونه یې وغوړېږي او لکه د طالبانو په څېر د نطق او منطق په وسله سمبال شي، دا مې هم ورته ویلي چې پښتو ژبه کې مادي امتیاز نه شته، خو ستاسو شخصیت په کې جوړېږي، خو دې کې هم شک نه شته که څوک د بل هر مسلک په شان په دې مسلک کې هم ځان ورسوي، نو د لوی خدای(ج) په فضل به په دې مسلک کې هم د ډوډۍ خاوند شي. پښتو ژبې، ملي فرهنګ او ملي هویت ته کار کول پولادي هوډ غواړي، نو که غواړئ چې ځان دنیاوالو سره سیال کړئ، د مایوسۍ او نهیلۍ یوې څپې ته به هم په زړه کې ځای نه ورکوئ. په پښتني چاپېریال کې مې د شخصیت جوړېدنې پر ستونزو او د ادبي هلو ځلو پر وړاندې د پرتو خنډونو او حل لارو په باب هم ورسره خبرې کړي، د دوی دلایل مې هم اورېدلي او په ګډه مو د ستونزو حل لارې هم پیدا کړې دي. ډېر کوښښ مې کړی چې د استاد او شاګرد ترمنځ د وهم کوم حد او برید چې دی هغه له منځه لاړ شي او ځای یې صمیمیت او انډیوالي ونیسي، خو د دې ترڅنګ مې ډېره هڅه کړې چې د زده کوونکو طبیعي استعداد په طبیعي ډول وده وکړي او د چا حقوق تلف نه شي. د معمول په څېر مې د سږ کال د لومړي ټولګي په لومړي سمسټر کې دوی ته داسې کورنۍ دندې یا سیمینارونه وسپارل چې دوی پرې لیکنې وکړي او بیا دا لیکنې د خپلو ټولګیوالو مخې ته ولولي او د هغوی پوښتنو ته ځوابونه هم ووایي. دا پروسه که څه هم ټکنۍ وه، خو پر ټولو تطبیق شوه، دې سره د دوی جرئت یو څه زیات شو. زه پر دې پوهېدلم چې دوی د لومړي ځل لپاره د ګڼو مخاطبینو په مخ کې ودرېږي، د هغوی

پوښتنې ځوابوي، نو څومره رواني فشار به زغمي، خو دا بهير ورځ پر ورځ ښه کېده. د دوی هغه ليکنې يوازې د ټولګي په کچه وې، خو ځينې په کې داسې هم وې چې په چاپ ارزېدلې. د همدې ټولګي په دويم سمستر کې مې ورته وويل: ((کوښښ به کوو چې رسمي درس ژر خلاص کړو او تاسو پوره وخت ولرئ چې خپل سيمينارونه برابر کړئ.)) تر امتحانونو يوه مياشت دمخه مو د کريکولم مطابق رسمي درس ختم کړ، دوی ته مې د پښتو ادب د لرغوني ادبي دورې په باب شپږ پنځوس بېلابېلې موضوعګانې وټاکلې، هر محصل ته مو يوه موضوع غوره کړه او ورته ومې ويل چې په دوو اوونيو کې درنه د يادې موضوع بشپړاوی غواړم. د پښتو ادب د لرغوني دورې په باب بېلابېل اثار ليکل شوي، خو ما چې کوم اثر عملاً تدريساوه هغه (د پښتو ادب لرغونې او منځنۍ دوره) د ښاغلي سرمحقق زلمي هېوادمل اثر دی چې لرغوني دوره يې په ښه منظم او سيستماتيک ډول تشريح کړې او د يوه ښه تدريسي اثر په توګه ورڅخه پوره ګټه پورته کېدی شي. څرنګه چې محصلين له لرغوني دورې سره اشنا شوي وو، نو ما هم د دوی د عملي تحقيق او تحليل لپاره په بشپړ ډول همدا دوره وټاکله او د دې دورې د بېلابېلو اړخونو لپاره مې شپږ پنځوس موضوعګانې ورته غوره کړې، دا ټينګار مې هم پرې وکړ چې که چا کورنۍ دنده پوره نه کړه ازموينه ترې نه اخلم. ځينو د يوې اوونۍ، ځينو د دوو اوونيو او ځينو ان د کلنيو ازموينو تر وروستي وخته پورې خپلې دا کورنۍ دندې پوره کړې، ما يې هم د هرې ليکنې له رارسېدو سره سم پر کمپوز پيل وکړ، ګران ورور ضياءالرحمن ضياء دې کور ودان

وي، دواړو ورته دفتري کارونه خوشې کړل او د عوامو په اصطلاح همدې کار ته اړم شو. ده کمپوزول، ما ايډېټ کول، د دويم ايډېټ لپاره مې د پښتو څانګې فارغ التحصيل ښاغلي مجيب الرحمن اميري ته ورکړل، هغه هم وکتل، درېيم سمون بيا ما وکړ، د تېرېس د کتنې لپاره مې ګران ورور وفاالرحمن وفا ته ورکړ، د هغه له خوا په ګوته شوې تېروتنې مو بيا سمې کړې او نور نو کتاب د چاپ مزل پيل کړ. په پای کې همدا اثر چې ستاسو په لاس کې دی، ترې جوړ شو.

دې کې شک نه شته چې په دې اثر کې څه ناڅه خامۍ او نيمګړتياوې ليدل کېږي، خو ګټې او برياوې يې تر خاميو او نيمګړتياوو ډېرې دي، ځينې مقالې په کې خورا پخې دي او د تحصيل د لومړي کال په بهير کې د داسې ليکنو ليکل سړي ته دا هيلې په زړه کې روزي چې په نږۍ کې هېڅ داسې طاقت ددې وس نه لري چې زموږ ملت او ژبه د ژوند له بهيره او د تاريخ له حافظې څخه وباسي. څومره بختور وي هغه سړی چې د يوه کال په بهير کې په خپل لاس د ايښودل شويو نهالګيو مېوه او ثمر ترلاسه کړي، تراوسه پورې به داسې کم مالياران پيدا شوي وي چې بڼ يې په يوه کال کې ثمر ته ورسي، زه څان د لوی خدای(ج) له درباره ډېر مشکور ګڼم؛ داسې دنده يې راوسپارله چې په يوه کال کې مې مېوه ترې ترلاسه کړه.

زه بيا هم وايم چې زما د دې ګرانو محصلينو په ځينو ليکنو کې نيمګړتياوې شته، لکه د اخځونو ناسمه ليکنه، د مخونو نه يادونه، له ځينو اثارو کټ مټ را اخيستنه، په ځينو برخو کې د

لیکنو ورته والی، څه ناڅه موضوعي تداخل او ځینو ځایونو کې ځنګزني ښېړنه او ځینې نورې دا ډول نیمګړتیاوې، خو زه وایم چې دا ډول یو اثر له همدې ډول طبیعي نیمګړتیاوو سره خوند کوي؛ ما قصداً ونه غوښتل چې د دوی دا ډول تېروتنې چې طبیعي بڼه لري، په وچ زور سمې کړم، البته ځینې لیکنې مې چې محتوایي ربط یې خطا شوی او لیکنه له خپل مسیره وتله، هغه مې سمې کړي؛ ځینې جملې مې حذف کړي او ځینې نورې مې ورسره تړلي او دا په دې نېت چې ډېرې محتوایي تېروتنې ونه شي. ځینې لیکنې دومره خوږې دي چې که د محصل نوم ترې حذف کړې، نو فکر به وکړې چې ډېرو پخو ښېړونکو لیکلي دي. ددې ټولګې ښه والی په دې کې دی چې په دې لیکنو کې د تحقیق له بېلابېلو اصولو کار اخیستل شوی، هم د ساحوي تحقیق بېلګې په کې شته، هم د کتابتوني او هم د عملي او تحلیلي تحقیق ټول ډولونه رانغاړي.

زه چې اوس دا لیکنه کوم نو په سترګو کې مې له ډېرې خوښۍ اوښکې ګرځي، محصلین او زده کوونکي سړي ته د خپل اولاد په څېر وي، زه چې کله په ټولګي کې د دوی پر وړاندې ولاړ یم، نو فکر کوم چې (هیلې، سمسور، سولې او ودان) ته درس ورکوم، د دوی دا لیکنې چې ګورم نو هم فکر کوم چې زما خپلو اولادونو لیکلي؛ دومره خوند ترې اخلم. که د محصلی د تدریس زماني حدود او زما خپلې ټولنیزې، فرهنګي او سیاسي بوختیاوې نه وای، نو پوره یقین لرم چې دا اثر تر دې هم ښه ایه کېدی شو، خو اوس هم چې ورته ګورې د داسې یوه ډله ییز تحقیق او تحلیل مجموعه ده چې افغانستان کې یې تر اوسه بېلګه نه ده لیدل شوې.

دا اثر که څه هم یو تدریسي کتاب نه دی، خو د پښتو ادب د لرغوني دورې په باب د یوه ښه مرستندوی تدریسي اثر په توګه کار ورکولای شي، ان که د ژبو او ادبیاتو پوهنځي د پښتو ادبیاتو د لرغوني دورې کوم مدرس، د لرغوني دورې په باب کوم ښه اثر ونه لري، نو له دې اثر څخه د یوه تدریسي اثر په توګه هم کار اخیستلای شي. زه نه غواړم د دې اثر په باب زیاتې څرګندونې وکړم، ځکه خپله اثر ستاسو مخې ته پروت دی. دا چې دا اثر مې (د پښتو ادب د نیمې پېړۍ ادبي پېښنه) بللې، دلیل یې دادی چې ددې زماني واټن په بهیر کې داسې یو اثر نه و رامنځته شوی، چې د نظري تدریس او عملي تحقیق د امتزاج په بهیر کې دې راټوکېدلی وي؛ دا کار د پښتو ځانګې په ټول عمر او نه هم تر هغې بهر ترسره شوی و، خدای(ج) دې وکړي چې زموږ د ځوان ادبي پښت له خوا نور هم دا ډول نوښتونه رامنځته شي. په پای کې غواړم یادونه وکړم چې دا اثر لس لس ټوکه له (سي ډي) سره د محصلینو په واک کې ورکول کېږي، د انټرنېټ په څپو کې به هم د مطالعې وړ وي او د افغانستان په بېلابېلو پوهنتونو کې د ادبیاتو پوهنځیو پښتو ځانګو ته به هم رسول کېږي.

د لغمان ولایت له قدرمن والي ښاغلي محمد اقبال عزیزي څخه هم ډېره مننه کوم چې زما له وینا پرته یې په ورین تندي د کتاب د چاپ لګښت ومانه، داسې وخت به راشي چې د عزیزي صیب د ولایت مقام به پاتې نه وي، خو دا خدمت به یې پاتې وي. له خپلو ګرانو ورونو وفاالرحمن وفا او ضیاءالرحمن ضیاء څخه چې اوس مهال زما د فرهنګي کارونو دوه متې دي، هم ډېره مننه کوم چې په

دې لنډ او تنګ وخت کې يې ددې اثر په کمپوز او ايډيټ کې خپله ونډه واخيسته او همدارنګه له ګران ورور مجيب الرحمن اميري څخه د هغه د سمون له امله ډېره مننه، ګرانو او خوږو محصلينو ته مبارکي او کورنيو ته يې کور ودانی وايم، هيله لرم ټول د پښتو د بډاينې او ملي فرهنګ د غوړونې لپاره همداسې يو بل ته لاسونه سره ورکړو.

په فرهنګي مينه او درناوي
پوهندوی محمد اسمعيل يون
ارګ- د جمهوري رياست ماڼۍ
۱۳۸۹ل کال د جدي ۲مه نېټه

# د پښتو لرغوني ادبي دورې کرونولوژي



۱- د لوی داریوش د اریانا پاچا پر وخت (۵۲۲ق.م) څخه تر (۴۸۲ق.م) د بېستون په غره کې یوه اخلاقي حماسه رامنځته شوه.
۲- پر (۱۳۹هـ.ق) د غور په مندېش کې د امیر کروړ پاچا کېدل.
۳- پر (۱۲۳هـ.ق) کال د لویکانو د کورنۍ یو بیت د پښتو ادب ته راوړل.
۴- (۱۵۴هـ.ق) د امیر کروړ وفات او د پښتو لومړنی شعر رامنځته کېدل.
۵- د (۲۲۳هـ.ق- ۲۹۷هـ.ق) کلونو حدودو کې د ابو محمدهاشم ابن زید السرواني د ژوند دوره او له عربي ژبې څخه پښتو ته لومړۍ منظومه ژباړه.
۶- (۳۵۰هـ.ق- ۴۰۰هـ.ق) کال د شیخ رضي او نصر لودي پاړکي.
۷- پر (۳۵۰هـ.ق) کال د بېټ نیکه مناجات.
۸- (۴۱۱هـ.ق) کال حدود د اسماعیل د ژوند دوره او پښتو ادب ته د لومړیو ځلوریزو راتګ او (۴۰۰هـ.ق) کال حدود د خرښبون د

ژوند دوره او پښتو ادب ته د نورو خلوریزو راتګ او پر (۴۱۱هـ.ق)
کال د خرښبون مړینه.
۹- (۴۲۵هـ.ق) کال حدود د شیخ اسعد سوري د ژوند دوره او پښتو
ادب ته د قصیدې راتګ.
۱۰- (۵۵۰هـ.ق) کال حدود د شیخ تیمن کاکړ د ژوند دوره او
پښتو ته د یو بل شعر راتګ.
۱۱- د (۵۸۰هـ.ق) په شاوخوا کې د ښکارندوی غوري د ژوند دوره
او پښتو ته د یوې شاهکارې قصیدې راتګ.
۱۲- د (۵۸۰هـ.ق) په شاوخوا کې د ملکیار غرشین د ژوند دوره او
پښتو ادب کې د یو پارکي ویل.
۱۳- د (۵۸۰هـ.ق) په شاوخوا کې د تایمني د ژوند دوره او د
تایمني شعر د سلطان غیاث الدین په ستاینه کې.
۱۴- (۶۰۰هـ.ق) کال حدودو کې د قطب الدین بختیار کاکړ د
ژوند دوره او پښتو کې د قطب الدین سندره.
۱۵- له (۶۸۸- ۶۳۳هـ.ق) کال پورې د شیخ متي د ژوند دوره او
دده کتاب (د خدای مینه) او دده شعر.
۱۶- له (۶۲۱-۷۴۰هـ.ق) کال پورې د باباهوتک د ژوند دوره او د
مغولو په مقابل کې دده شعر.
۱۷- د (۷۴۷هـ.ق) حدودو کې د شیخ ملکیار هوتک د ژوند دوره
او دده اشعار.
۱۸- د (۷۸۰هـ.ق) کال په شاوخوا کې د اکبر زمینداوري د ژوند
دوره او پښتو ته د لومړي غزل او مثنوي راتګ.

۱۹- له (۸۹۴-۸۵۵هـ.ق) کال پورې د سلطان بهلول لودي د ژوند دوره او د هغه رباعي د خلیل نیازي په مقابل کې او د (۸۹۰هـ.ق) کال په شاوخوا کې د خلیل نیازي د ژوند دوره او د هغه رباعي د سلطان بهلول د رباعي په ځواب کې.

۲۰- د (۸۹۰هـ.ق) کال په شاوخوا کې د زرغون خان نورزي د ژوند دوره او دده دېوان او د ساقي نامې شعر.

۲۱- (۹۰۰هـ.ق) کال حدودو کې د زرغونې کاکړ د ژوند دوره او پښتو ته د سعدي د بوستان ژباړه.

۲۲- د (۹۰۰هـ.ق) کال په شاوخوا کې د شیخ عیسی مشواڼي د ژوند دوره او دده یو شعر.

۲۳- د (۹۲۰هـ.ق) کال په شاوخوا کې د رابعې د ژوند دوره او ددې دېوان او رباعي.

۲۴- (۹۲۰هـ.ق) کال حدودو کې د دوست محمد کاکړ د ژوند دوره او د هغه کتاب (غرغښت نامه).

۲۵- د (۹۲۰هـ.ق) کال په شاوخوا کې د شیخ بستان بړیڅ د ژوند دوره او دده د کتاب نوم (بستان الاولیا) او دده یو شعر.

۲۶- علي سرور لودي د (۹۲۰هـ.ق) کال حدود د ژوند دوره او د کتاب نوم یې (تحفة صالح) او دده غزل.

۲۷- د (۹۲۰هـ.ق) کال حدود د مېرمن نېکبختې د ژوند دوره، ددې کتاب (ارشاد الفقرا) او ددې د نصیحت شعر.

۲۸- د (۱۰۰۰هـ) کال حدود د شیخ محمد صالح الکوزي د ژوند دوره او دده غزل.

# د پښتو لرغوني ادب د کميت او کمښت علتونه



د پښتو ادبي تاريخ لومړۍ دوره له دويمې هجري پېړۍ څخه پيلېږي او د يوولسمې هجري پېړۍ تر اوايلو پورې دوام کوي. د پښتو کوم اثار چې په لومړۍ ادبي دورې پورې اړه لري، د کميت له پلوه ډېر نه دي او د هر شاعر او ليکوال محدودې شعري نمونې تر موږه رارسېدلې دي. ددې دورې ډېرو شاعرانو او ليکوالو د کتابونو نومونه موږ ته ښکاره دي، خو زياتره دا کتابونه او ديوانونه اوس ورک دي.

د پښتو ادب د لومړۍ دورې په اثارو کې يوازې د سليمان ماکو د تذکرة الاوليا د بشپړ کتاب ځينې برخې موږ ته رارسېدلې دي. په عمومي ډول د پښتو د ادبي تاريخ د لومړۍ دورې اثار بېلابېل اثار دي. که څه هم د پښتو د لومړۍ دورې اثار د کيفيت له پلوه ډېر لوړ ارزيابي کېدلای شي، خو د کميت له پلوه ډېر کم دي. دا چې ولې د لومړۍ دورې اثار د کميت له پلوه له کمښت سره مواجع شوي او څه علتونه لري، چې دا اثار موږ ته په پوره ډول نه دي رارسېدلي، کوم

مهم مسایل د دې لامل شوي دي چې د غه اثار له منځه تللي؟ غـواړم هغو ته نغوته وکړم:

۱ - افغانـان د اسـلامي عصـر پـه بېلابېلـو پېړيـو کـې د پرديـو تـر يرغلونو لاندې راغلي دي، په دغو يرغلونـو کـې چـې چـا د پرديـو پـه مقابل کې زيات مقاومت کړی دی، هومره ضررونه هم ورتـه زيـات متوجې شوي او ټولې مادي او معنوي شتمنۍ يـې لـه خـاورو سـره خـاورې شـوې دي. پښـتانه د عربـو لـه حملـو نيـولې بيـا د چنګېـز، تېمـور او نـادر افشـار او نـورو يرغلګـرو تـر مسـتقيمو حملـو لانـدې راغلي دي او ډېر زيانونـه يـې ګاللي، چـې د دغـو يرغلونـو پـه بهيـر کې دغه اثار په جګړو او يا هم په قصدي توګه د يرغلګرو له خوا لـه منځه تللي دي.

د مغولـو تـر تـاړاک او چپـاول دمخـه تـر (۲۰۰ هـ.ق) پخـوا د پښـتو ژبې ادبي مرکزونه غور، هلمند، ارغنداو او د ترنګ ورشوګانې وې چـې دغــه ادبـي مرکزونـه د مغولـو خونخـوارو لښـکرو وران او د مدنيت يوه بېلګه يې هم په کې پرېنښـوده، داسې ښکاري چې ډېر پښتو کتابونه او علمي اثار هم ورسره تباه او پوپناه شوي وي.

۲ - د پښتني ټولنې د پوهې د کچې ټيټوالی او لـه ورتـه پـوهنيزو چارو سره لېوالتيـا نـه درلـودل د دغـو اثـارو د نـه خوندیتوب باعـث ګرځېدلي دي.

۳ - د پښتون ولس له يو بله څخه د لرېوالي او نه اړيکو له کبله هـم کېدی شي د پښتو د لومړۍ دورې اثـار پـه بېلابېـل ډول پـاتې شـوي وي. بله دا چې ښايي پښتنو د مذهبي تعصبونو له پلوه لـه شـعر سـره ډېره مينه نه لرل او شاعرانو ته په درنه سترګه نـه کتـل او شـعر ويلـو

ته ګناه ویل هم ددې سبب ګرځېدلي وي چې دغه اثار يې له منځه وړي وي، چې ښه بېلګه يې د ښځو د اثارو نه موجوديت دی.

۴- د شرايطو د تنګوالي ( د چاپي وسايلو کموالي) له امله هم کېدی شي دغه اثار په ليکل شوې بڼه د ليکوال تر ليکنې محدود پاتې شوي وي.

۵- په مجموعي توګه ددغو اثارو ذخيره کېدو او د دې کتابونو د خونديتوب لپاره د ځای نشتوالی او دې کتابونو د ساتلو په طريقو د نه پوهېدلو، دغه اثار د بهرنيو د يرغلونو له وېرې بنايي په ځمکو يا دېوالونو کې ښخ کړای شوي وي او هغه اثار هماغسې ښخ پاتې وي او له خاورو سره خاورې شوي وي.

په دې ليکنه کې د پښتو ادبياتو تاريخ (لرغونې او منځنۍ دورې) څخه ګټه اخيستل شوې، خو ځينې دلايل ما له خپل فکره ليکلي دي.

# په پښتو لرغونو ادبیاتو کې عرفان او تصوف



د اوومې هجري پېړۍ په دوران کې عرفاني افکارو پښتو شعر او ادبیاتو ته لاره پیدا کړه او حضرت شیخ متي لومړی عرفاني شعر په پښتو کې لیکلی و.

د شیخ متي مناجات په پښتو ادبیاتو کې د عرفاني شعر بېلګه ده، تر دې وروسته بیا له اوومې پېړۍ نه تر لسمې هجري پېړۍ پورې مو‌ږ په خپلو لاسته راغلو پښتو متفرقه اثارو کې دغسې د عرفاني فکر لرونکي اثار نه لرو، خو په لسمه هجري پېړۍ کې موږ له افغانستان او پښتونخوا څخه لرې د هندوستان په سیمو کې چې کوم پښتانه اوسېدلي، درې پښتانه شاعران پېژنو چې درېواړه یې لوی صوفیان، عابدان او زاهدان وو او کوم اثار چې له دوی څخه پاتې دي د عرفاني افکارو بیانوونکي دي. نوموړي صوفیان؛ شیخ عیسی مشواڼی، شیخ بستان بړېڅ او شیخ علي سرور لودي دي.

## شیخ متي:

دا مشهور عارف او شاعر له پښتنو غوریاخېلو څخه دی چې دده لوی نیکه خرښبون هم د پښتو ادیب او شاعر و.

شیخ متي د عباس زوی و، عباس د عمر او عمر د خلیل زوی و.
خلیل د غوریا او غوریا د کند بن خربښبون زوی و.
شیخ متي پر (۲۲۳هـ) کال زېږېدلی او د (۲۵) کلونو په عمر د ترنک پر غاړه پر (۲۸۸هـ) کال وفات شوی دی. د شیخ متي کورنۍ په خلیلو غوریاخېلو کې خورا مشهوره ده، شیخ د پښتو یو خورا لوی صوفي او عرفاني شاعر دی. شیخ متي بابا د خپلې زمانې په فرهنګي حلقو کې د مسلطو فکري جریانونو تر اغېزې لاندې د خپل باطن او خپل ذهن د ضمیر او زړه د صفايي لپاره عرفان ته مخه وکړه او د خدای پېژندنې پر دې باریکه لار یې سفرونه وکړل. شیخ متي په زهد، تقوا او د عرفاني مدارجو په طی کولو سره دومره مشهور او محبوب شو چې د خلکو مرجع وه او د یوه ډېر ستر روحاني شخصیت په توګه یې د شیخ متي په نامه شهرت درلود.
شیخ متي د خپل عصر په تصوف واقف سړی و، دده شعر ثابتوي چې ده په عرفان او تصوف کې پاخه افکار درلودل او د پښتو د متصوفو شاعرانو امام ګڼل کېږي.
شیخ متي خپل اشعار په یوه مجموعه (د خدای مینه) کې کښلي وو. د (خدای مینه) یې د کلات د غونډان په سیمې کې د خپلو اشعارو کتاب بشپړ کړ. د شیخ متي اشعار پر وحدة الشهود بناء دي چې د تصوف یوه طریقه ده.
دا هم د شیخ متي د شعر یوه برخه او دا یوه داسې نمونه ده چې د عرفاني او تصوفي شعر په دیباچه او پیل کې درېدلې.

پـــر لویـــو غـــرو هـــم پـــه دښـــتو کـــې
پـــه لـــوی ســـهار، پـــه نیمـــو شـــپو کـــې

پـــه غـــاړه ږغ او پـــه شـــپېلو کـــې
یـــاد ویرژلیـــو پـــه شـــپېلو کـــې
تـــول ســـتا د یـــاد نـــارې ســـورې دي
دا ســـــتا د مینـــــې تنـــــدارې دي

## شیخ عیسی مشوانی:

مشوانی د پښتنو یو ټبر دی، شیخ عیسی هم له دې ټبره د پښتو د منځنیو دورو شاعر دی، شیخ عیسی مشوانی د هندوستان په (داملهٔ) کې اوسېده او د هندوستان د افغان پاچا (شېرشاه سوري) معاصر و. دده د ژوندانه زمانه یا وخت تر (۹۰۰هـ) وروسته ټاکلای شو. شیخ عیسی په پښتو، پارسي او هندي ژبو یوه ګډه منظومه رساله لیکلې وه. شیخ عیسی د خدای(ج) په توحید کې په پښتو، پارسي او هندي ژبو ښه شعرونه ویلي دي.
د ده د شعر نمونه په مخزن افغاني کې راغلې چې درې بیتې دي.
دده له شعر څخه دا معلومېږي چې عیسی له پخو متصوفینو څخه و.
دا هم د شیخ عیسی د شعر نمونه:

پــه خپلــه کــار کــړې، خپلــه انکــار کــړې
کلــه بــادار یــې کلــه مــې خــوار کــړې
تـــه خـــو قـــادر یـــې! پـــه صـــفتونو
کلــه مــې نــور کــړې کلــه مــې نــار کــړې

«عیسی» حیران دی په دې شیونو
کله مې یار کړې کله اغیار کړې.

## شیخ بستان بړیڅ:

شیخ بستان د پښتنو له ادبي او روحاني مشاهیرو څخه دی. پلار یې د کندهار په ښوراوک کې اوسېده، د پلار نوم یې محمد اکرم و، شیخ بستان په ځوانۍ کې هند ته لاړ او ددغه هېواد په (سامانه) نومي ځای کې اوسېده. شیخ بستان د «بستان اولیا» په نامه یو کتاب هم لیکلی و چې له شور نه ډک او دده له عرفاني جمال سره برابر و. د مخزن افغاني مولف نعمت الله هروي د شیخ بستان ملګری و چې په بحري (سمندري) سفرونو کې ورسره یونیم کال پاتې شوی و.

شیخ بستان د (۱۰۰۲هـ.ق) کال د ربیع الثاني په دویمه نېټه د ګجرات په احمداباد کې وفات شو. د شعر نمونه یې داده:

د مینې اور دې زما زړګی وریت په انکار کړ نا
ښې تار و نار کړ نا
خود به ویلېږم چې مې زړه پر تا مفتون کړ نا
ځان مې زبون کړ نا
اوښکې مې څاڅي پر ګرېوان یو وار نظر که پرما
راسه ګذر که پرما

## شیخ علي سرور لودي:

علي سرور په قوم شاهدخېل لودي و. شیخ علي سرور د لسمې هجري پېړۍ په دوران کې د ملتان په (کهرور) نومې سیمه کې اوسېده او استاد حبیبي یې د ژوند زمانه د (۹۲۰هـ.ق) حدودو کې ټاکلې ده. په پټه خزانه کې د شیخ علي سرور لودي له اقوالو او غزلو معلومېږي چې شیخ په اسلامي تصوف کې د زیاتې مطالعې خاوند و او د لویو متصوفینو اثار یې لوستي وو. د شیخ عیسی علي سرور لودي د شعر نمونه په پټه خزانه کې راغلې. د پټې خزانې مولف د تحفة صالح په حواله دده یو صوفیانه غزل رانقلوي:

د غزل نمونه یې داده:

محبت پیاله مې نوش کړه په مجاز کې
د حق نور وینم په سترګو د ایاز کې
درست وطن راته دریاب شو بې دیدنه
دید مې نه شي مګر خدای مې سبب ساز کې

## شیخ محمد صالح اکوزی:

پر پورته یادو شویو دریواړو عارفو شاعرانو سربېره بل شاعر چې د کندهار په سیمو کې تېر شوی دی، هغه شیخ محمدصالح اکوزی نومېږي. دا شیخ د پټې خزانې په روایت د (جلدک) په سیمو کې اوسېده چې ډېر عالم او عابد سړی و. علامه حبیبي دده د ژوند زمانه د (۱۰۰۰هـ.ق) شاوخوا ټاکلې ده.

## د لرغوني ادبي دورې تصوفي ځانګړنې:

د لرغونې دورې د دغو صوفيانو ډېر منظوم او منثور اثار زموږ په واک کې نه شته، يوازې د پخوانيو مورخينو د ليکنو او د دوی د خپلو لږو اثارو له مخې دومره ويلای شو چې دغه کسان عارفان وو او له دغې پوهې خبر او پر دې لاره روان وو.

لکه څنګه چې پر دغه وخت يا مهال تصوف پښتو ادب ته نوی راننوتی و، نو لا ډېر پېچلی شوی نه و او نه يې د روښانيانو غوندې پېچلې او درنې تصوفي تجربې لرلې، چې پېچلې تصوفي اصطلاحات يې ورته کارولي وای. د دغه مهال تصوف او تصوفي ادب کله دومره ساده شي، چې که پټې خزانې او نورو اثارو د دغو صوفيانو ژوند پېښې راخيستې نه وای، ښايي چا صوفيان نه وای بللي او په دې توګه د لومړۍ دورې تصوف د رحمان بابا د تصوف غوندې فطري تصوف دی او له تکلف او سختو لغاتو او کلمو څخه پاک دی، ځکه چې پر دې مهال تصوف پښتو ادب ته نوی راننوتی او لا کوچنی و، نو د دويمې ادبي دورې د صوفيانه تجربو غوندې تجربې يې لا نه وې کړې، خو دې دورې خپل ادبي ارزښت ساتلی او تصوف يې په ښکلې، ساده او هنري ژبه راوړاندې کړی دی. بل موږ د دې دورې صوفيان د راوروسته صوفيانو په څېر په زغرده د وحدة- الشهود او وحدة الوجود پر ډلګيو نه شو وېشلای ځکه د شيخ متي له شعري بېلګې پرته نور تصوفي شعرونه دا رنګ او بوی نه لري او نه دومره ژور پرمختګ کولای شي.

# اخځونه

په دې لیکنه کې د اجمل ښکلي: ((تصوف او عرفان))، د پوهاند عبدالحی حبیبي: ((د پښتو ادبیاتو تاریخ)) او د سرمحقق زلمي هېوادمل ((د پښتو ادبیاتو تاریخ لرغوني او منځنۍ دوره)) له بېلابېلو مخونو څخه ګټه اخیستل شوې ده.

# د پښتو په لرغونې شاعرۍ کې د ځينو متروکو او پېچلو لغتونو ماناوې



په پښتو لرغونې شاعرۍ کې ځينې داسې لغتونه کارول شوي، چې اوس يا نه استعمالېږي يا په هغه مانا نه کارول کېږي او يا په لږ تغير سره کارول کېږي، په دې کې د لاندې شاعرانو د نظم لغتونه چې په پټه خزانه کې راوړل شوي دي، موجود دي:

۱- محمد هوتک- نثر
۲- بابا هوتک- نظم
۳- شيخ ملکيار- سندره
۴- شيخ خرښبون بابا- نارې
۵- شيخ اسماعيل سړبنی- نارې
۶- شيخ متي- شعر
۷- امير کروړ- شعر
۸- شيخ اسعد سوري- قصيده
۹- ښکارندوی غوري- قصيده
۱۰- ابو محمدهاشم سرواني- ژباړه
۱۱- شيخ تيمن بابا- شعر

۱۲ - شیخ بستان بړیڅ - بدله
۱۳ - شیخ رضي لودي - پاړکی
۱۴ - نصر لودي - پاړکی
۱۵ - شیخ عیسی مشوانی - شعر
۱۶ - سلطان بهلول لودي - رباعي
۱۷ - خلیل خان نیازی - رباعي
۱۸ - زرغون خان نورزی - مثنوي
۱۹ - دوست محمد کاکړ - نظم
۲۰ - شیخ محمدصالح - غزل
۲۱ - شیخ علي سرور لودي - غزل

چې په لاندې لغتلیک کې مانا شوي دي:

| ګڼه | لغات | مانا |
|---|---|---|
| ۱ | اوجاړ | خراب، ړنګ |
| ۲ | اودوم | علاج، چاره |
| ۳ | اتل | پهلوان |
| ۴ | اغېز | تاثیر، اثر |
| ۵ | ایواد | هېواد |
| ۶ | اوکوب | شان او شوکت |
| ۷ | اوڅار | مشهور |
| ۸ | اشلکونه | شعرونه |
| ۹ | ایلایي | اطاعت |
| ۱۰ | ایږ | کبنتیې |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۱ | استائی | استازی |
| ۱۲ | اپوته | اړول، تبدیل |
| ۱۳ | اخیسته | حمله، تیری |
| ۱۴ | اغلې | ښایسته |
| ۱۵ | بیارته | بېرته |
| ۱۲ | بربڼ | پورته باغ |
| ۱۷ | باړی | فایده غوښتل |
| ۱۸ | بېړۍ | زولنې |
| ۱۹ | بامي | د ګل نوم دی |
| ۲۰ | بریځر | غرمه |
| ۲۱ | برمل | ماسپښین |
| ۲۲ | بودتون | د بوتانو ځای |
| ۲۳ | بمبڼ | د هندوانو پیر |
| ۲۴ | بڼ | سیال، مقابل |
| ۲۵ | برغه | مقصد |
| ۲۲ | بامم | پالم، روزم |
| ۲۷ | برل | فتحه |
| ۲۸ | پاسوال | ساتونکی |
| ۲۹ | پرتمین | د عزت خاوند |
| ۳۰ | پلور | خرخول |
| ۳۱ | پنځ | پیدایښت، طبیعت |
| ۳۲ | پلن | پیاده |

| | | |
|---|---|---|
| ۳۳ | پېر | نوبت |
| ۳۴ | پلاز | تخت |
| ۳۵ | پاړکی | د شعر ټوټې |
| ۳۶ | پسولل | ګڼل، سمبالول |
| ۳۷ | پېرل | اخیستل |
| ۳۸ | تېرو | تجاوز، ظلم |
| ۳۹ | ترخ | بغل |
| ۴۰ | تون | ځای |
| ۴۱ | ترار | وارخطا |
| ۴۲ | تېرون | زیاتی |
| ۴۳ | ترې | پول |
| ۴۴ | ترمل | ماښام |
| ۴۵ | تاخون | د زړه غم |
| ۴۶ | ترپلل | تبنتېدل |
| ۴۷ | تورن | تهمتي |
| ۴۸ | ټیکاونه | راحت، ارام |
| ۴۹ | ټیکنه | عدالت، انصاف |
| ۵۰ | جنډې | ګلونه |
| ۵۱ | جوپه | قافله |
| ۵۲ | جاندم | دوزخ |
| ۵۳ | جاجي | فکر کوي |
| ۵۴ | چنډې | شاعر |

| | | |
|---|---|---|
| ۵۵ | چونې | بلبل |
| ۵۶ | څوری | د سفر توښه |
| ۵۷ | څوار | صبر |
| ۵۸ | څپان | څپه |
| ۵۹ | څنډونه | غاړې، څنډې |
| ۶۰ | څورنګ | زخمي |
| ۶۱ | ځری | استازی |
| ۶۲ | ځغلا | تېښته |
| ۶۳ | ځلا | برېښېدل |
| ۶۴ | خونول | شيندل، تيت |
| ۶۵ | خاتيځ | لمر خاته |
| ۶۶ | خړ | خاکي، بد |
| ۶۷ | ختې | جامې |
| ۶۸ | درمل | علاج، دارو |
| ۶۹ | دښنه | دښمنان |
| ۷۰ | روده | لاره |
| ۷۱ | رپ | رپېدل |
| ۷۲ | روغي | سلامتي |
| ۷۳ | رامشت | ساز او سرود |
| ۷۴ | رپي | رپېږي |
| ۷۵ | رغا | بېزاره |
| ۷۶ | رښتونه | رښتيا |

| | | |
|---|---|---|
| ۷۷ | ربل | پېرزوينه |
| ۷۸ | زمولوي | مړاوي کوي |
| ۷۹ | زړن | زړور |
| ۸۰ | زرغا | سمسور |
| ۸۱ | زغل | تبنتېدل |
| ۸۲ | زيارنه | زحمت |
| ۸۳ | ژوبلور | جنګيالي، عسکر |
| ۸۴ | ژوبلله | زخمي کېدل |
| ۸۵ | ژبور | تېز ژبی |
| ۸۶ | ژوبله | جنګ |
| ۸۷ | سوران | توپان |
| ۸۸ | سورې | فرياد او نارې |
| ۸۹ | سوان | ارامي، سهولت |
| ۹۰ | سوب | حاضر |
| ۹۱ | سوبمن | فاتح |
| ۹۲ | سخ | افرين |
| ۹۳ | سين | سيند |
| ۹۴ | سوځند | سوځوونکی |
| ۹۵ | سمي | سم |
| ۹۶ | سوبه | فتحه |
| ۹۷ | ستايوال | ستايونکی |
| ۹۸ | سکڼي | پرې کوي |

| | | |
|---|---|---|
| ۹۹ | سما | انصاف |
| ۱۰۰ | ستنه | اساس، تهداب، بېخ |
| ۱۰۱ | سوراړ | وچه دښته |
| ۱۰۲ | سار | ساری، مثل |
| ۱۰۳ | سینګړونه | ډبریز، ډبرین |
| ۱۰۴ | ستهال | هېواد |
| ۱۰۵ | سال | میده شګه |
| ۱۰۶ | سوني | دروغ |
| ۱۰۷ | سادین | شودیاره ځمکه |
| ۱۰۸ | ساندي | ویر ماتم |
| ۱۰۹ | سور | خوښی |
| ۱۱۰ | سود | ډاډ، اطمینان |
| ۱۱۱ | شخړه | جګړه |
| ۱۱۲ | شنار | ظلم |
| ۱۱۳ | شڼ | مست |
| ۱۱۴ | شنا | مستي |
| ۱۱۵ | ښکلل | سینګار کول |
| ۱۱۶ | ښځمني | ښځې |
| ۱۱۷ | ښهانه | ښېګڼه |
| ۱۱۸ | غوږن | خبر |
| ۱۱۹ | غبرګون | عکس العمل |
| ۱۲۰ | کوټ | کلا، قلعه |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۲۱ | کرغه | وچه ځمکه |
| ۱۲۲ | کهول | کورنۍ |
| ۱۲۳ | کړونګی | ابشار |
| ۱۲۴ | کورول | باطلول |
| ۱۲۵ | کاوه | کول |
| ۱۲۶ | کروړ | سخت |
| ۱۲۷ | کویله | د مرغه نوم دی |
| ۱۲۸ | کړېدل | ګرځېدل، طواف |
| ۱۲۹ | ګاڼل | د زېوراتو بندول |
| ۱۳۰ | ګواښل | تهدیدول |
| ۱۳۱ | ګروهه | عقیده |
| ۱۳۲ | لته | سیمه |
| ۱۳۳ | لژند | ککړ |
| ۱۳۴ | لور | پېرزوینه |
| ۱۳۵ | لونل | شیندل، پاشل |
| ۱۳۶ | لرغونی | پخوانی |
| ۱۳۷ | لرمل | مازیګر |
| ۱۳۸ | لمانځنه | ستاینه |
| ۱۳۹ | لتاړ | خراب |
| ۱۴۰ | ملونه | ملګري |
| ۱۴۱ | مراندې | تنابونه، د زړه رګونه |
| ۱۴۲ | مېشت | پراته، ساکن |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۴۳ | میرڅی | دښمن |
| ۱۴۴ | من | اراده |
| ۱۴۵ | مخسور | بریالیتوب |
| ۱۴۶ | ملا | ملګرتیا |
| ۱۴۷ | مواس | ساتونکی |
| ۱۴۸ | منښت | قبلول |
| ۱۴۹ | نېز | سېلاب |
| ۱۵۰ | نېزوړی | خاشي، خس |
| ۱۵۱ | نمنځ | احترام، ستاینه |
| ۱۵۲ | ناره | د شعر یو ډول دی |
| ۱۵۳ | نمنځي چار | عابد، زاهد |
| ۱۵۴ | نمرې | جامې |
| ۱۵۵ | نست | نابود |
| ۱۵۶ | نغوړېده شي | واورېدل شي |
| ۱۵۷ | نومړ | نوموړی |
| ۱۵۸ | نمزدک | جومات |
| ۱۵۹ | نتلی | غمجن |
| ۱۶۰ | ویرژلی | غمځپلی |
| ۱۶۱ | ویاړنه | فخریه |
| ۱۶۲ | ودنه | روزنه، پرمختګ |
| ۱۶۳ | ویرمن | غمجن |
| ۱۶۴ | وړنګن | وړانګې لرونکی |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۶۵ | ځلم | ځلیږم، برېښنم |
| ۱۶۶ | ورمونه | نصیحتونه |
| ۱۶۷ | هیښنیږي | حیرانیږي |
| ۱۶۸ | هسک | اسمان |
| ۱۶۹ | یرغالم | یرغل کوم |
| ۱۷۰ | یون | حرکت |
| ۱۷۱ | یادي | یادول |

**د ځینو سیمو موقعیت**

| ګڼه | د سیمې نوم | موقعیت |
|---|---|---|
| ۱ | اتغر | د کلات په جنوب ختیځ کې یوه سیمه ده |
| ۲ | ارغستان | د کندهار په جنوب ختیځ کې یوه سیمه ده |
| ۳ | اولان | د شاه جوی په شمالي برخو کې یوه سیمه ده |
| ۴ | بغنین | د غور او زمینداور په منځ کې پرته سیمه |
| ۵ | پښین | په بلوچستان کې یوه سیمه ده |
| ۶ | تازی | د کلات په شمال ختیځ کې یوه سیمه ده |
| ۷ | توبه | د کندهار په جنوب ختیځ کې پرته سیمه ده |
| ۸ | جروم | د کندهار لـه جنوب لویدیځ نـه تر سیستان پورې سیمه |
| ۹ | جلدک | د کندهار په شمال ختیځ کې پرته سیمه |
| ۱۰ | داور | هلمند ته نږدې یوه سیمه ده |
| ۱۱ | دیبل | کراچۍ ته نږدې یو ښار دی |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۲ | دیراوت | د کندهار په شمال شرق کې یوه سیمه ده |
| ۱۳ | ږوب | د سلیمان د غره په شمالي لمنو کې پرته سیمه |
| ۱۴ | سور غر | د شاه جوی او اولان ترمنځ غر دی |
| ۱۵ | غرج | د هرات له شماله تر امو پورې |
| ۱۲ | غنډان | د کلات او شاه جوی ترمنځ غر دی |
| ۱۷ | قصدار | په بلوچستان کې یو ښار دی |
| ۱۸ | کسي غر | د سلیمان غر |
| ۱۹ | مرغه | د کندهار په جنوب ختیځ کې پرته ده |
| ۲۰ | وازه خوا | د غزني په جنوب ختیځ کې یوه دښته ده |

یادونه: دا لغتونه اکثره د همغو شاعرانو په شعرونو کې راغلي چې پټې خزانې معرفي کړي او د کلام ښېلګې یې خوندي کړي دي.

# د قصيدې پېژندنه
# او د شيخ اسعد سوري قصيده



د قصيدې لغوي مانا قصد او اراده ده او په ادبي اصطلاح کې هغه شعري فورم يا کالب دی چې تر يوې مطلع لاندې ويل کېږي، د بيتونو شمېر يې له (۱۵) څخه تر (۷۰-۸۰) پورې او ان تر (۲۰۰) بيتونو پورې رسېدلای شي. ځينې قصيدې دوه او يا تر هغې زياتې مطلعې هم لري. هره قصيده مطلع، مقطع، تغزل او تشبيب لري.

## د شيخ اسعد سوري پېژندنه:

د پښتو تر ټولو پخوانۍ لاسته راغلې قصيده د اسلامي دوران د پنځمې پېړۍ په اوايلو پورې اړه لري او هغه پخوانی شاعر چې د پښتو پخوانۍ لاسته راغلې قصيده يې ويلې ده، شيخ اسعد سوري دی. د شيخ اسعد سوري قصيده د تاريخ سوري مولف راوړې ده او له دې کتاب څخه شيخ کته متي زي په لرغوني پښتانه کې اخيستې ده او له لرغوني پښتانه څخه محمد هوتک په پټه خزانه کې خوندي کړې ده. شيخ اسعد سوري د محمد زوی و، په غور کې يې استوګنه درلوده او د غور د سوري شاهانو په دربار کې د عزت خاوند و.

شیخ اسعد د غور له سوري شاهانو څخه د امیر محمد سوري معاصر و او د غور په اهنګرانو کې د دغه سوري پاچا په دربار کې اوسېده. شیخ اسعد د امیرمحمد سوري تر مړینې وروسته هم ډېر کلونه ژوندی و او پر (۴۲۵هـ.ق) کال په (بغنین) کې وفات شو.

## د شیخ اسعد سوري د قصیدې ښکلاییز اړخ:

د شیخ اسعد سوري یوه پخه او په تول پوره، په هنري ښکلاوو سمبال قصیده زموږ په واک کې ده چې شاعر دا قصیده د غور د افغان سوري پاچا امیرمحمد سوري پر مړینه ویلې وه. په دې قصیده کې شاعر خپل غم نه ژاړي، بلکې د ملت، سوریانو او غوریانو غمونه ژاړي او هغه ملي زیانونه چې د محمد پر مړینه د هغه وخت سوریانو او غوریانو ته متوجه وو، هغه بیانوي.

ددې قصیدې ویل له ټولو ادابو سره برابر دي او له فني پلوه کومه نیمګړتیا نه په کې لیدل کېږي. د هنر، ښکلا، انځور جوړونې او د طبیعت د جمال د تصویرولو له پلوه دا قصیده په تول پوره او د هنر په ګاڼه پسولل شوې ده، په دې قصیده کې سره له دې چې ځینې عربي او فارسي لغات هم په کې په څرګند ډول موندل کېږي، خو ځینې داسې پښتو لغتونه هم په کې شته چې اوس په عامه پښتو کې نه دي رواج او ښایي په ځینو غرنیو لهجو کې یې ځینې کلمات رواج وي. په دې قصیده کې ساده ګي او رواني موجوده ده، دا قصیده موږ ته راښیي چې په پښتو ادب کې تقریباً تر دې دورې وړاندې هم شعر او نظم پاخه وو، د شیخ اسعد سوري قصیده د پښتو زاړه لغات معرفي کوي، له بل پلوه مرثیه ده. دا قصیده ټول (۴۴) بیته لري او (۱۱) خطابي بیتونه لري. په دې قصیده کې

شاعر په ټولو برخو کې هغه ټکي مراعات کړي چې د يوې ډېرې ښکلې او د شور او جذبه لرونکې رثائيه قصيدې په لوازمو کې شمېرل کېږي او د قصيدې وروستۍ برخه شاعر پر يوه داسې اجتماعي او اخلاقي نتيجه بنا کوي، چې د پښتنو له ملي عنعناتو سره سمون لري او د پينځمې هجري پېړۍ په پيل کې د غور د سوري افغانانو د ملي احساساتو ښکارندويي کوي.

دا قصيده د پښتو ژبې لومړنۍ قصيده ده. د شيخ اسعد سوري په قصيدې کې د بديع او بيان له صنعتونو نه په ښکلي ډول کار اخيستل شوی دی، لکه:

د فلک له چارو څه وکړم کوکار
زمولوي هر ګل چې خاندي په بهار

د کوکار او خاندي کلمې د تضاد صنعت پورې اړه لري.

## تضاد يا طباق:

هغه صنعت دی چې شاعر خپل شعر کې دوه مقابل او متضاد لفظونه راوړي.

دويم بيت:

هر غټول چې په بيديا غوړېده وکا
ريژوي يې پاڼې کاندي تار په تار

د غوړېده او رېژوي کلمې د تضاد صنعت لري.

درېيم بيت:

ډېر مخونه د فلک څپېړه شنه کا
ډېر سرونه کا تر خاورو لاندې زار

دا بیت د تشبیې صنعت لري. د زمانې ګردش د فلک له څپېړې سره تشبیې شوی دی.

**تشبیې:** د تشبیې لغوي مانا د دوو وشیانو په یوه مانا کې ګډون دی او په ادبي اصطلاح کې د دوو شیانو له یو بل سره هم رنګه یا یو ډول کول دي، خو په دې شرط چې دا هم رنګه یا هم مثله کول ادعایي وي نه رښتیني.

**څلورم بیت:**

د واکمن له سره خول پرېباسي مړ سي
د بېوزلو وینې توی کاندي خونخوار

د واکمن او بېوزلو کلمې د تضاد صنعت لري.

**پینځم بیت:**

چې له برمه يې زمري رپي ځنګلو کې
لـه اوکـوبـه یـې ډاري تـیرو جـــبار

برمه او اوکوبه دوه مترادفې کلمې دي.

**مترادفې کلمې:** هغو ته ویل کېږي چې په لیکلو کې سره توپیر لري او په مانا کې یو شان وي.

**اتم بیت:**

پـه یـوه ګـردښت یې پرېباسي له برمه
نه یې غشی نه لیندۍ وي نه یې سپار

پـه دې بیـت کـې د مراعـات النظیـر صـنعت موجـود دی. د غشـي، لیندۍ او سپار په کلماتو کې.

**مراعات النظیر یا تناسب:** هغه صفت ته ویل کېږي چې شاعر په خپل کلام کې داسې کلمې راوړي چې یو له بله تناسب ولري، نو ځکه دغه صنعت ته تناسب هم وایي.

نهم بیت:

څه تېری څه ظلم کاندې ای فلکه
ستا له لاس ندی هېڅ ګل بې له خار

د ګل او خار کلمې د تضاد صنعت لري.

لسم بیت:

په ویرژلو لور نه کړي په زړه کراړیه
پر نتلیو اوروې د غم ناتار

د ویرژلو او لور کلمې د تضاد صنعت لري او کراړیه کلمه پخوانۍ پښتو کلمه ده چې اوس زیاته نه کارېږي.

دولسم بیت:

له تېریو دې اوښې ځاځي له ورېځو
چینې ژاړي په ورتې ورتې ستا له شنار

د اوښې او ژاړي کلمې د استعارې صنعت لري.

**استعاره:** لغوي معنا یې په سوال او امانت، رعایت یا په پور څه شي غوښتلو ته وایي او استعاره په اصطلاح کې یوه کلمه په غیر حقیقي مانا استعمالول دي او د حقیقي او مجازي مانا ترمنځ علاقه مشابهت او ورته والی دی.

استعاره څلور رکنونه لري: مستعار، مستعار له، مستعار منه او وجه جامع.

دیارلسم بیت:

نه به لاس واخلې له ځوره نه به لورې
نــه بــه مــلا کــړې لــه بېوزلو له ترار

د زوره او لورې کلمې د تضاد صنعت لري.

پنځلسم بیت:

نه به وصل کړې مین له بل مینه
نـــه بـــه درمـــلې ټـپونه د افګار

د مین او مینه کلمې د مذیل زاید تجنیس لري.

**مزیل زاید تجنیس**: که د متجانسو کلمو د پای توری زیات او کم وي، مذیل زاید تجنیس بلل کېږي.

اوولسم بیت:

کله غوټې کاندې مراندې د زړګیو
کـــله تـېر بـاسي وګــړي هـوښیار

د دې بیت صنعت استعاره دی. د مراندې کلمه د استعارې په ډول استعمال شوې ده.

شپږ ویشتم بیت:

تر نړۍ یې غوره خاورې هدیره کا
د زمـریو پـــه بـېړیو کله وي ځوار

په دې بیت کې له تشبیه صنعت څخه کار اخیستل شوی دی.

اوویشتم بیت:

په دې ویر د غور وګړي تورنمـري سـول
پـــه دې ویـــر رڼـا تـیاره سولـه د ښار

د رڼا او تیاره کلمې د تضاد صنعت لري.

اته ویشتم بیت:

ګوره څاڅي رڼې اوښې له دې غرونـو
دا کـړونګی سـاندې لـې پــه شورهار

دا بیت د حسن التعلیل صنعت پورې اړه لري. رڼې اوښې او ساندې په کلمو کې.

**حسن التعلیل**: د یوه وصف لپاره د یوه ناحقیقي مګر لطیف او مناسب سبب راوړلو ته **حسن التعلیل** وایي.

نهه ویشتم بیت:

نه هغه زرغا د غرونو د بېدیا ده
نــه د زرکـیو پـه مسا دی کتهار

د مسا دی کلمه د استعارې صنعت لري.

د پرشم بیت:

نه غتهول بیا زرغونېږي په لاښونو
نه بامي بیا مسیده کا په کهسار

د مسیده کلمه د استعارې صنعت لري.

دوه د پرشم بیت:

د پسرلي اوره تودې اوښې تویـینه
مــرغلرې بــه نسیان نــه کړي نـثار

دا بیت د استعارې صنعت لري. د تودې اوښې په کلمه کې.

څلور د پرشم بیت:

نه ښکارېږي هغه سور د سور په لتو
نــه څـلېږي هـغه لـمر پـر دې دیـار

دا بیت تجنیس صنعت لري، له لومړي سور څخه مراد امیر محمد سوري دی او له دویم سور څخه مراد سوریانو قبیله ده.

**تجنیس**: د تجنیس لغوي مانا همجنس کول دي او په اصطلاح کې که چېرې په یو بیت یا یوه نیم بیتي کې دوه یا زیاتې کلمې داسې راشي چې په لیک او لوست کې سره یو شی او یا څه سره ورته وي او ماناوې یې سره جلا وي.

شپږ د پرشم بیت:

هغه غور په ویر ناتار د واکمن کښېوت
هغه غور سو د جاندم غوندې سور اړ

دا بیت د مرسل تشبې صنعت پورې اړه لري.

اوه د پرشم بیت:

لاس دې مات سه ای فلکه چې دې وکا
محمد غوندې زمری د مړینې ښکار

دا بیت د استعارې صنعت پورې اړه لري.

څلوېښتم بیت:

چې زمري غوندې اوکمن ځي له جهانه
چې څوک نه کړي په نړۍ بساندې قرار

دا بیت د تشبې صنعت لري.

یو څلوېښتم بیت:

سخ په تا ای محمده د غور لمر وې
په نړۍ به نه وي ستا د عدل سار

دا بیت هم د تشبې صنعت لري، چې امیر محمد سوري له لمر سره تشبې شوی دی.

# په لرغونو ادبياتو کې ساقي نامه



**د ساقي نامې تعريف:** ساقي نامه د شعر معنوي ډول دی، ساقي نامه فورمونه نه دي، بلکې محتوايي شکل لري چې دا ډول اشعار د مثنوي په متقارب بحر کې ويل کېږي او د خمريه اشعارو په فروعاتو کې شامل دي.

په ساقي نامو کې به د شعراوو مطلب دا و چې دوی به له ساقي څخه د ميو هيله کوله. د ساقي، جام، صراحي او ميو صفات به يې بيانول. د دنيا بې وفايي او د يو څو ورځو ژوندون په خوښۍ تېرول او د بزم تودول د ساقي نامو عمومي مضمون و.

دې ډول اشعارو په عربو کې له پخوا څخه رواج درلود، بيا عجمي شاعرانو دغه ډول اشعار وويل او په همدې تقليدي ډول په پارسي شاعرۍ کې د خمريه اشعارو ويل پيل شول او ددغو ژبو د ادبياتو تر تاثير لاندې په پښتو شاعرۍ کې هم ساقي نامه ويل پيل شول.

د پښتو په لرغونو ادبياتو کې لومړی نفر چې ساقي نامه يې ليکلې وه، (زرغون خان نورزی) دی. زرغون خان نورزی اصلاً د نوزاد و او د قوم مشري يې کوله، په دغو وختونو کې د ماورالنهر شيباني خان پر هرات او سيستان هجوم وکړ، نو زرغون خان د وطن له

مدافعینو ځخه ګڼل کېده او د متهاجمینو پر وړاندې یې سختې جګړې کړې وې.
داسې معلومېږي چې زرغون خان نورزی یو ملي قاید او د وطن ازادیخواه مدافع او جنګیالی سړی و، سربېره پر دې د علم خاوند هم و او د علم او ادب په میدان کې پوخ او نومیالی شاعر تېر شوی دی.
نورزی د پښتو ژبې ښه شاعر او د دېوان خاوند دی، چې دده دېوان په کجران کې پر (۹۱۲هـ.ق) کال له ملا ایوب تیمني سره موجود و او پر دغه کال چې دولت محمد کاکړ هرات ته تللی و، هلته یې دا دېوان کتلی و چې (۳۰۰) پاڼې یې درلودې.
زرغون خان نورزی ډېر عمر ژوندی و او د ډېر سپین ږیرتوب پر وخت پر (۹۲۱هـ.ق) کال په هرات کې وفات شوی دی.
د زرغون خاان نورزي ساقي نامه ټول (۳۹) بیته لري چې زه یې دلته د څو بیتونو یادونه کوم:

## ساقي نامه

ساقي پاڅه پیاله راکړه | مرور یار مې پخلا کړه
اوبه تویې په لمبو کړه | اور مې مړ په دې اوبو کړه
پسرلی سو غونچه ګل کا | زلفې تاوې د سنبل کا
بلبلان شور و فغان کا | کړېدن په ګلستان کا
زاهد وځي صومعې څخه | شراب پیري میخانې څخه
هر سړی په میو مست دی | دې بهار کې ګلپرست دی
په راغو کې سرې لمبې دي | د غټولو ننداري دي
جهان ټول سور او زرغون سو | وچ راغه ښکلی ګلګون سو

سړي ټول شور و شعب کا — یــاراني کانــدي طلــب کــا
بهـــار وخت د یاراني دی — ښـــه موســـم د پیمـــاني دی
نـو ســاقي پـاڅه بهار دی — نـن ژونـدون سـبا رفتـار دی

د دې ساقي نامې لـه مطـالعې څخـه داسې معلـومېږي، چې زرغـون خان نوروزی د لوړې کچې شاعر و او د ده مثنوي لـوړه هنـري تومنـه لري چې د پښتـو په ډېرو اوچتو مثنویو کې شمېرل کېږي.

## اخځوونه


۱- حبیبي، عبدالحی (پوهاند)، د پښتـو ادبیاتو تاریخ، دویم ټوک، دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۵ل کال.
۲- هېـواد مـل، زلمـی، د پښتـو ادبیـاتو تـاریخ لرغـوني او منځنـۍ دوره، لومړی ټوک، دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۷۹ل کال.

# پښتو لنډۍ او کاکړۍ



لنډۍ د پښتو د ولسي سندرو يوه ستره او مهمه برخه ده او د خلکو په سندرو کې ځانګړی جوړښت او لار لري. لنډۍ د انسان د غوټه شويو فريادونو رينښو ته ځان رسوي. لنډۍ له سترو زړونو څخه راوتلي چې نمونه يې هم ستره ده.
لنډۍ د عشقونو او رنځونو ژبه ده او په تورو شپو کې سندرې بولي، په ګلانو کې خاندي، په غوټيو کې سپړېږي او د دښتو له بادونو سره ناځي او ژاړي.
د پښتو لنډيو اغېز او تاثير دومره زيات دی چې په نورو شعرونو کې ډېر کم پيدا کېږي، په تېره بيا هغه وخت چې پښتانه زلميان او پښتنې پېغلې او يا پښتانه شپانه په دنګو دنګو غرونو کې ګرځي او دغه لنډۍ په خوږو خوږو اوازونو او طبيعي شوق او ذوق سره وايي، نو اورېدونکي ته ښکارېږي چې د خلکو د سندرو اوډل څومره خوند لري او د شعر په نړۍ کې څومره د قدر وړ دي. لنډۍ په پښتو شاعرۍ کې تر ټولو کوچنی شعري فورم دی، خو د مانا د ځواک او لېږد له پلوه نه يوازې په پښتو شاعرۍ، بلکې په نړيواله شاعرۍ کې يې ساری ليدل شوی نه دی. لنډۍ هغه ځانګړې دايروي سر تړلی (سربسته) زنځير دی چې هېڅ سر يې په بلې لنډۍ

پورې تړل شوی نه دی، یانې هره لنډۍ پر لومړۍ مسرې پیل او پر دویمه مسرې پای ته رسېږي چې په دې ترتیب یو مستقل او ځانګړی مطلب په لنډ ډول په کې ځای شوی او تمام شوی وي. د لنډۍ کمال په دې کې دی چې مجموعاً په (۲۲) څپو یا دوو مسرو کې دروند مانیز بار او ښکلا لېږدوي، د لنډۍ لومړۍ مسره (۹) او دویمه مسره یې (۱۳) څپې لري، لکه:

لومړۍ مسره

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| چې | د | خا | لو | لښ | ک | رې | را | غلې |

دویمه مسره

| | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| زه | به | ګو | مل | ته | د | خپل | یار | دي | دن | ته | ځ | مه |

لنډۍ عموماً قافیه نه لري، خو د دویمې مسرې په پای کې یوه اهنګینه کلمه لري چې د لنډۍ ټول اهنګ بشپړوي. هره لنډۍ باید د زور (ه) په واول یا غږن اواز پایته رسېدلې وي او که په پای کې دا زور(ه) رانه شي نو اهنګ یې نیمګړی پاتې کېږي. همدارنګه د لنډۍ په پای کې ځینې حروف او کلمې د اواز اوږدېدو لپاره او یا ځینې ردیفونه لکه (مه، ونه، دینه، مینه، وینه) هم راځي، لکه هغه لنډۍ چې د (مه) په تورو پای ته رسېدلې وي.

ماته ګېدۍ ګلونه راوړه

زه د وربل دپاسه څپر جوړومه

هغه لنډۍ چې د پای توری یې (ونه) وي:

په لوړو غرو د خدای نظر وي

پر سر یې واورې وروي چاپېر ګلونه

داسې لنډۍ چې په پای کې یې (مینه) راغلي وي:
خدای به په خپله مازیګر کړي
د چینارو سرو ته مه خېژه مینه
هغه لنډۍ چې وروستی توری یې (وینه) وي:
د سپینو غاښو دې برېښنا شوه
چا ویل ږلۍ ده په تیرا یې ورروینه
او دا هم هغه لنډۍ چې په پای کې یې (دینه) راغلي وي:
یا دې د زلفو خوشبویي ده
یا دې د عطرو په چینه لامبلي دینه
ځینې داسې لنډۍ هم شته چې د دواړو مسریو سېلابونه یې د لنډۍ په قانون برابر وي، یانې لومړۍ مسره یې (۹) او دویمه یې (۱۳) سېلابه وي، خو پای یې له پورتنۍ قاعدې او قانون سره سمون نه خوري، یانې په پای کې یې (مه، ونه، دینه، مینه، وینه او نور) نه وي راغلي چې دغه لنډۍ که څه هم بشپړ مطلب لري خو د لنډیو د ویلو په ټولو طرزونو ښه نه ویل کېږي، په ځانګړې توګه له اکثرو سروکو سره د ویلو په وخت کې سکته پیدا کوي او وزن له لاسه ورکوي، خو دغه ډول لنډۍ ډېرې کمې دي، لکه:
د ازل برخې یې وېشلې
د چا یې ښې کړې د چا شولې لوغړنې
د زړه له سوزه به نارې کړم
په اوسېلي به د اسمان ستورې نینې کړم
لنډۍ له سروکو سره هم ویل کېږي او ډېر زوږ او په زړه پورې دود دی، لکه:

لونګ کرمه که لو مې ګډ کړو

یاره تا به راولمه لونګ کرمه

لاس به دې وترم په زلفو

لونګ کرمه، په لونګين به دې وهم چې مړ دې کړمه

لونګ کرمه که لو مې ګډ کړو

یاره تا به راولمه لونګ کرمه

همدارنګه د هرې لنډۍ د لومړۍ مسرې څلورمه او اتمه څپه او د دویمې مسرې څلورمه، اتمه او دولسمه څپه خجنې وي، لکه:

غم دې راځې بې غمه نهٔ يم

بې غمه خدای دی بنده ټول په غم کې ويُنه

لنډۍ ته ورته د نورو ملتونو ولسي شعرونه لکه د دري ژبې دوبيتې، د روسي ژبې چستوشکی او د اسپانيايي ژبې (Cante,Jondo) زياتره بې منظرې اوازونه دي، په دې اوازونو کې د انسان په تېره بيا د عاشق او رټل شوي انسان اوازونه راغبرګ شوي دي. په دې شعرونو کې د منظرې او تصوير جوړولو لور ته پاملرنه نه کېږي، د هغو لپاره نه باران شته، نه ږلۍ، نه توده غرمه، نه شين سحر، نه غرونه او نه بيابانونه.

لنډۍ لکه اسپانيايي(Cante,Jondo) مطلق بې منظرې اوازونه نه دي، بلکې کله کله د انسان په څېرلو کې له طبيعت او د هغه له ښکلو منظرو څخه مرسته غواړي او د همدې موخې لپاره د منظرې په جوړولو لاس پورې کوي، خو په دې منظرو کې نه حل کېږي او هغه د انسان د باطني غوښتنو او د ننيو شخړو د افهام د بشپړاوي لپاره استعمالوي او ښکلې منونکې مجسمه دومره رابرسېره کوي

چې د لنډۍ اصلي موضوع (انسان) او د هغه د احساساتو بیان د شکلونو او منظرو تر جسمه جار کړي او فرعي موضوع د اصلي مضمون ځای ونیسي.

همدارنګه د پنجاب (ماهیا) د تحقیق له پلوه تر ډېره حده له (لنډۍ) سره لګي دا دواړه صنفونه په یوه نیمه مسره کې پوره کېږي. په دواړو کې زیات د مینې اظهار او هم د دواړو موضوع له بنیادي پلوه یوه وي او دواړه اصناف په خپله په عوامو کې له پخوا څخه بې حده ښکلي دي. د دواړو د وینا طرز هم یو دی خو له دې سره سره په دواړو کې څه خبرې بېلې دي، لکه په پښتو لنډۍ کې همېشه یوه قافیه چلېږي، خو د پنجابي په ماهیا کې د قافیې هېڅ قید نه شته، دویمه د لنډۍ په یوه نیمه مسره کې د لومړۍ نیمګړې مسرې د دویمې پوره مسرې سره پوره تړون وي، خو په پنجابي ماهیا کې په عام ډول د لومړۍ نیمګړې مسرې له دویمې پوره سره هېڅ اړیکه نه شته. په هر حال د پنجابي ماهیا او پښتو لنډۍ د صنف له پلوه یو تربله ورته دي، خو د لنډۍ د قدامت په اعتبار دا ویلای شو چې پنجابي ژبې دا صنف له پښتو څخه اخیستی دی، نو ویلای شو چې په کومه زمانه کې چې د پښتو د شاعرۍ ابتدا کېدله په هغه زمانه کې لا د پنجابي ژبې نوم او نښان نه و.

لنډۍ په پښتو کې په مختلفو نومونو یادېږي او په هر چاپېریال کې بېلابېل نومونه ورته اېښودل شوي دي، لکه: د کندهار او پکتیا پښتانه یې لنډۍ بولي، چې دا اصطلاح د اکثریت په توګه په دوی کې موجوده ده، دا تسمیه ښایي په دې بنا وي چې لنډۍ خلک یو ډول لویشتکي مار ته هم وایي او زیاتره د پاړوګرو تر اودې لاندې نه

کېږي. بل دا چې د لنډ (کوتا) په مانا دی او لنډۍ د لنډ مغز دی چې مونث ته يې لنډۍ ویل کېږي او هم ددې ډول نظم لومړۍ مسره په سېلاب کې تر دویمې مسرې څلور سېلابه لنډه وي:

قلم په لاس ګوتې مې رېږدي

د عاشقۍ لنډۍ (مار) په زړه وهلی یمه

همدارنګه یوسفزي، پېښوریان او ځینې نور پښتانه مسره او ټپه ورته وايي چې دا نومونه (اصطلاح) سره له دې چې په دوی کې مروجه هم ده د هر ځای باسواده او تعلیمیافته پښتانه وربان‌دې پوهېږي، مسرې ځکه ورته وايي چې مسرې د یو شعر نیم بیتي ته وايي، لنډۍ ته هم پوره بیت نه ویل کېږي، ځکه پوره بیت هغه ته وايي چې دواړه مسرې یې سره برابرې وي، خو د لنډۍ لومړۍ مسره (۹) او دویمه یې (۱۳) سېلابه ده یانې د بیت له یوې مسرې سره تشبې شوې، نو ځکه ورته د مسرې نوم ایښودل شوی دی.

پښتو لنډۍ لنډه او غېزناکه ده او د پښتو د لرغوني فولکلور په زړه پورې برخه ده. څرنګه چې د پښتو فولکلور زیاتره برخه د ننګ او جنګ پېښې دي او د پخوانیو جنګونو ښه وسله توره وه او بیا مصرۍ توره چې د ډېر مشهورتیا له کبله یې د مصرۍ تورې پرځای یوازې مصرۍ بولي، نو پښتو لنډۍ چې تورې ته ورته خاصیت لري که توره یوازې څرګند ټپ جوړولای شي نو لنډۍ هم تر تورې کمه نه ده، لنډۍ د پټو او څرګندو ټپونو لامل کېدی شي.

زما په زړه دې پرهار وکړ

په تا دې وشي د مصرۍ تورې وارونه

څرنګه چې لنډۍ د ولسي سندرو يوه په زړه پورې برخه ده، نو پښتانه هم ورته په زړه پورې اوازونه او طرزونه لري. اکثره وخت يې په لوړ، اوچت او اوږده اواز وايي چې په دغسې ويلو ارومرو اواز ټيټيږي، نو ټپ ورته وايي او هم دا چې لنډۍ د پټو او څرګندو ټپونو لامل کېدلای شي، نو له همدې کبله په ټپه نومول شوې ده او همدارنګه څنګه چې مور په ټپولو خپل ماشوم ويده کوي، د دغسې ټپو په واسطه ويونکي خپل درد بدلی زړه قراروي او ده ته تسلي او سکون وربښي. په کورنيو مجلسونو يا اتڼونو کې له ټپو ويلو سره لاسونه هم پړکول کېږي او له دغسې ټپ ټپ اواز سره چې کوم ساز پيدا کېږي هغه د ټپې له روح سره ډېر لوی تړون لري.

بېلتون ټوپک شو راته ډک شو

ناڅاپه ټک شو په تندي يې وويشتمه

همدارنګه د وردګو، ننګرهار او د کابل شاوخوا پښتانه ټيکی ورته وايي څرنګه چې لنډۍ عموماً له ډېرو اوږدو پېښو، سوچونو، خيالونو او تصوراتو هغه د مقصد ټکی په لنډو ټکو کې څرګندوي نو له همدې امله په ټيکی نومول شوې ده.

ټيکی مې ډېرې ورته وکړې

په لااله الاالله يې ختمومه

ډېری پښتانه چې کله د لارې ملګری ورسره نه وي او يا يوازې کار کوي، نو ښه ملګری يې همدغه د پښتو لنډۍ ده، بيا نو له ځانه سره په ورو او ټيټ اواز لنډۍ وايي چې ځينې خلک يې غړانګې بولي. کله چې غم او اندېښنه ډېر زور پرې وکړي نو بيا د خپل غم

غلطولو لپاره يې په يوه خاص غمجن او تيټ اواز ځان سره زمزمه کوي چې دې ډول ويلو ته يې غريبي وايي.

ځينې پښتانه لنډيو ته سندرې او بدلې وايي خو سندرې او بدلې د لنډيو لپاره ځانګړی نوم نه شو بللی، ځکه چې دغه نومونه د پښتو د ټولو ولسي شعرونو لپاره استعمالېږي، نو يوازې د لنډۍ لپاره يې خاصولای نه شو.

لنډۍ زياتې د پښتنو مېرمنو د جذباتو اظهار دی او هم دوی ويلې دي، خو هر کله چې پښتنه مېرمن د خپلې حيا پړونی نه غورځوي په دې وجه دا ټولې ټپې د چا نوم ته نه شي منصوبېدلای دا په دې خاطر چې د ويونکي د زړه د کيفيت له تاثر او درده څوک خبر نه شي. د دوی پر خولو د پښتو مهرونه لګېدلي وي، د پېغور له وجې يې د داسې قسم د خيال اظهار سره خپل نوم تړل مناسب نه دي ګڼلي. پښتنه مېرمن د نړۍ د ټولو مېرمنو په څېر د احساس، وجدان او ذوق مېرمن ده او د ښه، مناسب او نامناسب لپاره معيارونه او قضاوت لري، خو د فيوډالي او ماقبل فيوډالي شرايطو چوکاټ هغې ته ددې موقع نه ده ورکړې چې د خپل وجدان حکم او قضاوت د خپل ژوند په عمل کې څرګند او اغېزمن کړي، نو د خپلو لنډيو (ښځمنو لنډيو) يوه مهمه برخه د (نرينه سالارۍ) پر ضد او د ښځې د اوږده اسارت او بېواکۍ د بيان په باره کې وايي او په بېلابېلو مواردو کې ددې ناروا (سالارۍ) د افشا کولو او رسوا کولو لپاره خاص اصطلاحات او سمبولونه استعمالوي او په دې وسيله د ازادۍ او ځانواکۍ پر لوري د خپلې تندې او تلوسې افاده ښيي. ددغو مصطلحاتو له جملې څخه يو هم د (موزي) او

(موزیګي) کلمات دي، دا سمبولونه په لنډيو کې د بې غیرت، نامرد، ډارن، بې پښتو، بې وجدان، بې انصاف، دسیسه کار او شیطان نرینه په مانا استعمالېږي او زیاتره په ښځمنو لنډيو کې د استعمال موارد لري او په هغو ښځمنو لنډيو کې چې د (موزي) او (موزیګي) پر ضد ویل شوي دي د محکومې او اسیرې پښتنې مېرمنې نهايي نفرت، بېزاري او حسد انعکاس مومي او په عمومي توګه د (پلارواکۍ) د ستم د پاتې شونو ضد انساني او د وحشیانه نتیجو خیرنه او ناپاکه څېره ښیي، لکه:

که مې نصیب د بدو نه وای

چېرې موزي چېرې د لګو صورتونه

همدارنګه د (ستي) د دور له احکامو سره سم به هره کونډه ښځه د خاوند له مړینې سره یوځای ژوندۍ اور ته اچول کېده، په ځینو نورو لرغونو مذهبونو کې د مړي د سوځولو پرځای د خښولو عنعنه دود وه، هغوی به ښځه له خاوند سره ژوندۍ ګور ته سپارله، دې عنعنو غالباً په هندي اریایي قبایلو او مشایرو کې زیات دوام کړی دی. د پښتو په عامیانه شعر په تېره بیا په لنډيو کې د (ستي) د لفظ او دود انعکاس او پراخ استعمال دا اټکل منځته راوړي چې د پښتنې ښځې لرغونې میندې هم (ستي) شوې دي او ددې بشري ضد منسوخ درد رنج يې ګاللی دی.

ګودر دې ونیو تومتي شوم

په اور ستي وای تومتي مه وای مینه

د ستي کېدلو او ژوندۍ ښخېدلو احکام یوازې او یوازې ښځې ته اړم وو او نرینه پر دې احکامو محکوم نه وو، خو په وروستیو پېړیو

کې د (ستي) کلمې له عامیانه ادبیاتو نه خاصو ادبیاتو ته لار کړې ده. د لنډیو اساسي مضمون انسان دی، لنډۍ له (انسان) څخه ځان نه بېلوي هغه موضوع چې لنډۍ له خپل اصلي مضمون (انسان) نه بېلوي، لنډۍ هغه یسته غورځوي او نه یې زغمي. لنډۍ یوازې د انسان د غمونو، ناهیلیو، بارانونو او برېښناوو نړۍ ته پاملرنه کوي، انسان تصویروي او د هغه د هیجان توپانونه، د هغه د اوښکو بارانونه د هغه د قهر او غوسې تندرونه او د هغه د صبر او زغم سمندرونه ښکاروي، نو له همدې امله لنډۍ د انسان د احساساتو، عواطفو، دردونو، رنځونو او انګېرنو ډېره عالي او دقیقه درجه بندي کړې ده او هغه یې د ډېر خواږه او ظریف بیان په موسیقۍ کې بیان کړي دي، په لنډۍ کې د محروم انسان غم د اوښکو د ناپایه سین مساپر دی، داسې غم چې د انسان د غریزې ښکلا او دده د ازادۍ پر خلاف پر ده باندې تپل شوې دي اوښکې د همدې اوږده او ناپایه غمونو د اسانولو او حلولو په خاطر د لنډیو څپو ته ځان سپاري او په دې توګه د پېړیو په اوږدو مزلونو کې د ځپل شویو او رټل شویو انسانانو د ژوند تراژیدي له لومړیو څخه وروستیو ته او له پېړیو نه پېړیو ته رسېږي.

زما د زړه ناپایه غمه

اور دې چې هر څو پټوم لوګی دې ځینه

لنډۍ د اهنګ یا غږ د هر ډول وزن تابع وي، په هر ډول چې یې اړوې اړول کېږي. غالباً د پښتونخوا په هر ګوټ او په هره قبیله کې بېلابېل اهنګ او وزن لري، لکه تیرایي، شلګري، ګرم سیري، پېښوري، کندهاري، وردګي او داسې نور او هم په مختلفو سیمو

کې دا په بېلابېلو طرزونو ویل کېږي چې تقریباً شاوخوا (۵۰) طرزونه لري، لکه: (یکه زار)، (یاقربان)، (راځه راځه) او داسې نور، د لومړۍ مسرې د لنډوالي د دویمې مسرې له اوږدوالي سره د برابرولو لپاره ویل کېږي او دا یې یو قسم د پېژندنې لار هم ده.

په لنډیو کې (باد) شخصیت پیداکوي داسې شخصیت چې کولای شي اوږدې لارې په لنډ وخت کې پرې کړي، هغه کولای شي د ګلونو وږمې او د لونګو خوشبویي د نړۍ یوې برخې ته ولېږدوي او یا دا چې له هر ځای ته، له هرې خوا څخه هرې خواته د غرونو، بیابان، سین، سمندر، صحرا د لوړو څوکو له لوري زموږ خواته او زموږ د کلیو کېږدیو، کروندو خواته تلای او راتلای شي هغه نه ستومانه کېدونکي وزرونه لري، د مینې او رفا استازی دی او د هر چا محرم ګڼل کېږي، له هغه نه هېڅوک خپل راز نه پټوي او هر څوک ربښتیا ورته وایي له همدې کبله (باد) په ولسي ادب کې د انسان د ټولو اسرارو عشقونو، غمونو او خوښیو شریک او شاهد دی.

یو وارې بیا په دې لار راشه

د سهار باده غرمې مړاوي کړل ګلونه

همدارنګه د تورو شپو او بې څراغه کېږدیو او جونګړو شاعران تر هر چا د سپوږمۍ او ستورو د رڼا او ځلا په ژبه ښه پوهېږي، نو له همدې امله په عاشقانه لنډیو کې سپوږمۍ هم د باد په څېر ژوند پیداکوي او د لنډیو د بې نومه شاعرانو د عواطفو نړۍ ته لار باسي او د عواطفو لطیفو انځورګریو په افاده او شکل موندلو کې مرسته کوي.

زما او ستا ترمنځ شول غرونه

سپينې سپوږمۍ ته سلام کړه سلام به کړمه

د لنډيو د زېږېدو او مرګ د چټکتيا او پراختيا اندازه د ټولنې د اجتماعي اقتصادي بدلون په سرعت او وسعت پورې اړه لري؛ هر څومره چې اجتماعي اقتصادي وده ګړندۍ او انقلابي وي هماغومره د نويو لنډيو د راپيداکېدو او د زړو لنډيو مرګ او يا بدلون هم ګړندی کېږي، خو ددې خبرې مانا دا نه ده چې لنډۍ په مشخص تاريخي فورماسيون کې په يوه ميزان او بې بدلونه پاتې کېږي، البته دا يوه اصلي او قانونمنده خبره ده چې کله يو اجتماعي اقتصادي فورماسيون بل اجتماعي اقتصادي فورماسيون ته ځای پرېږدي، د ټولنې په روبنايي قلمرو کې د ژورو انقلابي بدلونونو او تغيراتو لپاره زمينه برابرېږي، خو دا حتمي نه ده چې په اجتماعي سيمه کې دې ټول تغيرات حتی سطحي او جزيي تغيرات يوازې او يوازې هغه وخت منځته راشي چې يوه تاريخي مرحله بلې تاريخي مرحلې ته ځای پرېږدي. د فولکلور د ټولو برخو په ځانګړې توګه لنډيو په دې مشخص دوران کې د رازېږېدو له وخته بيا تر ننه پورې د يو روبنايي تابع جز په توګه پرله پسې تغير موندلی دی. په دې مشخص فورماسيون کې ډېرې لنډۍ هست شوي او ډېرې نشت شوي دي، نوي مضمونونه لنډيو ته ننوتي او ډېر زاړه اصطلاحات او لغات او ژبني علايم له لنډيو څخه لويدلي او پر دې سربېره هغه لنډۍ چې مدلول بهايې له منځه تللي او يا د خلکو له نظره لوېدلي دي په خپله هم هېرې شوي او مړې شوې دي. په دې جريان کې د ځينو لنډيو د ساقطېدو پروسه اوږده

شـوې او تـر قطعـي مـرګ پـورې يـې اوږده لاره وهلـې ده. پـه همـدې ردیـف کـې پـه قـوي احتمـال هغـه لنـډۍ شـاملې دي چـې د لنـډیو هستوونکو او يا د غاړو ايجادګر اخلافو د هغو په لومړۍ يا دويمه فقـره کـې تغیـر راوسـتی دی او د اصـلي لنـډۍ يـوه مهمـه برخـه يـې غورځولې ده، لکه:

زما د زړه صدف دې مات کړ

ځکه مې ويني په سينه وهي موجونه

زما د زړه صدف دې مات کړ

زه به تر سترګو مرغلرې تويومه

په دې دوو لنډیو کې چې واحده لـومړۍ مسـره لـري يـوه خامخـا تـر بلې مخکې ويل شـوې ده او د دويمـې لنـډۍ خپلـه لـومړۍ مسـره لـه هغـه نـه اقتبـاس کـړې ده، دا احتمـال ډېـر کمـزوری دی چـې دواړه لنډۍ دې د ويلو شاعرانو په عـين وخت کې ويلـي وي او کـه چېرې دغه مهال فرض ددې دوو لنډيو په باره کې ومنو، نو دغه دوه لنډۍ خو په خپله نـوع کـې يـوازېنۍ دوه جـوړه شـوې لنـډۍ نـه دي، بلکـې داسې لنډۍ ډېرې دي چې دوه دوه، درې درې او حتـی څلـور يـا تـر هغو زياتې په لومړۍ يا دويمه فقره کـې سـره يـو دي. پـر يـادو شـويو مثالونو سربېره داسې لنډۍ هم شته چې پـه دويمـه مسـرې کـې سـره يو شوي دي، لکه:

سترګې دې دواړه رانږدې کړه

چې په ژړا شي مرغلرې تويينه

تر خماري سترګو دې جار شم
چې په ژړا شي مرغلرې تويوينه
عالمه سترګو ته يې ګورئ
چې په ژړا شي مرغلرې تويوينه

له دې مثالونو څنې معلومېږي چې دا يو تصادفي شاعرانه توارد نه دی، بلکې ددې راوړل شويو فقرو مانا داده چې د هر مثال او هرې نمونې په لنډيو کې يوه لنډۍ تر نورو پخوا ويل شوې ده او دويمه، دريمه، څلورمه او نورې لنډۍ وروسته راپيدا شوي دي. د وروستيو لنډيو شاعرانو د لنډۍ لومړۍ برخه راخيستې ده او د لنډۍ دويمه برخه يې حذف کړې او په خپله يې له خپل ذوق او غوښتنې سره سمه هست کړې او ور اچولې ده. ددې تصرف لپاره ډېر علتونه اټکل کېدی شي، مثلاً د لنډيو هستوونکو د ذوق توپير، د ټولنيز موقف توپير، د دردونو او اجتماعي کورونو توپير، د زمان توپير، د عمومي ټولنيز انکشاف توپير، د کلي او کېږدۍ، فقر او رفاه او د طبيعي چاپېريال توپير او داسې نور ددې سبب شوي چې د لنډيو په دويمه مسره کې لاس ووهل شي او ددې منل شوي علمي اصل پر بنا چې انسان د خپل مادي چاپېريال مخلوق او د هغو طبيعي او اجتماعي مظاهرو بيانوونکی دی چې دی يې راچاپېر کړی دی په پخوانۍ لنډۍ کې لاس وهي او هغه د خپلې مشاهدې او تجربې او روحي غوښتنو د بيان چوپړ ته راکاږي، کله کله د لنډيو په فقرو کې توپير او بدلون د محلي او قبايلي يا داسې

نورو توپیرونو او ملحوظاتو په رعایت منځته راځي او قانوني عمق نه لري، لکه په دغو لنډیو کې:

یار مې د خوست زه د تیرا یم
خدایه خوست وران کړې چې جوړه تیرا له ځونه

او یا:

یار مې د کوټ زه د تیرا یم
خدایه کوټ وران کړې چې جوړه تیرا له ځونه

په دې لنډیو کې (خوست) د (کوټ) ځای نیولی یا ددې برعکس، خو په دې راز تصرف کې د لنډیو د هستوونکو محلي تمایلات داخل دي او د داسې ترمیمونو په لړۍ کې ناسخ او منسوخ د نوي او زاړه، د راتلونکي او تلونکي د تسلسل قانونیت نه شي مطالعه کېدی. دا ډول لنډۍ ډېرې دي چې خلکو د اصلي لنډۍ په اعلامو او نومونو د خپلو محلي تمایلاتو پر بنا بدلون راوستی دی او ددغه راز بدلون د لنډیو د مرګ او ترک کېدو په چانولو او حتمي کولو کې اغېزه نه لري. ځینې داسې لنډۍ هم شته چې سره ورته مضمون لري خو الفاظ او ترکیب یې توپیر ښیي، یانې داسې توپیر چې په محلي قبایلي او ټولنیزو مشخصاتو پورې اړه نه لري، بلکې داسې ښکاري چې دا توپیرونه د لنډیو د شاعرانو له ذوق، ادبي سلیقې او ذهني انګېرنو څخه راپیدا شوي او دا تغیر او بدلون که څه هم د بشپړې فقرې (مسرې) تر بدلون محدود او جزیي دی، خو د لنډیو د تاریخي او نه درېدونکي تحول د پروسې یوه جلوه اټکل کېدی شي، لکه:

نصیب تقدیر ته گناه نه شته
بخت چې کوټه شي تندی تل ډغرې خورینه
عالمه ماته گناه نه شته
بخت چې کوټه شي پاچاهان ډغرې خورینه

## کاکړۍ غاړې (کاکړۍ):

کاکړۍ غاړې چې کاکړۍ لنډۍ یې هم بولي، د پښتو ولسي ادبیاتو یو خوږ ډول دی، چې راز راز موضوعات (رزم او بزم) د پښتو ټولنیز، اقتصادي شرایط، کولتوري پابندي، دیني او عقیده یي مسایل، ساده ولسي افکار، ټوکې او ټکالې او د پښتني کولتور بېلابېل اړخونه، خویونه او رواجونه په خپله لنډه غېږه کې رانغاړي.
کاکړۍ لنډۍ که څه هم له نامه څخه یې له کاکړو سره تړلې معلومېږي، خو د ټولو پښتنو اصیل مال دی او په پښتو کې داسې قبیله نه شته چې د دې لنډیو په جوړولو کې یې لږه یا ډېره ونډه نه وي اخیستي، دغه ډول له نورو ټپو څخه یو جلا او بېل شی دی، چې لومړی وار کاکړو ننبلولي دي او تر ننه به زیات و کم پنځوس زره کاکړۍ لنډۍ جوړې شوې وي. کاکړۍ لنډۍ له دوو مسرو څخه جوړې وي، چې کله کله یې د دواړو برخو سېلابونه سره برابر او کله کله توپیر سره لري او د دواړو برخو وروستي توري یې سره یو رنګ وي. هغه کاکړۍ غاړې چې هره مسره یې اته اته سېلابه وي:

ښايستې که ستا رضا ده
ستا د قام بـدي پر مـا ده

د جوړښت د څرنګوالي له مانا دغـه غـاړې پر پنځـه ډولـه وېشـلای شو:

۱ - کرېږ غاړې: دا يې هغه ډول دی چې نه رديف، نه قافيـه او نـه هـم د څپو برابروالی په کې مراعتېږي، لکه:

زه نری، پاتو له ځمه
د رووب لوړې که دي ليار راکه

۲ - هغه ډول غاړې دي چې د څپـو شـمېر يـې برابـر وي او رديف هـم لري خو قافيه نه لري، لکه:

ازلي قلم مې خوار دی
سپينه ژوند مې په زوال دی

۳ - هغه ډول غـاړې دي چې د څپـو شـمېر يـې برابـر وي او قـافيـه هـم لري خو رديف نه لري، لکه:

پـــه اور دي سـتـي کـــورونـــه
خدای دې ژلګي کې لوی نذرونه

۴ - هغه غاړې دي چې قافيه او رديف دواړه لري او د څپو شمېر يې هم سره برابر وي، لکه:

په ربه ارمان به مړه سو
که به ګډ په پښتانه سو

۵ - ازادې غاړې دي چې پرتـه لـه وزن څخـه، نـه قافيـه لـري او نـه هـم رديف، لکه:

تر ساړه شمال دې جار شم
تــرپــې پــورتــه خــراسانــه

باید ووایو چې ولسي ادب ټاکلی تاریخي بنسټ نه لري او د ژبې، کلمو، رواجونو، انځورونو او یادولو څخه یې د وخت او لرغونتوب ښه اټکل کېږي. لکه موږ چې په لنډیو کې نمونې لرو.

که د خالو لښکرې راغلې
زه به ګومل ته د خپل یار دیدن ته ځمه

څنګه چې خالو د غزنوي محمود یو سر لښکر و او د ګومل پر لاره هند ته تلو راتلو او د خالو د لښکر پر یوه سرتېري مینه د خپل اشنا د دیدن لپاره ګومل ته ورتله، نو له دې څخه څرګندېږي چې دا لنډۍ د غزنوي محمود په زمانه کې جوړه شوې ده. دغه ډول ولسي ادب نور ژانرونه او کاکړۍ غاړې هم په دې توګه پېژندل کېدلای شي، د بېلګې په توګه یوه غاړه:

ونه کېږېږي د منو
تېر شول ډیلي له بر اسو

دلته د ډیلي د کلمې په یادونه کې ډیلي ته د لوی اتل احمدشاه بابا د تګ یادونه شوې ده، یانې دا غاړه هماغه مهال ویل شوې ده. په کاکړیو غاړو کې د خبرو اترو او ډراماتیکو غاړو ترڅنګ کله کله د یوې موضوع په اړه څو غاړې پرله پسې هم راځي لکه د کاکړو د یوه اتل او د انګرېزانو په مقابل کې د تکړه جنګیالي شېرجان کیسه چې د هر کاکړ تر غوږونو رسېدلې او تر خولې وتلې ده:

چې پاسنۍ تــې خــېژاوي
شېرجان سګرېټ ولګاوي

شېرجان خوی د غازي وکئ
د کـاکـړو رنګ یـې ښه کئ

د نورو پښتو ولسي شعري ژانرونو په څېر په کاکړيو غاړو کې هم د ښځې ونډه ډېره ده، دا ځکه چې لـه يـوې خوا پـه پښـتني ټولنـه کـې ښځې ډېرې محکومې او خـوارې دي، لـه بلـې خـوا پـه کـاکړيو نـارو کې د شاعر نوم ته د يادولو اړتيا نه شته.

مجبوري ده ناست يم
زړګی مې غوټ پرې کي ستا غم
له جانانه بېله سومه
لکه ګل ورژېد مه

په عمومي ډول ددې ډول فورم هندسي جوړښت داسې دی:

يو ډول:

=a_______________
=a_______________

بل ډول:

a_______________
a_______________

## اخځونه


۱- کوهار- د بوريوال کاکړو وېبلاګ.
۲- ستاسـو نـړۍ خپرونـه- بـي بـي سـي راډيـو د صـادق ژړک، غفـور لېوال او حبيب الله رفيع مرکه.
۳- د لنډيو په هکله د هارون حکيمي ليکنه.
۴- پښتو متون- د صابرخان خويشکي اثر.
۵- د پښتو ټپې- د سلمی شاهين اثر.

۶- پښتو لنډۍ- د سليمان لايق اثر.
۷- ښوونه- د علامه پوهاند استاد عبدالشکور رشاد اثر.
۸- د پښتو ځانتني ادب او موسيقي- د مرحوم غلام جيلاني جلالي اثر.
۹- د پښتو ادبياتو تاريخ- د سرمحقق زلمي هېوادمل اثر.
۱۰- د پښتو شعر هندسي جوړښت- د محمد اسمعيل يون اثر.

يادونه: ما په خپله ليکنه کې د پورتنيو يادو اثارو مطالعه کړې، د هغو له بېلابېلو مخونو څخه مې مانا او مفهوم را اخيستی او بيا مې خپله ليکنه پر همغو اساساتو درولې ده.

# په پښتو ادبياتو کې لومړنۍ ژباړه



په لومړۍ او دويمه اسلامي پېړۍ کې د پښتونخوا غربي خواوې او د غور ځمکې د پښتو ادب د پرمختګ او ودې زانګو وه او دغه سوري کورنۍ وه چې له دوی څخه د غور د شاهنشاهي مشهوره کورنۍ پيدا شوه او ډېر مشهور شاهان او فاتحان لکه: سلطان غياث الدين او معزالدين محمد او نور په کې راووتل او ددغې کورنۍ په وخت کې بيا غور د پښتو شعر او ادب ټاټوبی و، چې د دوی د دربار شاعران وروسته تاسې ته درپېژنو. له ټولو ادبي څېړنو څخه داسې ښکاري چې د پښتو لومړني اثار هم په دغو سيمو پورې اړه لري. محمد هوتک په پټه خزانه کې ليکلي:

((په لرغوني پښتانه کې هسې حکايت کا شيخ کته رحمه الله چې ابو محمد هاشم د هلمند په سروان کې پر (۲۲۳هـ.ق) زېږېدلی او په بست کې يې له علماوو او فقهاوو لوستنه وکړه او وروسته ولاړ په عراق کې يې په کلو کلو د لويو امامانو څخه سمع وکړه او ابن خلاد چې څرګند و په ابي العينا سره يې په بغداد کې عمرونه تېر کړل او له هغه يې د عربي بلاغت او اشعار ولوستل او په (۲۹۴هـ.ق) کې له عراقه بېرته راغی، درې کاله وروسته په بست کې وفات شو، نقل

کا: چې ابو محمد په عربي او فارسي او پښتو شعرونه ویل او هغه وخت چې دده استاد ابن خلاد ړوند شو، نو ده به یې خدمت کاوه او د هغه څخه به یې خواږه شعرونه په ادب کې د عربو اورېدل.
ابو محمد له عربي څخه په پښتو د خپل استاد ډېر شعرونه هم را اړولي دي.)) د لرغوني پښتانه اسناد دا بیان د ابو محمد هاشم علمي او ادبي ژوندون ښکاره کوي او داسې څرګندېږي چې د (**۳۵۵**هـ.ق) تر حدودو پورې د عربو مدنیت د عربي ژبې سلطه او د عربي ادابو او علومو اثر د پښتونخوا په اکثرو برخو کې خپور شوی و او ددې ځمکې غربي خوا تر ډېره تر دغه اثر لاندې وه، که څه هم په دغه عصر کې د برې پښتونخوا خلکو د ال طاهر (**۲۰۵- ۲۵۹**) تر بیرغ لاندې استقلال وموند او څه ناڅه د پارسي ژبې ادب هم په دغو زمانو کې ژوندی شو، خو عربي علمي، ادبي او درباري ژبه وه او پوهانو خپل اثار پر دغه ژبه لیکل. په خراسان کې د عربي ژبې ډېر لیکوال او پوهان وو، چې دوی د عربو د مدنیت او ادب په خپرولو کې ښه خدمتونه وکړل. مثلاً صالح بن عبدالرحمن سیستاني د حجاج بن یوسف په امر له (**۸۱-۸۷**) دواوین او دفاتر له پارسي څخه عربي ته نقل کړل او ډېر علما پر عربي علومو بوخت شول، لکه ابوخالد وردان کابلي موسوم په (کنکر) چې د علي بن حسین (**۴۲-۷۴**هـ) له ملګرو څخه و او د حجاج له ظلمه مکې ته وتښتېده یا شاد بن برد د عباسي دربار ړوند شاعر چې اصلاً د تخارستان او په (**۱۲۷**هـ.ق) کې وژل شوی دی. پټه خزانه چې وایي په کلو کلو د علم او ادب د زوکړې لپاره په بغداد کې مېشت و او د

عربو د ادب له هغه مشهوره استاذه يې استفاده کوله، کوم چې ابن خلاد نومېده او په ابي العينا معروف و.

ابو هاشم په سروان کې زېږېدلی او په بست کې يې ژوند تېراوه او هم هورې پر (۲۹۷هـ.ق) کال مړ دی. د پټې خزانې له ليکه ښکاري چې دا سړی دپښتو ژبې ليکوال هم و او ده په پښتو يو کتاب کښلی و چې په هغه کې يې د عربو د اشعارو فصاحت او بلاغت بيان کړی و او نوم يې د (سالو وږمه) و، متاسفانه چې دا کتاب اوس نه شته او د پښتو په منثور ادب کې چې د کوم لومړني کتاب نوم موږ ته معلوم دی، همدغه د (سالو وږمه) ده چې د (نسيم ريګستاني) مانا لري او داسې ښکاري چې دا کتاب به له عربي څخه د پښتو له لومړنيو تاليفاتو څخه و.

## د ابو هاشم اشعار:

ددې عالم او اديب سړي کوم شعر چې زموږ په لاس کې دی، د پټې خزانې په واسطه له (لرغوني پښتانه) څخه رانقل شوی دی، لکه دا کتاب چې تصريح کوي هاشم سرواني د درېيو ژبو شاعر و. هم يې په پښتو هم په عربي او فارسي اشعار ويل، خو دده عربي يا فارسي کوم شعر د پټې خزانې مولف نه دی رانقل کړی. که يې فارسي شعر زموږ په لاس کې وای، نو يقيناً به ددې ژبې له لومړنيو شاعرانو څخه هم وای. پټه خزانه ليکي: (ابن خلاد چې يو ظريف او اديب سړی و، په يوه شعر کې يې درهم ستايلی دی او ابو محمد هاشم دغه شعر داسې په پښتو را اړولی دی:

ژبــه هــم ښــه وينــا کانــدي چــې يــې وينــه
د خاونـــد پـــه لاس کـــې زر او درهمونـــه
ژبـــور ورلـــه ورځـــي وينـــا يـــې اوري
د درهـــم خاونـــدان تـــل وي پـــه وياړونـــه
درهـــم ژبـــه ده کـــه څـــوک ژبـــور کېـــږي
ده وســـله کـــه څـــوک پـــه کانـــدي قتالونـــه
کــه درهــم يــې ځينــې ورک ســي ســي نتلــی
بــې درهمـــو يـــې وي پـــه خـــړو پېژوندونـــه
کـــه بـــډای ســـونی وبـــولي خلـــک وايـــي
دا وينـــا ده ربښـــتيانيه لـــه ربښـــتونه
کـــه بېـــوزلي ووايـــي ربښـــتيا خبـــره
نـــور ووايـــي دا خـــو ســـونی دی تېرونـــه
هـــو درهـــم ښـــندي هـــر چـــا لـــه لويـــه برخـــه
د درهـــم د خاونـــد هـــر ځـــای پرتمونـــه.

دا اوه بيته چې زموږ لاس ته راغلي دي، په دريېمې هجري پېړۍ کې د پښتو ادب ډول، صبغه او رنګ راښيي که موږ د عربو د ادبي تاريخ کتابونو ته رجوع وکړو، نو هلته د ابن خلاد ذکر هرو مرو ګورو.

دا سړی د عربو مشهور اديب او ظريف سړی و، چې نوم يې محمد بن القاسم يا ابن خلاد بن ياسر بن سليمان او نيکه يې ابو عبدالله و. دی له لويو استادانو څخه روايت کوي او د پر مشاهير لکه سولي او

ابن نجیح او احمد بن کامل دده ادبي شاګردان دي. پر (۱۹۱هـ.ق) کال په اهواز کې وزېږېد او پر (۲۸۲یا ۲۸۳) په بغداد کې مړ شوی دی. په ځوانۍ کې ړوند شوی و، د عربي ډېر پاخه اشعار لري او ډېر حکامي اشعار او مضامین له ده رانقلېږي. سروان دهلمند د غاړې مشهور ښار و چې اوس یې ساروان کلا بولي او د هلمند پر شرقي څنډه د یوه کلي په ډول شته. ابن حوقل وایي چې د سیستان یو وړوکی ښار دی، مېوې، خرما او انګور لري.

# په پښتو لرغونو ادبیاتو کې قصیده

**سریزه:**



دا موضوع (په پښتو لرغونو ادبیاتو کې قصیده) د نورو موضوعګانو ترڅنګ د ګران استاد له خوا ماته د کورنۍ دندې په شکل راکړل شوې او ما هم د امکان تر بریده هڅه وکړه تر څو په دې اړه معلومات راغونډ او بیا وروسته پرې خپله ارزونه وکړم. په دې هیله چې راټول شوي معلومات دقیق زما او زما په شان د نورو زده کړیالانو په ګټه وي.

قصیده چې په پښتو کې ورته بولله وایي یوه عربي کلمه ده، چې مانا یې قصد کړای شوې ده او قصیده هغه شعري فورم دی چې غزل ته ورته دی خو په دومره توپیر سره چې د غزل بیتونه کم او د قصیدې بیتونه بیا تر (۱۲-۱۷) څخه زیات او اخري حد یې معلوم نه دی. د قصیدې لومړی بیت مقفی او د نورو بیتونو لومړۍ مسره یې بې قافیې او دویمه مسره یې د مطلع قافیه تعقیبوي او د موضوع له پلوه په کې هر ډول موضوعات رانغاړل کېږي.

په پښتو لرغونو ادبیاتو کې دوه داسې قصیدې چې یوه یې د پینځمې هجري پېړۍ او بله یې د شپږمې هجري پېړۍ په اوایلو کې ویل شوې تر دې دمه زموږ لاس ته راغلې دي. دغه قصیدې د تاریخ

سوري په حواله شيخ کټه په خپل (لرغوني پښتانه) او له هغه څخه محمد هوتک (پټې خزانې) ته نقل کړې چې اوس پرې د پښتو ادب چمن شين دی.

په دې قصيدو کې يوه د اسعد سوري قصيده ده چې په غور کې اوسېده او هلته يې د سوريانو د شاهي خاندان د پادشاهۍ په دوران کې ډېر عزت درلود. شيخ اسعد د محمد زوی چې وروسته بيا پر (۴۲۵هـ) کال په بغنين کې وفات شو، دغه قصيده د امير محمد سوري پر مړينه، چې د محمود غزنوي د لښکر له خوا بندي او وروسته بيا مړ شو ويل شوې او مرثيه يې بللای شو.

د ابن اثير په وينا دغه جنګ پر (۴۰۱هـ) په اهنګران کې واقع شوی و او شروع هم په داسې انداز کوي چې لومړی له فلک څخه شکايت کوي. د شيخ اسعد سوري دغه قصيده لومړی (۱۹) تمهيدي بيتونه لري او مطلع يې دا ډول ده:

د فلک له چارو څه وکړم کوکار
زمولوي هر ګل چې خاندي په بهار

شيخ اسعد وروسته بيا فلک مخاطب ګرځوي او فلک ته دغه ډول خطاب کوي:

څه تېری څه ظلم کاندې ای فلکه
ستا له لاسه نه دی هېڅ ګل بې له خار
په ويرژلو، لور نه کړې په زړه کراړيه
پر نتليو اوروې د غم ناتار

د دغو خطابي بيتونو شمېر ټول (۱۱) دی او تر دغو خطابي بيتونو وروسته شيخ اسعد په ډېر ماهرانه او استادانه ډول خپل اصلي

مطلب ته راځي چې هغه د امیر محمد سوري پر مړینه ویرنه او ماتم کول دي:

کلــه غــورځـــوې واکمن له پلازونو
کله کېنوې پــه خـــاورو کـــې بـــادار
زمونږ په زړونو دې نن بیا یو غشی وویشت
ودې ژوبللــه پـــه دې غـــشي هــــزار

شیخ اسعد په دغه قصیده کې د هغه وخت د سوریانو وضعیت چې د خپــل امیــر د مړینــې لــه املــه پــر دوی راغلــی و او دوی یــې ډېــر ځورولي او کړولي وو، ډېر په لوړ او هنري انداز سره انځور کړی او ترسیم کړی:

په دې ویر د غور وګړي تور نـمري سول
پـــه دې ویـــر رڼـــا تـیاره ســـوله د ښار
ګوره څاڅي رڼې اوښــې له دې غــرونــو
دا کـــړونګی سانـدې لـــي پـــه شورهار

ددې علت داسې بیانوي:

دا په څه چې محمد ولاړ له نړیه
په ویرنه یې سو غور ټول سوګوار

شاعر په ټوله قصیده کې په ټولو برخو کې هغه نکات په ډېر ښه انداز سره مراعات کړي چې د یوې ښې قصیدې لپاره اړین دي.
شاعر په پای کې دغه قصیده په دعایه سره پایته رسوي:

په جنت کې دې وتون زمونږ واکمنه
هــم پــه تـا دې وي ډېــر لور د غفار

## تحليلي کتنه:

قصيده چې يو مشهور شرقي شعري فورم دی او پخوا ډېر مروج و او داسې ښکارې ښکارې هم ليدل شوي چې دغه شعري فورم تر اسلام دمخه په اريايانو کې هم و او له عربي ادبياتو څخه فارسي ته را انتقال شوی دی.

د پښتو په لرغوني ادب کې شيخ اسعد سوري لومړنی سړی دی چې موږ ته معلوم دی، دده شعر د پارسي د همغه وخت د همعصرو شاعرانو له اثارو سره نږدېوالی، ادبي رابطه او قرابت لري.

دا خو ښکاره ده چې د (۴۰۰هـ.ق) په حدودو کې پارسي ادب د ساماني شاهانو په دربارونو کې ډېر ښه روزل شوی و او بيا وروسته د سلطان محمود غزنوي پر وخت قصيده ويل خپل عروج او د اوج نقطې ته رسېدلي وو او پر دغه وخت دغه ادبي فن پوخ او بشپړ شو.

پر دغه وخت د عنصري او فرخي او نورو پارسي ژبو شاعرانو له قصيدو سره که د شيخ اسعد قصيده پرتله شي نو دا په ګوته کوي چې په هغه وخت کې ددې دوو مدنيتونو يانې غزني او غور ترمنځ ضرور اړيکي موجود وو، ځکه د قصيدې ويلو اثر او ادبي ميلان په غور کې هم ليدل کېږي.

دا قصيده ډېر خصوصيات لري چې ځينې يې دلته ذکر کوو:

۱- دا قصيده د پښتو له خپلو اوزانو سره ډېر فرق لري البته د وزن او عروضي کيفيت له پلوه او د فارسي اوږدو قصيدو ته ورته ده.

۲- دا چې د پارسي په قصيدو کې د ګريز (اصلي مطلب ته ګرځېدل) ځانګړنه موجوده ده. دا قصيده هم د امير محمد سوري د وير په

بیانولو سره خپل اصلي مطلب ته ګرځېدلې او په لومړي سر کې یې د فلک غندنه کړې ده.

۳- په دغه قصیده کې که څه هم ډېر عربي او پارسي لغات په کې شته خو له دې سره سره ډېر پخواني او متروک پښتو لغاتونه هم ډېر دي چې اوس له استعماله غورځېدلي او داسې ښکاري چې په لرغوني دوره کې موږ په خپله ژبه کې ډېر لغات درلودل چې اوس مو له لاسه ورکړي او ځینې یې اوس هم د استعمال وړ دي.

۴- د دې قصیدې له سلاست، بلاغت او ادبي ښېګڼو څخه دا ښکاري چې اسعد سوري یو ډېر ښه مقتدر او زبردست شاعر و، چې د محمد د مرګ او پر هغه د خلکو د ماتم تصویر یې په ډېر ښه او لوړ هنري انداز ترسیم کړی او په ډېر ښه شان سره یې په قصیده کې ځای کړی دی.

۵- دا چې شیخ اسعد په دې مرثیه کې د امیر پر مړینه غم ښکاره کوي او د یو ډول ماتم ښکاره کوي، خو ترڅنګ یې بیا د غور د هغې طبیعي ښکلا یادونه هم کوي چې غور یې لري او هغه طبیعت په دې غم کې د غور له خلکو سره شریک ګڼي چې غرونه یې سپینې اوښکې څڅوي او ابشارونه یې د غم او ماتم سندرې وایي او هغه زرکې چې د غور په شنو ورشوګانو کې به یې د خوشالۍ او نشاط نغمې ویلې هغه هم د امیر پر مړینه خپه او پر زړه سوي انځوروي او د غاټول د ګلونو د نه شنه کېدو خبره کوي. شیخ اسعد دغه ټول انځورونه په ډېر ماهرانه ډول انځوروي.

۶- دا چې هغه مهال به شاعرانو او قصیده سرایانو ډېر کوښښ کاوه چې د خپل ممدوح ډېره ستاینه وکړي او د خلکو په نظر د هغه

مقام ډېر لوړ وښيي، نو له رنګ رنګ مبالغو څخه به يې کار اخيست، چې کله کله به داسې هم کېدل چې د زيات افراط له وجې به يې ځينې کېدونکې کړنې د معجزو درجو ته رسولې خو شيخ اسعد سوري د خپلې ځيرکتيا او هوښيارۍ په وجه له دغه ډول بې ځايه مبالغو څخه ځان ژغورلی دی.

۷- شيخ اسعد سوري که څه هم د امير پر مړينه د خپګان څرګندونه کوي خو د پښتو له عنعنوي او کولتوري بريده ځان نه اوباسي او د امير مړينه د ننګ او غيرت مړينه بولي او د هغه پر نامه د افتخار خبره کوي.

۸- شيخ اسعد سوري د امير مړينه د خلکو او وطن لپاره يوه ضايعه ګڼي، خو بالمقابل فرخي چې تر ده وروسته يې د غزني د تباهۍ په باب قصيده ويلې او د قصيدې په اخر کې د ځان په اړه فکر کوي چې د غزني دربار تباه شو اوس به شاعران څه کوي.

شعرا را بتو بازار بر افروخته بود

رفتی و باتو بيکبار برفت آن بازار

۹- اسعد سوري په دغه قصيده کې له غيابه څخه د مخاطب پر لور ډېر ښه التفات کوي، چې دې التفات يې دې قصيدې ته لا ښکلا ورکړې چې دا په هغه وخت کې ډېر مروج و.

په پښتو لرغوني ادب کې يوه بله مشهوره قصيده د ښکارندوی قصيده ده چې په پښتو ادب کې د يو شهکار حيثيت لري.

ښکارندوی د غور و او پلار يې چې احمد نومېده د فيروز کوه کوتوال و، په خپله ښکارندوی به کله په غور کې اوسېده او کله به په غزني او کله په بست کې اوسېده. په هر حال د ښکارندوی

کورنۍ د سلطان غیاث الدین او سلطان شهاب الدین په ستاینه کې چې ډېرې قصیدې یې ویلې دي او د غور د سلاطینو د دربار پښتون شاعر و او محمد بن علي د تاریخ سوري مولف لیکلي دي چې ما په بست کې د ښکارندوی د اشعارو او بوللو غټ کتاب ولید.

دا د پښتو قدیم قصیده ویونکی شاعر به تل د غور له سلاطینو سره په جګړو او جنګي سفرونو کې ملګری و او هم د دیوان خاوند دی.

دا قصیده هم هغه د سلطان شهاب الدین غوري په ستاینه او مدحه کې ویلې چې له هغه سره په یو جګړه ییز سفر کې چې د هند پر لوري یې کړی و، ملګری و.

دغه قصیده د قصیدې له هغو درېیو ځانګړنو څخه برخمنه ده چې پر درېیو برخو وېشل کېږي چې لومړی تشبیب، دویم د ممدوح توصیف او درېیم یې دعا یه ده.

ښکارندوی هم د قصیدې په لومړي سر کې د یوه قوي تشبیب په راوړلو سره قصیده پیلوي او په لومړي سر کې د پسرلي د ښکلاوو او ښکلو طبیعي منظرو، په غرونو کې د ګلونو او د ښېرازه دښتو تصویر انځوروي.

د پسرلي ښکلونکي بیا کړه سنګارونه
بیا یې ولونل په غرونو کې لالونه
مځکه شنه لاښونه شنه لمنې شنې سوې
طیلسان زمردي واغوستل غرونه

چې وروسته بیا په ډېر ځانګړي انداز سره د ګرېز مرحلې ته ځي:

نه به چونې په ستایه د ګلو مورِ سي
نه به مورِ سم د سلطان په صفتونه

او په اخر کې یې په دعایه سره پایته رسوي:

ستا په زیرمه دې خاونده لوی څښتن وي
مــورِ خو ستا په مرسته یونه څو چې یونه

## څېړنه او کتنه:

ښکارندوی په خپله قصیده کې د طبیعت د ښکلاګانو ذکر کړی چې په هغو کې د غرونو، دښتو، ګلانو، بلبلانو د مستو او سرشارو سیندونو چې په دې ټولو کې یې د وطن له ښکلو او په زړه پورې منظرو څخه الهام اخیستی او پر ده یې تاثیر کړی او بیا یې دغه ښکلاوې په خپل قوي تخیل او په ټول ادبي قوت له استعارو او نازکو تشبیهاتو سره یوځای کړي او د قصیدې په امېل کې یې اچولي دي.

د ښکارندوی د قصیدې د سلاست او بلاغت او په هغې کې له استعارو او تشبیهاتو څخه دا په زغرده څرګندېږي، چې ښکارندوی په ادبي فنونو او د بلاغت په علم پوه او یو مقتدر شاعر و.

ښکارندوی که څه هم یو درباري شاعر و او د غور د ښار اوسېدونکی و، خو شعري ژبه یې غرنۍ، پخه او کلکه کارولې او په قصیده کې یې ډېر پخواني پېچلي لغاتونه استعمال کړي چې دا د پښتو ژبې د شتمنوالي یوه لویه بېلګه ده.

ښکارندوی د پښتنو زلمیانو د غیرت او مېړانې کیسه او ددوی خدمتونه او سربښندنې چې د اسلام سپېڅلي دین لپاره یې کړي او

قربانۍ یې ورکړي، په دې قصیده کې په ډېر ښه شکل انځور کړي او په ډېر صراحت او وضاحت سره یې بیان کړي دي.
په پای کې ویلای شو، دغه دوه قصیدې چې د پښتو لرغوني ادبیاتو پورې تړلې قصیدې دي د هغه وخت درباري احترام په کې په ډېر ښه ډول مراعت شوی او دغه قصیدې په پښتو ادب کې داسې دوه غمې دي چې ځلا به یې تر ډېره وخته تته او کمه نه شي او تل به پرې ویاړو.

# د پښتو لرغونو ادبياتو ځانګړي اثار

## ((د سالو وږمه)):



ابو محمد هاشم سرواني د زيد سرواني زوی دی. دا سړی د پښتو پخوانی شاعر او عالم هم دی چې په ځانګړې توګه يې په عربي ادب کې لوی لاس درلود او د عربو د مشهور استاد (ابن خلاد) شاګرد و، په کلو کلو په عربي هېوادونو کې اوسېدلی دی.

هاشم پر (۲۹۴هـ) له عراقه راغی او په بست کې اوسېده او يو کتاب يې د عربو د اشعارو د بلاغت او فصاحت په بيان کې وکښن چې نوم يې (د سالو وږمه) و، يانې د (رېګستان نسيم) چې په پښتو کې (سالو) (ريګ) ته وايي او (وږمه) د نسيم په مانا ده. زموږ د اوسنيو معلوماتو له مخې دا د پښتو پخوانی کتاب دی، چې تر اوسه پورې موږ ته معلوم دي.

د پټې خزانې مولف يې د لرغوني پښتانه په حواله نوم اخلي او د هاشم سرواني له مولفاتو څخه يې ګڼي. نور نو موږ معلومات نه لرو چې ددې کتاب نثر څرنګه و او څومره و او نظم يې څومره و، خو يوازې د پټې خزانې د مولف له دغې ليکنې څخه داسې نتيجه

اخیستلای شو چې په پښتو ژبه قدماوو کتابونه لیکل او دا ډول په خپل وخت ډېر کتابونه موجود وو.
هاشم سرواني پر (۲۲۳) هـ کال زېږېدلی او پر (۲۹۷)هـ وفات شوی.

((تذکرة الاولیا)):

سلیمان ماکو د پښتو ژبې له پخوانیو لیکوالو او نثر لیکونکو څخه دی چې تراوسه معلوم شوی، دی یو لوی مقتدر لیکوال دی.
دی د بارک خان صابزي زوی و چې د کندهار په ارغستان کې اوسېده، د ماکو قوم تراوسه هم لږ تعداد هلته اوسي او په ابدالیو کې دا نوم شاملېږي.
سلیمان ماکو له دې قوم څخه یو پوه لیکوال راوتلی دی او د پښتونخوا په غرونو کې یې سیاحتونه کړي او د خپل وخت مشهور روحاني او ادبي رجال یې لیدلي دي. دی په خپله وایي چې پر (۶۱۲)هـ تللی وم او د پښتونخوا پر غرونو او رغونو گرځېدم او د لویانو مراقد مې لیدل او پلټل. داسې ښکاري چې سلیمان تر دغه مهم او گټور سفر وروسته موفق شو چې د پښتو د نومورو بزرگانو په باب یوه تذکره (تذکرة الاولیا) ولیکي او د دوی ویناوې او اشعار په دې کتاب کې خوندي کړي. دا کتاب متاسفانه اوس ورک دی، خو استاد عبدالحی حبیبي یې لومړي (۷) مخه پر (۱۳۱۹) هـ کال په کندهار کې موندلي وو او د هغو مخونو عکسونه یې د کابل په کالنۍ کې پر (۱۳۱۹هـ.ش) او بیا په پښتانه شعرا لومړۍ ټوک کې خپاره کړي دي.

سلیمان ماکو د پښتو پخوانی مورخ او نثر لیکونکی دی او دده د دغه ګټور کتاب څو مخه د پښتو ژبې او د ادبیاتو د تاریخ لپاره داسې ګټور ثابت شول چې د ادب او پښتو تاریخ یې تر ابده مرهون دی.

(( د خدای مینه)):

شیخ متی یو زاهد، عابد او تصوفي شاعر و، ده خپل لوړ او جمالي اشعار په یوه ټولګه کې کښلي وو، چې نوم یې د (خدای مینه) و.
د محمد هوتک په قول شیخ متي دا کتاب په غونډان کې کښلی او خپل شعرونه او مناجات یې په کې راټول کړي وو. کله چې شیخ متي وفات شو، نو دده ارادتمندانو هغه کتاب دده پر مزار کېښود چې د کلات د غونډۍ پر سر واقع دی.
کوم خلک چې به دده د مرقد زیارت ته ورتلل، نو له هغه زیارته به یې دا کتاب اخیسته او د شیخ متي مناجات به یې لوستل. وروسته څرګنده نه شوه چې کتاب څه شو، خو ویل کېږي چې د مغولو د تاړاک له وجې دا کتاب ورک شو. د شیخ متي دا کتاب اوس ورک دی، یوازې یو عرفاني شعر له هغه څخه په پټه خزانه کې موږ ته پاتې دی، له دې شعر څخه ښکاري چې دغه کتاب د (خدای مینه) یوه مجموعه وه، چې ډېر موثر اشعار په کې غونډ شوي وو.
محمد هوتک وایي: ((وګړیو به هغه پاڼکي غړول او هر چاته به یې چې ویل، نو هغوی به ژړل.)) د مغولو تاړاک ډېر علمي او ادبي ذخایر زموږ له لاسه ایستلي دي، دا کتاب هم د هغه عصر له

ضایعاتو څخه دی او که محمد هوتک په خپله خزانه کې نه وای یاد کړي نو اوس به یې نوم هم ورک و.

## لرغوني پښتانه:

دا د موفق مورخ او د پښتو ژبې لوی لیکوال شیخ کټه اثر دی چې د مرحوم شیخ متي له علمي او ادبي کورنۍ څخه و، چې د شیخ یوسف زوی او د شیخ متي لمسی و.

شیخ متي (کلات بابا) خپلې کورنۍ ته علم، تقوا، عرفان او ادب په ارث پرېښودل او ډېر علما، مورخان او عارفان په کې پیدا شول، چې شیخ کټه په دوی کې ډېر مشهور و.

د شیخ کټه مور بي بي (مراد بخته) نومېده چې په خټه زمنده وه، نوموړي عالم د پښتو د رجالو او مشاهیرو په تاریخ کې یو مهم کتاب وکښن چې نوم یې (لرغوني پښتانه) و.

دا کتاب پښتو و او د پټې خزانې مولف محمدهوتک ډېر ځله دا کتاب یادوي او داسې ښکاري چې ددغه مورخ مهم ماخذ هم دغه و او د پټې خزانې د لیکلو پر وخت یې دا کتاب په لاس کې و.

له (لرغوني پښتانه) کتاب څخه د پټې خزانې په ذریعه دغه مغنم مواد موږ ته پاتې دي.

۱- د امیر کروړ احوال او اشعار چې شیخ کټه هم له تاریخ سوري څخه اقتباس کړي دي.

۲- د شیخ اسعد سوري احوال او اشعار چې شیخ کټه هم له تاریخ سوري څخه اقتباس کړي دي.

۳- د ښکارندوی احوال او اشعار چې شیخ کته هم له تاریخ سوري څخه اقتباس کړی دی.
۴- د هاشم سرواني احوال او اشعار.

((تاریخ سوري)):

ددې اثر لیکوال محمد بن علي البستي دی. احتمالاً چې د مغولو د تاړاک په ابتدا کې به ژوندی و. دده په باب ډېر معلومات نه لرو. پرته له دې چې د هلمند د غاړو یو سړی و او د تاریخي بست اوسېدونکی و، پلار یې (علي) و او ده یو کتاب لیکلی و، چې د سوریانو پاچاهانو احوال یې له قدیمه په کې ضبط کړي وو.

((تاریخ سوري)) اوس ورک دی، یوازې د پټې خزانې مولف یې د شیخ کته متي زي د (لرغوني پښتانه) په حواله نوم اخلي او داسې ښکاري چې دا کتاب د شیخ کته په لاس کې و، او په (لرغوني پښتانه) کې یې ډېر مواد له دغه کتابه رانقل کړي دي.

د (تاریخ سوري) یو څه ابحاث او محتویات موږ ته په دوو واسطو لاسته راغلي دي؛ شیخ کته په (لرغوني پښتانه) کې ځینې رانقل کړي دي او له (لرغوني پښتانه) د پټې خزانې مولف محمد هوتک په خپل کتاب کې رااخیستي دي. هغه مواد او پاتې اثار دادي:

۱- د امیر کروړ احوال او دده یو قدیم حماسي سفر او ویاړنه.
۲- د اسعد سوري احوال او دده قصیده.
۳- د ښکارندوی احوال او دده قصیده.

له دغې پاتې اثارو څخه ښکاري چې محمدبن علي په تاریخ او پښتو ادب کې ښه او ثقه معلومات درلودل.

لکه (لرغوني پښتانه) چې له ده څخه روایت کوي. دی یو ادیب او څېړونکی سړی و او په بست کې یې د ښکارندوی د قصایدو یو غټ دېوان موندلی دی او له هغه څخه یې دده یو غرا قصیده په خپل (تاریخ سوري) کې رانقل کړې ده.
داسې ښکاري چې د محمدبن علي (تاریخ سوري) مشهور و او شیخ کته هم دا کتاب د غور په (بالشتان) او (الشتان) کې موندلی و او تر دغه عصره د (۷۵۰هـ) حدودو کې لادا کتاب موجود و.
په پښتو لرغونو ادبیاتو کې نور ځانګړي کتابونه هم لیکل شوي، چې اکثره یې د زمانې ناخوالو له منځه وړي دي. دا څو یې چې ما یاد کړل، دا هغه کتابونه وو چې د زمانې بادونو یې اکثره څه برخه له منځه وړې، خو بیا یې هم تر موږه څرک رارسېدلی او یو څه برخه یې لاخوندي پاتې شوي ده. ښه به وي چې دلته د پښتو لرغونو ادبیاتو د وتلو څېرو نومونه واخلو. دوی هر یو پر خپل وخت ځانګړي اثار لیکلي خو بېلابېلو ناتارونو یې اثار له منځه وړي دي.

## د پښتو لرغونو ادبیاتو شاعران، لیکوال او ادیبان:

۱. امیر کروړ پهلوان
۲. هاشم زید سرواني
۳. شیخ رضي لودي
۴. نصر لودي
۵. بېټ نیکه
۶. اسماعیل سړبن
۷. خرښبون
۸. شیخ اسعد سوري
۹. شیخ تیمن کاکړ
۱۰. ښکارندوی غوري
۱۱. ملکیار غرشین
۱۲. تایمني
۱۳. قطب الدین بختیار
۱۴. شیخ متي

۱۵. باباهوتک
۱۲. شیخ ملکیار هوتک
۱۷. اکبر زمینداوري
۱۸. سلطان بهلول لودي
۱۹. خلیل خان نیازی
۲۰. زرغون نورزی
۲۱. زرغونه کاکړ
۲۲. رابعه
۲۳. دوست محمد کاکړ
۲۴. شیخ عیسی مشوانی
۲۵. شیخ بستان بړیځ
۲۲. علي سرور لودي
۲۷. مېرمن نېکبخته
۲۸. شیخ محمد صالح الکوزی
۲۹. سلیمان ماکو
۳۰. محمدبن علي البستي
۳۱. احمد لودي
۳۲. شیخ کته
۳۳. شیخ ملي
۳۴. زرغون خان

او داسې نور شاعران او ادیبان، خو ما یې دلته د ډېرو مهمو او مطرحو هغو یادونه وکړه.

# په لرغونو ادبیاتو کې پښتو غزل



زموږ په پښتو ادبیاتو کې غزل نږدې اوه سوه کلن تاریخ لري. د پښتو لومړنی لاسته راغلی غـــزل د اکبـــر زمینـــداوري دی، د اکبـــر زمینداوري د دیوان په لاسته راغلو پاڼو کې د پښتو دوه غزلې هم شته.
غـزل د شـرقي شـاعرۍ ترټولـو غـوره او منـل شوی شعري فورم دی چې د اکبر زمینداوري تر غزلو دمخه په پښتو کې موږ د غزلو بېلګه نه لرو. که چېرې موږ په پښتو ادب کې د غزل تـاریخ پـه اړه څه لیکو، نو پیـل بـه یې د اکبر زمینداوري لـه غزلـو کوو، چې په اتمه هجري پېړۍ کې ویل شوی دی. د اکبر زمینداوري غزلې په تول پوره او د شرقي غزل کره وړه لري، د اکبر زمینـداوري غزلونـه یـو یـې پنځـه بیتیـزه او بـل یـې اووه بیتیـزه دی. د شـرقي شـاعرۍ شـعر پېژنـدونکي عقیـده لـري چـې زیـاترو شـرقي ژبـو د لومړنیو غزلو بیتونه کم وو او تر اوو بیتونـو یـې تجـاوز نـه کـاوه. (د پښتـو غـزل) د کتـاب مولف پروفیسـور افضـل رضـا پـه قـول د اکبـر زمینـداوري د غزلـو ژبـه یـې خـوږه او خیـالات یـې ژور دي، د اکبـر زمینداوري له دوو لاسته راغلو غزلو څخه یو دلته راوړو:

د خپــل ځـــان لـــه حيرانـــۍ څـــه ويـــل کـــړم
د عشـــق ويـــر بـــه تـــل پـــه خپلـــه پټـــول کـــړم
مـــا مـــدام لکـــه بـــورا پـــر ګلـــو ګشـــت کـــړ
اوس بـــه څـــم پـــه ســـر تـــور ســـر فـــراق د ګـــل کـــړم
د غمـــاز لړمـــون بـــه زه پـــه لمبـــه کېـــږدم
څنـــې هېـــر بـــه د يـــار بـــزم ګـــل او مـــل کـــړم
زمـــا د يـــار د مينـــې اور پـــه زړه کـــې بـــل دی
زه بـــه ســـر او مـــال ښـــندم ديـــد بـــه حاصـــل کـــړم
د بېلتـــون لـــه ويـــره ژاړم اوښـــکې وينـــې
زه اکبـــر پـــه خپـــل اشـــنا د ســـر ښـــندل کـــړم.

تـر دې مخکـې پـه دريېمـه هجـري پېـړۍ کـې د ابـو محمـد هاشـم سرواني البستي ژباړه ده چې د خپل استاد ابن خلاد شعر يې پښتو ته ژباړلی دی چې د فورم لـه مخې غزل او قطعې تـه ورتـه شعر دی خو محتوا يې د غزل نه ده، ځکه چې د غزل موضوع کې عشق، مينه او داسې نور مسايل رانغښتل کېږي.

په لسمه هجري پېړۍ کې موږ له افغانستان او پښتونخوا څخه ډېر لـرې د هندوسـتان پـه سـيمه کـې درې پښـتانه شـاعران پېژنـو چـې درېواړه لوی صوفيان، عابدان او زاهدان وو او کومې غزلې چې لـه دوی څخه راپاتې دي، د تصوف او عرفاني افکارو بيـانوونکې دي.

لـه دغـو شـاعرانو څخـه شـيخ عيسـی مشـواڼي چـې د هندوسـتان پـه (داملـه) کې يې ژوند کاوه د افغان پاچا شېرشاه سوري معاصر و، ده

په پښتو، پارسي او هندي ژبو يوه ګډه رساله ليکلې وه چې دا رساله منظومه وه او يوه درې بيتيزه کوچنۍ غزله يې دلته راوړو:

پـه خپلـه کـار کـړې پـه خپلـه انکـار کـړې
کلـه بـادار يـم کلـه مـې خـوار کـړې
تـه خـو قـادر يـې پـه صـفتونو
کلـه مـې نـور کـړې کلـه مـې نـار کـړې
عيسـى حيـران دى پـه دې شـيونو
کلـه مـې يـار کـړې کلـه اغيـار کـړې.

له دغو څو محدودو بيتونو څخه دا راڅرګندېږي چې غزل د مينې او عشق له محتوا څخه د تصوف او عرفان موضوع پر لوري ګام اخيستى او د شيخ عيسى مشوانې وينا د خواجه عبدالله انصاري پير هرات مناجاتو ته نږدې والى ښيي او بل عارف شاعر شيخ علي سرور لودي دى چې محمد هوتک په پټه خزانه کې د تحفة صالح په حواله دده يوه صوفيانه غزل را اخيستى دى:

محبـت پيالـه مـې نـوش کـړه پـه مجـاز کـې
د حـق نـور ويـنم پـه سـترګو د ايـاز کـې
درسـت وطـن راتـه دريـاب سـو بـې ديدنـه
ديـد مـې نـه شـي مګـر خـداى مـې سبب ساز کـې
کـه زه مـړ شـم هـم لـه ګـوره کـړم سـر پورتـه
ناګهانـه چـې دلبـر راتـه اواز کـې
کـه مـې سـر غـوځ د رقيـب پـه تېـره تېـغ سـي
هـم بـه څـم کـه دلبـر غوښـت پـه مهـرو نـاز کـې

زه ویـــار مــــدام ناســـت وو یـــو لـــه بلـــه
پـــر غمـــاز دې بـــاري کـــانې د غـــم ســـاز کـــي
ګـــران بېلتـــون بـــه د هغـــو مینـــو وینـــه
چـــې تـــل ناســـت وي پـــه خلـــوت کـــې ســـره راز کـــي
ای (ســـروره) غمـــازان ســـوه بـــې حســـابه
پـــاک الله دې صـــورت تـــش بـــې مغـــزه پیـــاز کـــي.

په پورته غزل کې هم د تصوف او عرفان مضمون پروت دی، چې د شیخ علي سرور لودي له عرفاني اشعارو ځخه بلل کېږي. د شیخ محمدصالح یو غزل دی چې د کندهار د هغه وخت د صوبه دار (شاه بېګ د غوښتنې په ځواب کې یې لیکلی او ورلېږلی دی، دده په غزل کې یو ډول عارفانه استعمال لیدل کېږي، چې دلته د شیخ محمدصالح د غزل راوړل ضروري بولم:

د لیلـــی د مینـــې فـــیض هـــر ســـبا وړم
بېهـــوده منـــت بـــه ولـــې د بـــل چـــا وړم
چـــې اشـــنای د شـــپې ناڅاپـــه پـــه لاس کښېـــوت
روښـــان زړه پـــه ګوګـــل پـــټ لمـــر پـــه ســـما وړم
پـــر دنیـــا کـــه تجـــارت څـــوک د دنیـــا کـــي
زه د زړه پـــه بـــازار بـــار د عشـــق ســـودا وړم
کـــه پـــر تخـــت مـــې د ســـلیمان ســـپور کـــړې ســـړیه
عاقبـــت خـــاورو تـــه ښـــه عمـــل پیشـــوا وړم
بـــې لـــه عشـــقه خوشـــحالي پـــر مـــا حرامـــه
زه صـــالح کـــه پـــه خولـــه خـــوښ پـــه زړه ژړا وړم.

د پښتو ادب تاریخ لومړی دوره (لرغوني دوره) له دویمې هجري پېړۍ څخه پیل او د یوولسمې هجري پېړۍ تر لومړیو پورې رسېږي. په دې دوره کې موږ په شکلي او موضوعي لحاظ د غزل د انکشاف څرک ایستلای شو. د مضمون له پلوه هم غزل په دې دوره کې پوره پرمختیا موندلې ده؛ د ژوند بېلابېل موضوعات په کې بیان شوي دي، لکه د رزم او بزم خبرې، دیني او عرفاني موضوعات، عشقي او داسې نور.

# پر پښتو لرغوني ادب د عربي ژبې اغېزه



پر پښتو لرغوني ادب باندې د عربي ژبې اغېزې شته او ددې اغېزو مهم لاملونه په لاندې ډول ښودل کېږي:

الف- په هغه زمانه کې چې عربو په نړۍ کې څواکمني درلوده، نو طبعاً یې پر پښتو ژبه هم خپل تاثیر لرلی دی.

ب- د عربي خلفاوو یرغلونه پر افغانستان باندې.

ج- نورې نړۍ ته د اسلام خپرېدل چې په دې کې د افغانستان پښتني سیمې هم شاملې وې.

د- عربي نړۍ ته د پښتنو شاعرانو سفرونه، چې دې هم پر پښتو اغېز لرلی دی او همدغو شاعرانو ځینې عربي کلمې زده کړې او بیا یې په خپلو ادبي اثارو کې استعمال کړې دي.

هـ- پر هغه وخت د عصري زده کړې نه شتون او د دیني زده کړې پر مختګ چې په جوماتونو او مدرسو کې نرینه او ښځینه وربانديې بوخت وو، دې هم پر پښتو لرغوني ادب باندې اغېز لرلی دی.

اوس د ځینو هغو کلمو چې له عربي څخه پښتو لرغوني ادب ته راغلې دي، یادونه کوو.

**درهم**: عربي کلمه ده او د پیسو په مانا ده، خو دلته ابومحمدهاشم بن زید سرواني البستي چې د (**۲۹۴**هـ.ق) په شاوخوا کې یې په خپل ژباړلي شعر کې راوړې ده.
**قتالونه**: دا هم عربي کلمه ده، چې ابومحمدهاشم سرواني په خپل ژباړل شوي شعر کې راوړې ده.
**الحاد** : عربي کلمه ده چې نصر لودي په خپل پاړکي کې خپل تربور شیخ رضي ته لیکلې.
**ملحد** : داکلمه هم په دې پاړکي یانې د نصر لودي په پاړکي کې راغلې ده، عربي کلمه ده.
**سنتي**: دا کلمه هم په همدې پاړکي کې شیخ رضي راوړې ده او یوه عربي کلمه ده.
**مومن**: کلمه په همدې پاړکي کې یوه عربي کلمه ده چې د پښتو مانا یې مسلمان ده. دې ته ورځېرمه د تایمني په سندره کې چې په **۵۸۰** کال شاوخوا کې یې لیکلې وه هم ځینې عربي کلمې شته چې په لاندې ډول یې ښودلی شو.
**صفت**: دغه کلمه تایمني په سندره کې راوړې ده چې یوه عربي کلمه او پښتو مانا یې ستاینه ده.
**ملک**: دا هم یوه عربي کلمه ده چې تایمني په خپله سندره کې راوړې ده.
همدارنګه د ښکارندوی قصیده کې هم عربي کلمې شته چې باید یادوته ترې وکړو:

**مسیح**: عربي کلمه ده چې ښکارندوی په خپله قصیده کې راوړې ده.

همدارنګه ښکارندوی په دې قصیده کې ځینې نورې عربي کلمې هم راوړې دي لکه (جنت، سلطان، اسلام، دین، شهاب) چې ټولې عربي دي.

پر دې قصیدې سربېره د شیخ اسعد سوري په قصیده کې چې د دریمې هجري پېړۍ په درشل کې ویل شوې ده، هم عربي کلمې پرتې دي، لکه: (فلک، ظلم، امیر، قبر، جنت، غفار). ټولې عربي کلمې دي چې په دې قصیده کې پرتې دي. همدارنګه تر دې وروسته د خلیل نیازي او بهلول لودي په رباعیانو کې هم ځینې عربي کلمې تر سترګو کېږي، لکه: (مرحبا، عدل) کلمې چې عربي دي.

همداراز که له نظم او شعر څخه تېر شو د پښتو لرغوني ادب په نثر کې هم ځینې عربي کلمې شته چې باید سترګې ترې پټې نه کړو، ځکه چې زموږ ادیبانو یا لرغونو ادیبانو تر ډېره حده دیني زده کړې کړې وې او زیاتره یې علما او متصوفین وو، نو ځکه یې په خپل نثر کې ځینې عربي کلمې هم راوړې دي، لکه د سلیمان ماکو په تذکرة الاولیا کې هم ځینې عربي کلمې تر سترګو کېږي چې په لاندې ډول یې ښودلی شو: د (حمد، کونین، ثقلینو، رحمتونه، آل، امابعد، مراقد، اولیاء) ټولې عربي کلمې دي چې په دې تذکره کې یې راوړي.

ډېر نور داسې نثرونه هم شته چې په هغو کې له عربي کلمو څخه کار اخیستل شوی دی. په پټه خزانه کې هم عربي کلمې شته چې په لنډ ډول به ورته اشاره وکړو، (حقیر، فقیر، مولف، معمر، علیین، مکان) چې ټولې عربي کلمې دي. همدارنګه څو نورې کلمې چې عربي دي:

(معرفت، جنت) هم عربي کلمې دي. دا چې په دې اندازه عربي کلمې په پښتو کې شاملې دي، نو په واضحه توګه ویلای شو چې پر لرغوني ادب باندې عربي ژبې خپل اغېز لرلای دی.

# په پښتو لرغوني ادب کې ملي وزنونه او فورمونه



دا چې موږ په لرغوني ادب کې پر ملي وزنونو او فورمونو خبرې کوو، باید ملي وزنونه او فورمونه تعریف کړو. څېړونکو د ملي وزنونو او فورمونو تعریف داسې کړی: ((ملي وزنونه او فورمونه هغه دي چې ځانګړی طرز او طریقه لري او د عربي وزنونو تابع نه وي او دې ته ملي وزنونه هم ویل کېږي.)) په لاندې ډول ورباندې خبرې کوو:

**۱ - لنډۍ**: لنډۍ د وخت په تېرېدو سره خپل ویونکي له لاسه ورکړي دي، نو ځکه یې ویونکي معلوم نه دي، خو پر همغه وخت د یو چا له خوا ویل شوې ده او تر موږه رارسېدو پورې یې خپل ویونکي ورک کړي دي.

لنډۍ د پښتو د لرغوني ادب هغه بډایه برخه ده چې ټول پښتانه یې پېژني او بلدتیا ورسره لري. په لنډۍ کې دومره قوت او زور پروت دی چې په نورو ملي وزنونو کې نه شته او دا ملي نظم یوازې پښتو ژبه لري او د نړۍ نورې ژبې یې نه لري. د څېړونکو له خوا لنډۍ داسې تعریف شوې ده: ((لنډۍ یوه دوه مسریزه منظومه ده، چې لومړۍ مسره یې لنډه (نهه) سېلابه او دویمه یې دیارلس سېلابه

(هجا) ده او پر هر څلورم سېلاب یې خج راځي)). لنډۍ د خلکو له خوا په (ټپه، مسره، ټیکۍ) هم یاده شوې ده، لنډۍ د مانا په لحاظ زیات ډولونه لري، لکه عشقي، پسرلنۍ، د بېلتون، مساپرۍ، حماسي، د خوشالۍ لنډۍ او داسې نورې...
لنډۍ ډېر لرغونی تاریخ لري، خو دلته موږ یوه لنډۍ د نمونې لپاره راوړو چې د اریایانو په وخت کې ویل شوې ده:
سپوږمیه کړنګ وهه راخېږه
یار مې د ګلو لو کوي ګوتې رېبینه
**۲ - بګتۍ**: دا هم د پښتو د ادب یوه غوره برخه جوړوي. بګتۍ د پښتو د ولسي نظم یوه خوندوره او ښکلې برخه ده. د بګتیو وزن هم د لنډیو په شان ښکلی او خوندور دی او دا داسې یو ساده، چست او روان شعر دی چې د اورېدونکي او ویونکي وجود په حرکت راولي او یو هیجان په کې پیدا کوي. زیاتره په ټیټ او تېز اواز سره ویل کېږي، د بګتیو کسر د ځینو چاربیتو او ځینو بدلو پرخلاف اکثره یو بیت (دوه مسرې) وي او اکثره وخت په قافیه کې هم دواړه مسرې سره برابرې وي. د بګتۍ هر بند غالباً څلور مسرې وي چې د هر بند دوه لومړۍ مسرې یې په خپل کور کې بېله قافیه لري او څلورمه مسره یې له کسر سره موافقه وي او زیاتره بګتۍ د ولس او خلکو په سندرو کې ستره ونډه او لوړ مقام لري.
دلته به د طالب جان بګتۍ د نمونې په ډول راوړو:

دا تـــورې ســـترګې ســـره تېرېـــږي
لــــه حالـــه زمـــا کلـــه خبرېـــږي

دا تـــورې ســـترګې ســـره لاســـونه
پـــه بـــام ولاړه کـــوې ســـيلونه
وربـــل کـــې ايښـــي تـــازه ګلونـــه
مـــوزې دلـــه ځـــان بـــه تـــرې جـــاروې
تومـــت د جينـــۍ کړمـــه بيمـــار
د خيالـــه کـــوې ډول او ســـينګار
ځـــرک وريـــې ګرځـــي د پـــلار
ورځـــي طالـــب جـــان، نـــه ايســـاروې.

**۳- بدلې**: عموماً پښتانه ورته غزلې وايي او په همدې نامه يې شهرت موندلی دی. بدلې د پښتو د ولسي نظم او د خلکو د سندرو يوه اغېزناکه او زړه وړونکې برخه ده. بدلې په ډېرې چستۍ او تونديۍ سره ويل کېږي او د اواز سستي او د اهنګ اوږدوالی په کې نقصان پيدا کوي. د بدلو موضوع غالباً د مينې او محبت موضوع ده او هرومرو د مينې کلام دی.

بدلې په خپل قالب کې د مسريو د شمېر او د مسريو د اوږدوالي، لنډوالي او برابروالي پر اساس په ډېرو نورو برخو وېشل کېږي، چې مهم ډولونه يې په لاندې ډول دي:

الف- هغه بدلې چې هر بند يې دوه دوه مسرې لري، لکه د زرجان د بدلې نمونه:

تور بخمل د تورو وربځو پر سر خور کړه
د سهار شبنم وربږي بلبل شور کړه

د خزان ګل غوندې شومه هسې مړاوی
یا مې موړ که په دیدن یا مې ځای ګور کړه
په ارمان ارمان به لاړ شم ګورستان ته
شاه صنمې نور بس له تېري زور کړه
ب- هغه بدلې چې هر بند یې څلور لنډې او په یوه وزن مسرې ولري، لکه د خسرو یوه بدله:
مجنون په شانته ګرځم
د لیلا پسې دېوانه
ځنګل په ځنګل سر شوم
هېڅ اګاه نه شوم له ځانه
ترپایه...

ج- هغه بدلې چې هر بند یې څلور مسرې وي، چې لومړۍ مسره یې نهه یا لس سېلابه، دویمه یې همدومره سېلابه په هماغه وزن او هماغه قافیه، دریيمه مسره یې پنځه سېلابه په بېل وزن او بېله قافیه او څلورمه مسره یې څوارلس یا پنځلس سېلابه په بېل وزن او د کسر په قافیه کې وي، لکه د عبدالسلام بدله:
په دواړو لاسو مې نیولې ستا لمن محبوبا
په دواړو لاسو محبوبا
منګول به ستا په لمن کېږدم، وطن به واړه تاته پرېږدم
که مې روزي شوه
هغه وعده چې کړې تا د انجمن محبوبا - ترپایه...

پېزوان دې زانګې په سرو لبانو
لب دې خوراک دي د ميخوارانو
که دې رانه کړه
ناره به واورې په زړګي يمه خوږمن محبوبا
د بدلو ډولونه تقريباً پنځلسو ته رسېږي:

**سندرې**: سندرې هم د پښتو ادب يوه مهمه او غوره برخه ده چې زياتره د بېسواده خلکو او وګړو له خوا ويل شوې دي. سندرې د پښتو په منظمو ادبياتو کې راځي چې استاد حبيب الله رفيع پر دوو برخو وېشلې دي:

**۱ - عامې سندرې**: هغه سندرې چې ويونکي يې د وخت په تېرېدو سره ورک او نا معلوم دي او په ګرد ولس پورې اړه لري، لکه (لنډۍ، سروکي، نارې، لنډکۍ، د بنادۍ بدلې او نور).

**۲ - خاصې سندرې**: دا هم د بېسواده وګړو له خوا ويل شوې دي، چې شاعران يې معلوم دي، لکه چاربيتې، بدلې، بګتۍ، لوبې، داستان، مقام، کسرونه او نور. پرته له دغو څخه نور ډولونه هم لري، لکه د ميندو سندرې، د ماشومانو سندرې.

د ميندو سندرې چې اکثره وخت يې ميندې د خپلو ماشومانو د روزلو، ويده کولو، کرارولو په وخت کې ورته وايي، لکه د ماشوم د ويده کولو په وخت کې:

اللو-للو، پيشو-پيشو مه راځه له غرو، پلانکی جان داسې ويده دی لکه ګوډی د رنجو.

د ماشومانو سندرې چې کله ماشومان لږ غوټکي او پر خبرو راشي نو دوی هم یو لږ سندرې لري چې نمونه یې داده:

لادې پړی، دوه دې رخړی
څو نیسې؟ وچه، درغلم په پچه
څو نیسې؟ لنده، درغلم په بنده

او داسې نورې د میندو او ماشومانو سندرې شته.

**لوبې**: لوبې هم د پښتو نظم یوه خوږه، خوندوره او زړه وړونکې برخه ده. لوبې هم ساده دي او هم خوږې، هم ولسي مینه تمثیلوي او هم د ساده او کلیوال ادب غوره نمونې دي، چې لومړی یو سروکی (نیمکۍ) ویل کېږي او وروسته بیا ورپسې درې مسریزه بند ویل کېږي او په اخر کې د سروکي اخر بند ورسره تکرار راځي، لکه د محمد نور لوبه:

غمونه لرې کړه له ما عاجز غمګینه
راتاو شه لونګینه
ودې ویشتم روغه دې نه کړم
نوره یاري درسره نه کړم

او داسې نورې لوبې.

**نیمکۍ (سروکی)**: نیمکۍ هم د پښتو ادبیاتو یو ډول دی چې عموماً د لنډیو په واسطه بشپړېږي، نو له دې څخه معلومېږي چې د سروکي بشپړونکي لنډۍ دي.

سروکي د شکل او جوړښت له مخې بېلابېلې بڼې لري، ځینې سروکي یوازې یوه مسره، ځینې دوه مسرې لري... حتی لاړیاتې

مسرې لري چې زموږ فولکلور څېړونکو د پاړکو په نوم هم یاد کړي دي.
د سروکي موضوع زیاتره د عشق او مینې مسایل دي، سروکي پر دوو برخو وېشل شوي دي، چې یو یې عام سروکي دي، چې له هر ډول ساز او سرود سره په محافلو کې ویل کېږي، لکه دا سروکی:

پسې ورجګ کړه سره لاسونه
لنډ کړه د ټیکۍ مزی دې
خال به دې وران شي

او ځینې سروکي دي چې د خاص اتڼ په میدانونو کې ویل کېږي، لکه دا سروکی:

تا ویشتلی یمه وا بې غوره یاره
خوب خوب مې وړینه

**ناړې یا غړونه:** ناړې هم د پښتو شفاهي ادبیاتو یوه غوره برخه تشکیلوي. فولکلور څېړونکو ناړې د پښتو شفاهي ادبیاتو د ځانګړو ډولونو په توګه معرفي کړې دي، لکه د اتڼ ناړې، د هوتکو ناړې، سنځرخېلۍ ناړې، د نکلونو ناړې او داسې نورې. ناړې پر درېیو عمده برخو وېشل کېږي:

**الف- د اتڼ ناړې:** چې په عام ډول د اتڼ په میدانونو کې د ښځو او نرو له خوا ویل کېږي او د جوړښت له مخې دوه مسریزې، درې مسریزې او څلور مسریزې وي او تر دې د زیاتو مسرو لرونکي هم وي. قافیوي جوړښت د مسریو لنډوالی او اوږدوالی او هجایي سیستم یې هم ډول ډول دی.

د ښځینه اتڼ د سندرو نمونه داده:

لونګینه، پر ځنګ ځنګ راوړه
چې دې شرنګ د بنګړو شینه لونګینه

د نرینه وو د اتڼ سندرې:

دا پورې په دامان توره کېږدیه
کېږدۍ مې اوبو یووړه
د ژمي شپې به چېرې تېرومه

دا نارې د موضوع په لحاظ ډول ډول دي، د ټوکو او مسخرو مطالب هم د خلکو د تفریح لپاره په دغو نارو کې ځای شوي دي.

ب- تاریخي نارې: دا ډول نارې د پښتنو له ټولنیز او سیاسي تاریخي سره اړه لري. ددې نارو جوړښت په عام ډول دوه مسریز دی چې یوه مسره یې لنډه او بله یې اوږده وي، خو د دواړو قافیه یوه وي، ددې نارو نمونه په لاندې ډول ده:

که تېری ګورجي بیا کړي تېری نارې
یو میرخان و ځنې پاتې
میرخان هم اوس کندهار ته ګرګین غواړي

ج- د نکلونو نارې: دا نارې هم د پښتو د نا لیکلو ادبیاتو یوه غوره برخه تشکیلوي، دا نارې زیاتره د بیانونو او کیسو په ترخ کې ځینې منظومې ټوټې هم لري، چې دا ټوټې د نکل په بېلابېلو برخو او ټاکلو مواقعو کې ځای لري. دا نارې دوه مسریزې او درې مسریزې دي. د نکلونو دوه مسریزې نارې کله هم قافیه وي او کله نه وي، په درې مسریزو کې په عام ډول لومړۍ او دویمه مسره یوه

قافیه لري دویمه یې قافیه یې هم اهنګي نه ساتي په ځینو درې مسریزو کې قافیه ځانته ځانته وي.
دا لاندې نمونې وګورئ:

سر د سره پالنګه هسک کړه فتح خانه
یاغي سوی هندوستان رعیت ملکونه

کرمیه چې غم نه وي ته غم راوړې
کرمیه که زما په دعا کېږي
کرمیه په لمر غوټه سپرو واوړې
که اور ګډ کړې د برېښو په سپین ږیرو
مرور یې پخلا نه کړل
لاد لاسه ورښیي، ورښیي یاغي ملکونه

**بابولالې**: بابولالې هغو ځانګړو او ولسي سندرو ته وایي چې د ښځو له خوا جوړې شوې دي او بیا د همدوی له خوا د واده په ځانګړو ورځو او په مختلفو وختونو کې ویل کېږي. په واده کې د بابولالو د ویلو وختونه لکه (د ستنې راوړل، د پوښ ورځ، د مال د حلالولو وخت، د سر خلاصولو وخت، د جامو بدلولو، د نکریزو شپه، د سرجوړولو سهار، د ښځو ګډېدل، د ورایزو د راتګ وخت، د ناوې د رایستلو وخت، د خسر کور ته د ناوې راوړلو وخت). په دغو وختونو کې بېلابېلې بابولالې ویل کېږي دا لاندې یوه نمونه د بابولالې ده د ستنې د راوړو وخت کې:

راغی رومال راغی  رومال پټ دی په قبو کې
د (پلانکي) په کې ایښی سر یې لوړ دی تربرو کې

روماله په جوپو - جوپو دې وړمه
روماله د لوتو په زور دې وړمه
لمر راوخوت په چنارو پورې
رومال مو راوړو کلي کې ګوري.

**چاربیتې**: چاربیتې هم د ولسي ادب غوره او مهمه برخه تشکیلوي او هره چاربیته د پښتو په موسیقۍ او ساز کې ځان ته په زړه پورې اهنګ، وزن او زړه وړونکې نغمه لري. په چاربیتو کې زیاتره نکلونه او کیسې ویل کېږي. چاربیتې عموماً پر دوو برخو وېشل کېږي:

الف- ساده چاربیتې
ب- زنځیري چاربیتې

د ساده چاربیتو د مسرو شمېر له څلورو مسرو څخه پیل تر شلو مسرو څخه زیات دی او د زنځیري چاربیتو د مسرو شمېر له شپږو مسرو څخه شروع تر اتو مسرو، نهه مسرو او داسې نورو پورې رسېږي.

د ساده چاربیتو او زنځیري چاربیتو نمونې دادي:

ساده چاربیته:

توره ده نجلۍ تور یې په غاړه لونګین دی
تور زړوکی کړي، تور کمیس یې کمرچین دی
تورې سترګې راغله تور وربل خو یې رنګین دی
تورې لېونی کړم، تور د زلفو یې تالونه دي

زنځيري چاربيته:

ښــــه ســــينه، رنګينــــه، ســــنګينه د ليلــــې
شــــين يــــې خــــال دى دلال دادى حــــال د ليلــــې
قلنــــدر ســــتا د دره هــــر ســــهار دى جانــــان
ټيــــک د ســــر دې ســــره زر، ښــــه نظــــر د جانــــان
خزانــــه، نازدانــــه، جانانــــه، کــــه ګيلــــې
ښــــه ســــينه، رنګينــــه، ســــنګينه، دليلــــې
نــن يــې شــال، دى کشــال، زانګــي خيــال د ليلــې
شــــين يــــې خــــال دى دلال، دا دى حــــال د ليلــــې
تر پايه...

د يادونې وړ ده چې د چاربيتو ويونکي معلوم دي.

**کيسې**: کيسې هم د پښتو د ولسي ادب يو په زړه پورې برخه تشکيلوي، تقريباً درې نيم زره کلن تاريخ لري. د کيسو منبع د اريايي قومونو د شمېر دوام او پيروي ده، خو د کيسو د شروع کېدو نېټه نه ده معلومه. د اکثره کيسو ويونکي معلوم دي او زياتره کيسې د ولسي شاعرانو له خوا په نظم شوي ډول ويل شوې دي، چې د عبدالغفار کيسه دلته د نمونې په توګه راوړو:

د نمرود په زمانه کې راغلی په کيسه کې
پيدا شو ابراهيم خليل الله دوست د اکبر و ښېشکه پيغمبر و
ترپايه...

د پښتو په ولسي ادب کې ځينې نور ملي وزنونه هم شته چې يوازې نومونه يې را اخلم، لکه: فالونه، نکلونه، متلونه او داسې نور...

# د میندو سندرې او پښتو نکلونه



پښتنې میندې چې کله له خپلو کارونو څخه وزګارې شي، نو بیا ماشوم کله په غېږ کې او کله هم په زانګو کې واچوي او د ماشوم ویده کولو، په خبرو راوستلو او کرارولو لپاره په خپل خواږه اواز او خاص اهنګ ځینې سندرې خپل ماشوم ته وايي او په دې توګه د مورولۍ فطري مینه د سندرو په جامه کې ماشوم ته وړاندې کوي، ددغو سندرو له ویلو سره میندې خاص اکټونه کوي چې ماشومان یې اکټونو ته متوجه کېږي، ژړا بس کوي او پر خندا پیل کوي. د پښتني فولکلور لیکوال د میندو سندرو په باب وايي: ((د پښتنې مور مینه ناکه غېږ په حقیقت کې د شعر او ادب د زده کړې لپاره هغه ابتدايي مکتب دی چې ملالې، نازو، ایمل خان او خوشال خان په کې روزل کېږي چې بیا وروسته څوک په کې د علم او ادب اتلان او څوک په کې د جګړې باتوران شي.)) (د پښتو شفاهي ادبیات ۳۳-۳۲ مخونه.)

د میندو سندرې سېلابوتونیک او څپه ییز اوډون لري، د مسرو څپې یې لږې او ډېرې وي او جوړښت او سکښت یې له پخوانیو لرغونو اریايي سرودونو سره سر لګوي، په دې سندرو کې پر

للوګانو سربېره نورې وړې وړې منظومې هم شته چې کله کله ځينې کوچنۍ روزنيزې کيسې هم په کې وي.

د ميندو ځينې للوګانې، اللو، ټاټۍ او ځينې نورې سندرې د لومړي ځل لپاره ډارمستټر (د پښتونخوا د شعر هارو بهار) کې خپرې کړې، بيا وروسته ځينو نورو پوهانو ډېرې دغه سندرې راټولې او خپرې کړې، ښاغلي ډارمستټر په هارو بهار کې ليکلي:

((نقل دی چې د سکانو د پاچاهۍ په دوران کې يو سک له يوسفزو ښځه يوه پېغله لاهور ته وتښتوله، يو کال وروسته چې د هغې نجلۍ ورونه خبر شول، ورپسې ورغلل هلته د نجلۍ يو زوی هم پيدا شوی و. کله چې دغې ښځې خپل ورونه وليدل ښښتن يې شراب څښلي وو او نشه په کټ کې پروت و، دغې ښځې خپل ماشوم په زانګو کې واچاوه او ددې سندرې په ويلو يې هغوی پوه کړل چې دننه راشي.))

(پښتو شفاهي ادبيات ۳۴-۳۲ مخونه.)

ټـــاټۍ زنګـــوټۍ مـــه راځـــئ غلـــو
پـــه کـــوزې لارې مـــه ځـــئ، پـــه بـــرې لارې ورو
دننـــه دواړه سـپـي دي هغــه مــې تړلـي پــه نـاړو
په کرونجي باندې منګی دی هغـه پټ په کټورو
دننـــه پروټـــی دی هغـــه ډک پـــه اشـــرپو
ايـــر دلـــې ويـــده دی تاســو راشــئ پــه ورو ورو
کــافر شــراب خــوړلي خبــر نــه دی پــه راتلــو
اوس که دی خبر شي خلاص به نه شي په خوارو
کــافر دی شــراب خــور، نــه خبرېـږي پــه نــارو
ماشــوم پــه دلــې پــردم نــه بــه ژاړم پــه زارو

دغه سندرې چې يوې تاريخي زمانې ته اشاره کوي او هغه پر پښتنو باندې د سکانو د يرغل او تېرې زمانه ده، ددغې سندرې زمان او مکان نه دی څرګند چې څه وخت او د چا له خوا په کوم ځای کې ويل شوې، خو د سکانو پرضد د پښتنو د مبارزې غبرګونو ته رارسوي.

د ماشوم پر کرارولو او ويده کولو سربېره بله ګټه داده چې ماشوم د خپلې مور له خبرو سره اشنا کوي او ژر پر خبرو راځي.

لکه دا سندره:

يو يې سپينکی مخ دی لکه پوڅه د چوپان
يو يې لوړه پوزه ده لکه پوله د ديکان
دوې يې غټې سترګې دي که ګاټې د ميدان
دوې يې نرۍ وروځې دي که توکې د کوران
دوې يې نرۍ شونډې دي که مزي د ګرېوان

ميندې له ماشومتوبه خپلو ماشومانو ته د دوی د پلرونو او نيکونو د تورو ستاينه کوي او له ټوپک او وسلې سره يې بلدتيا او اشنا کول غواړي لکه:

پلانکي جانه ښايسته ښه دې توره ښه وسله
په ښايسته نيلي سپره چې نيلی دې تماشې کا
تور نازيان دې ورسره
اللو اللو-اللو پلانکی جان داسې للو دی لکه ګوډی د رنجو
چا وهلی، چا وهلی هلکانو جنکيانو په صحرا وهلی

مور او پلار نیا یې په غلا وهلی

اللو للو-للو خوب دې درشي په لېمو، خوږ دې لرې له هډو.

## پښتو نکلونه:

نکلونه د پښتو ولسي ادبیاتو یو ځانګړی صنف دی، کله چې په انساني ټولنه کې د پېښو منځته راتګ د انساني ژوند بڼه واړوله او انسان د ژوند له سړو تودو سره مخامخ شو او د طبیعت د معماوو په باب یې ځان د فکر په سمندر کې ډوب ولیده، نو د خپل وجود تر توان زیاتې هیلې او تلوسې ورسره پیدا شوې، نو له دغو ټولو څخه یې نکلونه جوړ کړل، چې دغه نکلونه ځینې خوله په خوله او سینه په سینه تر موږه راورسېدل او زیات شمېر یې د نېستۍ غېږې ته لاړل، د مرګ وروستۍ سلګۍ یې ووهلې مړه شول او خاورې ځینې جوړې شوې او «ځینو یې لا بیا د مدرسو درسونه جوړ کړل او د اووم هنر یا د سینما د ځوان هنر پرده یې ونیوله»

د هر ولس له نکلونو څخه د هغه ولس د بېلو تاریخي او کولتوري دورو د ژوندانه وضعه او ټولنیز مناسبات څرګندېږي او په هغو کې له تصویري او خیالي افسانو څخه چې د راویانو او لیکوالو له فانتازیو او فکري روشونو څخه راوځي او د ناحقیقي موجوداتو لکه ارباب الانواعو، دېوانو، پېریانو، ښاپېریو او کله کله سحر، جادو او منتر او خیالي دنیاوو او داسې نورو نامریي شیانو څخه نیولې بیا تر واقعي پېښو او جریاناتو پورې ټول په کې وي. په هغو زمانو کې چې انساني ټولنه، کولتور او ثقافت په لومړنیو دورو کې و، نو د داسې ټولنو طبیعي او ټولنیز شرایط بېخي محدود و او هر

څه يې په رښتينې توګه نه پېژندل، نو له افسانو او خيالي نکلونو څخه يې د شيانو په پېژندلو کې اشتباهات اخيستل.
پښتو نکلونه هم چې د پښتون ولس د حيات، ټولنيز ژوند او ټاکلو کولتوري شرايطو استازي او د دوی د ژوندانه د ټولو تاريخي او کولتوري دورو او د ټولنيزو اقتصادي مناسباتو څرګندوی دي. مهمه ځانګړنه يې داده چې په نکلونو کې د باداری او مريتوب صحنې نه ليدل کېږي دا ځکه چې د ځينو پوهانو په عقيده، پښتنو د مريي ساتنې اجتماعي، اقتصادي فورماسيون نه دی تېر کړی، خو د قبايلي نظام د مېړانې، وطنپالنې او ولس دوستۍ جذبې زياتې په کې شته او له همدې امله ده چې په مېړانې، زړورتوب او رښتينولۍ او مېلمه پالنه کې يې زيات شهرت موندلی دی. ملي کولتور او ملي تاريخ پرې تر هر څه ګران دي او د تاريخ په ډېرو نازکو او حساسو مواقعو کې يې د پرديو د يرغلونو پر وړاندې درېدلي دي.
پښتو نکلونه د شکل او مضمون له مخې ازاد دي، د کوم ځانګړي ليکوال له خوا نه دي تهيه شوي چې ځانته د ليکنې او افادې خاص اسلوب او قوانين ولري او يا دې پر يوه خاص سبک روان وي، نکل د خلکو له خوا ويل شوی او د زمانې په تېرېدو سره په کې تغيرات راځي، هره تاريخي دوره او هرتمدن خپل خاص مهر او نښان وربانديې ږدي او د خلکو له ژوند سره يوځای ژوند کوي له خلکو سره يوځای حرکت کوي، مختلفې تاريخي پېښې او مختلف حالات د مختلفو ضرورتونو له مخې منظموي.

نکل کې هر څه په مجرد شکل څېړل کېږي، ښایست، زور، لښکر، پیسې، جګوالی او هر څه یې مجرد دي او د ذهني پاچا نوم اخیستل کېږي خو د دربار د عظمت په باب څه په کې نه شته.

د لښکر نوم اخیستل کېږي، خو له دې لښکر سره په کې یو کس مقاومت کوي ښایست په کې یادېږي، خو د ترسیم درک په کې نه وي.

د نکل ویونکي معلوم نه وي او د زمانې له تېرېدو سره یې سم تغیر کړی وي، وړې پېښې پر لویو اوښتې وي او کرار کرار یې د مسابقې پله درنېږي، معمولاً د تجارتي اړیکو، مهاجرتونو او یو بل ته د قومونو د نږدېوالي په نتیجه کې د یوې حوزې فولکلور او نکلونه بلې حوزې ته نفوذ کوي، د خپل سفر په بهیر کې کله خپل اصلي ټاټوبی ورک او په هره ژبه ژباړل کېږي او هرې کولتوري حوزې ته چې ننوځي هغه ژبه او هغه کولتوري حوزه یې د شکلیت دعوه کوي. همدغه ده چې هغه بله ژبه او کولتور پر دغو نکلونو اغېز ښندي او فولکلوریک نکلونه له خپل سوچه والي څخه راباسي. د بېلګې په توګه د لیلی او مجنون نکل چې هره کلتوري حوزه پرې خپله ټاپه لګوي او خپل یې بولي، خو پښتو نکلونه د ښامارانو، پېرې، دېو، جادوګرانو او نورو خارق العاده وسیلو راتګ د دې مانا نه لري چې دغه نکلونه دې پردي اوسي، دا د پښتو خپل فرهنګي میراث دی چې سینه په سینه ورته رانقل شوی.

د نکلونو پېښې او ټولنیز حالات کاملاً د پښتنو د ژوند د یوې خاصې تاریخي زمانې نمایندګي کوي، ځکه نکل که هر څومره بدلون ومومي او تر هر تاثیر لاندې راشي بیا هم پر خپل ځان باندې

د یوې ځانګړې او مشخصې کولتوري حوزې مهر او نښان لري، د بېلګې په توګه د مومن خان او شرینو نکل ته که هر څه ښامار او دېوان ورداخل شي او د یوې ښاپېرۍ پرځای سلګونه ښاپېرۍ او دېوان ورننوځي بیا هم د نکل مضمون چې پر ولور او تربورګلوۍ ولاړ دی او د پښتنو د یوه خاص ټولنیز اقتصادي حالت نماینده ګي کوي پر خپل ځای ولاړ دی.

ډېر داسې پښتو نکلونه شته چې د پښتني فولکلور نماینده ګي نه کوي او د نکل له مانا او وسایلو څخه له ورایه دا برېښي چې دا نکلونه باید د ګاونډیو د کولتور او فرهنګ نماینده ګي وکړي او یا دې ګاونډیانو له خوا د پښتنو کولتوري حوزو ته راننوتي وي او د پښتنو د خپلو ځانګړو ټولنیزو او تاریخي شرایطو پر بنا په کې خپل ټولنیز مسایل ځرګند کړي او د خپل فولکلور مشخص اتلان یې وربانديې تپلي خو ددې خبرې مانا دا نه ده چې موږ دې فولکلوریک نکلونه تصفیه کړو او یا دې په خپل لاس فرهنګي میراث نورو ته ورو ښو، ځکه دغو نکلونو د پښتنو د ژوند په خاصو ټولنیزو او اقتصادي شرایطو کې ځانګړي رولونه درلودلي دي. پښتنو په خپل وار د دغو نکلونو په بشپړولو کې رول درلودلی دی، دې نکلونو د ژوند د همسفر په توګه له دوی سره یوځای ژوند کړی دی او د دوی د ادبیاتو اصطلاحاتو، ټولنیزو هدفونو، د بیان طرز، لهجو او ژبې څخه یې اوبه څښلې دي. د بېلګې په توګه د فرهاد او شیرینو کیسه، د لیلی او مجنون کیسه، د سیف الملوک او بدرۍ جمالې کیسه ټولې هغه کیسې دي چې پښتنو د خپل کولتور اغېزې باندې ښندلي دي، چې هېڅوک به دا فکر ونه کړي

چې دا دې ګوندې د بلې کولتوري حوزې څخه دلته راغلي وي دا خبره به سمه او رښتیا وي چې فولکلوري نکلونه د اوسنیو ریالیستیکو نکلونو او داستانونو او لنډو کیسو پر سبک نه وي ترتیب شوي چې بېلابېلو ټولنیزو نیمګړتیاوو او ستونزو ته په منطقي توګه ګوته ونیسي او د بېلابېلو ټولنیزو پېچلو مسئلو ریښې دې وښیي او د حل منطقي لاره دې ورته پېشنهاد کړي.
نکلونه د ټولنیزو نا انډولیو، د زمانې له ناخوالو، استبداد او تېري څخه د خلکو د خلاصون لپاره مهمې او له خوشبینیو څخه ډکې لارې پېشنهادوي.

ښاغلی سلطان محمد صابر وايي: ((نکلونه ځکه چې زموږ د خپلو اذهانو پیداوار دي او موږ د خپلو پخوانیو عاداتو، خیالاتو، روایاتو او مزاج پر اساس تخلیق کړي او تراشلي دي ځکه نو په هغو کې زموږ د ژوند یوه فلسفه پټه ده، هغه ساده او صفا فلسفه کومه چې زموږ په ساده او سوچه او اسانه ژبه بیانېږي، زموږ روحي تنده داسې ماتوي لکه د اوړي د روژه دار تنده چې په سړو اوبو ماتېږي او له همدغه امله زموږ مخصوص قومي ذهنیت پخېږي کوم چې د یو قوم د بقا لپاره ضروري دی.
نکلونه چې اکثره یې د یوه خاص منظور لکه خیر او شر ترمنځ د مبارزې په منظور منځته راغلي، خو هېڅ وخت د خیر د بریالیتوب لپاره له منطقي وسیلو څخه کار نه اخلي، نکل ویونکی د خیر او شر ترمنځ په مبارزه کې هېڅوخت بې طرفه نه وي، که د شر د ماتولو لپاره منطقي وسایل په لاس کې نه وي، نو بیا هغه دي چې نکل ویونکی د ملنګ دعا، د زمریانو مرستې، د سیمرغ دوستۍ

او نورو ته مخه کوي، لکه د سیف الملوک او بدرۍ په کیسه کې چې سیف الملوک د ښامار له پنجو د سیمرغ بچي ژغوري او بیا یې همدغه سیمرغ د ډېرو غرونو ګړنګونو او سیندونو څخه پورې باسي او مزل یې ورلنډوي، د پښتو نکلونو یو ستر او ځانګړې خصوصیت دادی چې د نکل اتل په کې تل د مېړانې او حماسې د سمبول او ښځه په کې د وفا د سمبول په توګه ستایل شوې او ښځې تل یا خو د خپل ملګري او مېړه په نامه سر سپین کړی او یا ورپسې مړه شوې ده.

بل خصوصیت یې دادی چې پښتو نکلونه تل د هلک او نجلۍ په مېړانه په ډېره تراژیدیکه بڼه پای ته رسېدلي دي. حال دا چې د نورو ولسونو نکلونه او یا پېښې زموږ کولتور ته له نورو حوزو څخه راغلي. نکلونه اکثره د هلک او نجلۍ په یوځای کېدو او وروسته تر ډېر اخو ډب په بریالیتوب پای ته رسېږي. لکه د سیف الملوک او بدرۍ، جلات او محبوبې نکلونه چې په پای کې یې کامیابي حاصلېږي او د ادم او درخانۍ، مومن او شرینو، رابیا او فتح نکلونه چې اصیل پښتو نکلونه دي او د مین او مینې په مړینه پایته رسېږي، البته استثناات به وي مګر پښتو اکثره نکلونه تراژیدیک دي او د اتل او اتلې په مړینه پایته رسېږي.

بل دا چې پښتني نکلونه د پښتني ټولنې د کولتوري اصولو پر اساس ترتیب شوي او هغو سوالونو ته ځواب وایي چې ټولنه یې غواړي.

پښتو نکلونه په لومړي سر کې پر دوو برخو وېشل کېږي؛ یوه برخه یې هغه نکلونه دي چې زموږ د ولس له زړه څخه یې الهام اخیستی

او رامنځته کوونکي او اتلان يې د دې خاورې بچي دي او بل هغه چې د نړيوال فولکلور د لېږد په سلسله کې بېلابېل ملتونه سره نښلوي. د بشري نړۍ ګډ فولکلوري ميراث دی او زياته برخه يې د دېوانو او پېريانو الوتنې او د کوه قاف او باغ ارم ليدنه د سترګو په رپ کې وهي.

د موضوع له مخې د پښتو خپل نکلونه چې اکثره واقعي دي او د نکل په بڼه راپاتې دي پر دوو برخو؛ رزميه او بزميه باندې وېشل کېږي او په خپله ارته لمن کې د پښتنو د مينې، ننګ، غيرت، مېړانې، پښتو او د افغاني ټولو وياړونو او پښتني قانون ډېرې ښې بېلګې رانغاړي. اکثره د فيوډالي نظام عکاسي کوي، موږ ته زموږ زوړ او پخوانی تهذيب رابښيي او د دغو نکلونو په واسطه موږ د خپل ولس ذهني وده په ډېره ښه توګه معلومولای شو او په زړه پورې تاريخي مواد را په ګوته کوي او زموږ د ملت ټول روايات، عقيدې، دودونه او ملي عنعنات خوندي کوي، خو ځينې نکلونه بيا خيالي او وهمي مطالب او موجودات ډېر لري.

د جوړښت له پلوه پښتو نکلونه کله اوږده وي او کله د ننني ناول غوندې په کيسه کې کيسه راځي او ځينې يې بيا لکه د اوسنيو لنډو کيسو غوندې خصوصيات لري.))

ښاغلی سيال کاکړ (د پښتو نکلونه) نومي کتاب په يوه برخه کې د پښتو نکلونو په باب ليکي: (( ځينې وايي چې د پښتو ادبياتو اوسني شکلونه لکه ناولونه، ډرامې او افسانې د نکلونو پرمختللې بڼې او بېلابېل شکلونه دي او له ولسي نکلونو څخه زېږېدلي دي. پښتو نکلونه له پښتني محيط څخه رنګ اخلي او د پښتني ټولنې

ډېر ښه استازی یې بللای شو، دغه نکلونه د خلکو په ژبه جوړ شوي، په زړه پورې ربط، لوړ تخیل او خوندور تنظیم په کې په نظر راځي او زیات شمېر فولکلوري پانګې لکه اصلاحات، محاورې، پښتني نومونه او تکیه کلامونه په خپله ارته لمن کې رانغاړي. دغه نکلونه له فني نظره ځای ځای نارو ته هم ځای ورکوي چې په ملي اوازونو جوړې شوې دي.)) (پښتو شفاهي ادبیات، ۱۱۰-۱۱۹ مخونه)
د نکلونو د ټولولو په برخه کې استاد محمدګل نوري لومړی پښتون دی چې پښتو نکلونه یې په کتابي بڼه خوندي کړي. ده ددغو نکلونو لومړی ټوک د (ملي هنداري) د لومړي ټوک تر سرلیک لاندې پر (۱۳۱۷ل) کال د پښتو ټولنې له خوا، دویم ټوک یې هم د (ملي هنداري) تر سرلیک لاندې پر (۱۳۲۵ل) کال خپور کړ او درېیم ټوک یې هم د (ملي هنداري) تر سرلیک لاندې پر (۱۳۵۲ل) کال هغه وخت چې دده د ژوند وروستۍ شپې ورځې وې، د کندهار د احمدشاه بابا د کتاب چاپولو موسسې له خوا خپور شو.
بیا نو دلته پر (۱۳۲۳ل) کال ښاغلي میراحمد ګربز په (۱۷۵) مخونو کې (د ګوربزو کولتور او فولکلور) ترسرلیک لاندې مجموعې په یوه برخه کې یو شمېر کیسې خپرې کړې. ښاغلی ګوربز اوس هم د نکلونو پر راټولولو لګیا دی، هیله منه یم چې دغسې سلسلې ته دوام ورکړي.

# په لرغونې دوره کې د افسانوي کیسو اخلاقي بڼه

سریزه:



دا لنډه لیکنه یا مقاله مې د محترم استاد اسمعیل یون په لارښوونه چې د کورنۍ دندې لپاره یې راته کړې وه، د لرغونې دورې د افسانوي کیسو پر اخلاقي بڼه ترتیب کړې ده. افسانوي کیسې به د ساعت تېرۍ لپاره ویل کېدې او په رښتیا او دروغو پسې یې چا سر نه ګرځاوه، په دې کیسو کې ډېر مبالغه امېز مسایل شته، خو اخلاقي او روزنیزه برخه یې هم د پام وړ ده. په دې ډول کیسو کې د پېریانو، ښاپېریانو، دېوانو، جادو، مداریتوبونو، غړېدونکو ځناورو، مارانو، مرغانو او داسې نورو شیانو په باره کې زیات مواد او معلومات شته او د خلکو پر ذهنونو یې ډېر ښه او مثبت اثر کاوه.

مخکې تر دې چې په لرغونې دوره کې د افسانوي کیسو پر اخلاقي بڼه خبرې وکړو، باید لومړی د افسانو او کیسو په اړه یو څه پوه شو. افسانې او کیسې هغه فولکلوري مواد دي، چې د اړوندې ټولنې کولتوري ایډیالونه او ژور عمومي احساس په کې ځلېږي او د ایډیالوژۍ هېنداره یې ده. له هنري لیکنو سره یې توپیر دادی، چې

افسـانې او کیسـې لـه عمـومي دودونـو او دسـتور سـره سـم مـتن، موضوعګانې او سبک کاروي او زيار باسي، چې د ښکلا په غرض پر ژبه باندې يو خاص شکل تحميل کړي.

له تاريخ سره څلور توپيرونه لري:

لومړی دا چې تاريخ د څرګندو پېښو په ترتيب پر زماني تسلسل ولاړ بيان دی، خو افسانې او کيسې زياتره پېښې نه لري.

دويـم دا چـې د تـاريخ کرکټرونـه معقـول او د افسـانې او کيسـې کرکټرونه ډېر ځله نامعقول وي.

درېيم دا چې تاريخ ليکنه نوې ده او په مدني مرحلې پورې اړه لري، مګر افسـانې او کيسـې زيـاتره تـر مـدني مرحلې پخـوا د وحشـت او بربريت په مرحلې پورې اړه لري.

څلورم دا چې په تاريخي ليکنه کې د پېښو ترمنځ اړيکې جوخت او ټينګ وي، خو په زياترو افسانو او کيسو کې د پېښو ترمنځ اړيکې سست او ډېر ځله شلېدلې وي.

افسانې او کيسې د يوې ټولنې د معلوماتو هغـه مجموعـه ده چـې د يو منشور حيثيت لري او ډېر ځله لـه کـوډو او جـادو، دودونـو، غيـر اسلامي مذهبي مراسمو، ټولنيز جوړښت او داسې نورو شيانو څخه د مخـابراتي وسـيلې او عملـي لارښـود پـه توګـه دنـده سـرته رسـوي.

افسـانې او کيسـې د خلکو عقيـدې بيـانوي، ټينګـوي او سـمبالوي يې، تقوا او فضيلت بابوي او څاري يـې، مـذهبي دودونـه او عقايـد تبليغوي، ځکه نو د بشري مدنيت ارزښـت ډېـر ارزښـت نـاک تـوکي بلل کېږي.

افسانې او کیسې د ځینو خلکو د فکر او عقیدې پر خلاف هېڅکله بې ارزښته مواد نه دي، بلکې هره افسانه او کیسه د انساني ژوند په ارګانیزم کې یوه فعاله قوه ده که څه هم د یو روښنفکرانه او هنري تخیل زېږنده به نه وي، خو د لرغونو انسانانو د ایمان او عقیدې او اخلاقي حکمت ډېره ښه نمونه یې بللای شو.

په زیاتره افسانو او کیسو کې یو لړ ابهامونه، بې ربطي او ځینې چټیات موجود وي، خو سره له دې هم دا افسانې او کیسې کوښښ کوي چې نړۍ ته یو شکل او صورت او انساني ژوند ته یوه مانا او مفهوم ورکړي.

په لرغونې دوره کې به کیسې او افسانې په کلیو کې د نکل چیانو له خوا خلکو ته اورول کېدې او خلکو به په ډېره مینه اورېدلې، خصوصاً د ژمي په لویو شپو کې. دې کیسو او افسانو که څه هم واقعي بڼه نه درلوده، خو بیا هم د خلکو پر ذهنونو یې ډېر مثبت اثر کاوه، دا ډول کیسې د یوې ټولنې ارزښتونه بیانوي او فرد د خپل کولتور له هدفونو او معیارونو سره اشنا کوي، دا کیسې په دې غږېږي چې سړیتوب او مېړانه څه شی ده، ستر شخصیتونه څنګه زېږي، څنګه ژوند کوي او څنګه مري. په همدې توګه انسانانو ته لارښوونه کوي، ژوند ته مانا ورکوي او د حرکت سمت یې ټاکي.

## اخځونه


۱- د فولکلور تاریخچه، حبیب الله جاج پښتون زوی.
۲- د پښتو ادبیاتو تاریخ، لرغونې او منځنۍ دوره سرمحقق زلمی هېوادمل.

# په لرغونو ادبیاتو کې ملتپالنه



ملتپالنه یا ولسپالنه داسې روحیه ده چې په طبیعي ډول په هر چا کې وي، خو په ځینو کې لږه او په ځینو کې ډېره. له نېکه مرغه د پښتو ادب په ټولو دورو کې د ملتپالنې روحیه زموږ په لیکوالو او شاعرانو کې لیدل کېږي. څنګه چې ماته ملتپالنه د پښتو ادب په لرغونې دوره کې د کورنۍ دندې په هکله راکړل شوې ده، نو ما هم په همدغې دوره کې ملتپالنه چې په کومو اشعارو کې ځلېدلې ده، راټوله کړې او څېړلې چې په لاندې ډول یې وړاندې کوم:

هغو شاعرانو چې په لرغونې دوره کې په خپلو اشعارو کې ملت پاللی دی په لاندې ډول دي:

**۱ - بېټ نیکه:** بېټ بېټنی او بټین د بېټ نیکه له نامه سره تړلي نومونه دي. په تذکرة الاولیا کې دا څرګندېږي چې ممکن بېټ نیکه دده د هغه شعر چې (لویه خدایه) نومېږي، د تحلیل له مخې نوموړی بنایي د (**۳۵۰**هـ.ق) په شاوخوا کې مړ وي او دده دا مناجات د ویدا او اوستا له سرودونو سره پرتله کېدی شي، دده مناجات داسې دي:

لویــــه خدایـــــه لویـــــه خدایـــــه
ســـــتا پـــــه مینـــــه پـــــه هرځایـــــه
غـــــــر ولاړ دی درنـــــــاوي کـــــــې
تولـــــــه ژوي پـــــه زاري کـــــــې
دلتـــــــه دي د غـــــــرو لمنـــــــې
زمـــــوږ کېـــــږدۍ دي پـــــه کـــــې پلنـــــې
دا وګـــــړي ډ بـــــر کـــــړې خدایـــــه
لویـــــه خدایـــــه لویـــــه خدایـــــه
دلتـــــه لـــــږ زمـــــوږ اور بـــــل دی
وور کـــــورګی دی وور بورجـــــل دی
مینـــــه ســـــتا کـــــې مـــــوږ مېشـــــته یـــــو
بـــــل د چـــــا پـــــه ملـــــه تلـــــه نـــــه یـــــو
هســـــک او مځکـــــه نغښـــــته ســـــتا ده
د مـــــــــړو وده لـــــــــه تـــــــــا ده
دا پالنـــــــه ســـــــتا ده خدایـــــــه
لویـــــه خدایـــــه لویـــــه خدایـــــه.

که څه هم دا یو مناجات دی خو بیا هم په حقیقت کې دا ملتپالنه ده، یانې ببټ نیکه د خپل اولاد او ملت لپاره دعا کړې ده چې په حقیقت کې دا دعا او ملتپالنه ده.

۲- د امیرو کروړ ویاړنه: کروړ د سهاک له پښته دی، دده مشر نیکه شنسب نومېده، د شنسب د پلار نوم خرنګ و، د شنسب د زوی نوم امیر پولاد و چې امیر پولاد د امیر کروړ پلار دی. امیر

کروړ پر (۱۳۹هـ ق) د غور په منديش کې پادشاه شو او پر (۱۵۴هـ ق) کال د پوشنج په جنګ کې شهيد شو.

زه يـــم زمری په دې نړۍ له ما اتل نسته
په هند و سند و پر تخار او په کابل نسته
بل په زابل نسته
له ما اتل نسته
غشی د من مې ځي بريښنا په ميرځمنو باندې
په ژوبله يونم يرغالم په تښتېدونو باندې
پر ماتېدونو باندې
له ما اتل نسته
زما د بريو پر خول تاوېږي هسک په نمنځ په وياړ
د اس له سو مې مځکه رېږدي غرونه کاندم لتاړ
کړم ايوادونه اوجاړ
له ما اتل نسته
زما د تورې تر شپول لاندې دي هرات و جروم
غرج و باميان و تخار بولي نوم زما په ادوم
زه پېژندوی يم په روم
لـــه مـــا اتـــل نـــسته
پر مروه زما غشي لوني ډاري دښن راځخه
د هريو رود په څنډو ځم تښتي پلن راځخه
رپي زړن راځخه
له ما اتل نسته

د زرنج سوبه مې د تورې په مخ سور و کړه
په باداری مې لوړاوی د کول د سورو کړه
ستر مې تربور وکړه
لــه مــا اتــل نــسته
خپلو وګړو لرده لور پيرزوينه کوم
دوی په ډاډينه ښه بامم ښه يې روزنه کوم
تل يې ودنه کوم
له ما اتل نسته
پر لويو غرو مې وينا درومي نه په ځنډو په تال
نړۍ زما ده نوم مـې بــولي پــر دريـځ ستايوال
پـه ورځو شپو مياشتو کال
لـــــه مـــــا اتـــــل نسته

د امير کروړ دا شعر وياړنه ده چې په حقيقت کې يې د خپل ملت ستاينه کړې ده، د خپل ځان د مثال په ورکولو سره يې همغه د خپـل ملت د شجاعت، دلاورۍ او ټينګې ارادې ستاينه کړې ده.

**۳- د بابا هوتک سندره**: هوتک بابا د غلجي کړوسی دی، د پلار نوم يې بارو او د نيکه نوم يې تولر دی او شجره يې بېټ نيکه پورې رسېږي. پر (۶۶۱) کال په اتغر کې زېږېدلی دی.

پــــر ســــور غربــــل راتــــه نــــن اور دی
وګړيــــــه جــــــوړ راتــــه پېغــــور دی
پــر کلــي کــور بانــدې مغــول راغــی
هــم پــه غزنــي هــم پــه کابــل راغــی
xxx

غښـــتليو تنـــګ کـــړئ دا مـــو وار دی
مغـــــل راغلـــــی پـــــه تلـــــوار دی
پـــــه پښـــــتنخا کـــــې يـــــې ناتـــــار دی
پـــر کلـــي کـــور بانـــدې مغـــل راغـــی
xxx
آ دمرغـــــې غښـــــتليو راســـــئ
پـــــر تنـــــګ ولاړ د پښـــــتنخا ســـــئ
تـــورې تېـــرې غشـــي تـــر مـــلا ســـئ
پـــر کلـــي کـــور بانـــدې مغـــل راغـــی
xxx
زلمـــو پـــه غشـــيو کـــړئ وارونـــه
د تېـــــرو تـــــورو ګوزارونـــــه
ور ورانـــدې کـــړئ خپـــل ټټرونـــه
پـــر کلـــي کـــور بانـــدې مغـــل راغـــی
xxx
زمـــا د زلمـــو وينـــې بهېـــږي
ځمکـــې او غرونـــه پـــه ســـره کېـــږي
ميرخـــــی ځغلـــــي او ترهېـــــږي
پـــر کلـــي کـــور بانـــدې مغـــل راغـــی
xxx
پښـــتنو هلـــئ پـــه غـــره جنـــګ دی
ســـور غـــر پـــه وينـــو د دوی رنـــګ دی
مهـــال د تـــورې دی د تنـــګ دی
پـــر کلـــي کـــور بانـــدې مغـــل راغـــی
xxx

زلمو پر ننګ ځانونه مړه کړئ
دښمن په غشیو مو پییه کړئ
د پښتنخا ځمکې ساته کړئ
پر کلي کور باندې مغل راغی.

د بابا هوتک دا سندره په حقیقت کې د خپل ملت او خپل ملک د ستاینې او ساتنې لپاره ویل شوې ده، چې د خپل ملت احساسات راوپاروي او خپل ملت او خپله خاوره له نورو څخه وژغوري چې دا پخپله ملتپالنه ده.

**۴- ملکیار غرشین:** د ښکارندوی او د شیخ ابوبکر طوسي همعصر دی. غرشین د پښتنو یو مشهور ستانه قوم دی چې پخوا یې یو وچ غر سرسبز او اباد کړی و، نو ځکه دی غرشین بولي.

څښتن مو مل دی
اوس مو یرغل دی
ایواد د بل دی
غازیانو ګورئ
څښتن مو مل دی

تورې تېرې کړئ
دښمن مو پرې کړئ
منګولې سرې کړئ
څه له به تښتو
څښتن مو مل دی

که تېنګ کړو زړونه
پر بري یونه
چې زمري یونه
اسلام راڅخه دی
څښتن مو مل دی

غازیانو راسئ
ټول شاوخوا سئ
د شهاب په ملا سئ
څښتن مو مل دی

ملکیار غرشین دا شعر د ملتپالنې یا ولس پالنې لپاره ویلی دی چې د خپل ملت د جرئت د ډېرولو او د هغوی د رزمي روحیې د تقویه کولو لپاره یې ویلی دی.

## اخځونه

١- د پښتو ادبیاتو تاریخ، شهسوار سنګروال نیازي اثر
٢- لرغونی متون، د پوهندوی ډاکتر محمداجان حقپال اثر
٣- د پښتو ادبیاتو تاریخ لرغونې او منځنۍ دوره، د سرمحقق زلمي هېوادمل اثر.

# پښتو غزل د خپل پيدا ښت او پايښت په لوړ و ځوړ کې



غزل د شرقي شاعرۍ يو ډېر منلی او پېژندلی شوی ډول دی، چې د شرقي شاعرۍ د زياترو ديوانونو يوه درنه برخه په غزلو پورې اړه لري.
زموږ په ادبياتو کې هم غزل کابو اووه سوه کلن تاريخ لري. د پښتو لومړی لاسته راغلی غزل د اتمې هجري پېړۍ دی.
د پښتو لاسته راغلي غزلې همغه د اکبر زميندا وري غزلې دي چې د پښتو ادبياتو په لومړۍ دورې پورې اړه لري، خو زه غواړم د همدغې لومړۍ دورې په امتداد د پښتو غزل لوړې ژورې وڅېړم. که څه هم زموږ بحث او کورنۍ دندې اکثره پر لرغونې دورې راڅرخي، خو څرنګه چې غزل تر بل هر شعري فورم په پښتو کې زيات مطرح دی، نو غواړم چې تر لرغونې دورې وروسته هم د غزل پر څرنګوالي او څومره والي رڼا واچوم.
په دويمه ادبي دوره کې چې د پښتو ادبياتو منظم اثار زموږ په واک کې دي او پښتو ادبيات چې په دې دوره کې تر بېلابېلو فکري او ادبي جريانونو لاندې ايجاد شوي او وده يې موندلې ده په دې ټولو جريانونو کې چې څومره ادبي اثار ايجاد شوي دي، په هغو کې د

غزل وند ه او برخه درنه ده. پښتو غزل په دغو جريانونو کې ډېرې لوړې او ځوړې ليدلي دي، چې په دې برخه کې موږ د پښتو غزل هغه پالونکي او روزونکي يادوو چې د پښتو ادبياتو تر لومړۍ دورې وروسته يې غزلونه ليکلي دي.

موږ د غسې غزل ويونکي ډېر زيات لرو، چې يوازې د نومونو لړليک راوړل يې خبره اوږدوي، خو زه به په دې برخه کې د پښتو د دغه کټګورۍ ويونکو ځنې ډېر عمده کسان دلته ياد کړم:

**۱ - شيخ فريد**: د پښتو يو غزل ويونکی شاعر دی. دده په باب زيات معلومات نه شته، يو غزل يې په ((تېر هېر شاعران)) نومي تذکره کې خوندي دی، دده غزل عرفاني رنګ لري او هنري پرداخت يې هم بد نه دی. د ده غزل مقطع داده:

نور عالم دې حورې جنتونه غواړي
دا شيخ فريد دې طمعدار ستا له ديداره ګرځي

دده غزل په خوند او رنګ کې د روښانيانو د معاصرو صوفيانو غزلو ته پاتې کېږي.

**۲ - اميرخان هجري**: دا سړی د ديوان خاوند شاعر دی، ديوان يې په دوو جلدو کې ترتيب شوی دی، دا ديوان تراوسه پورې نه دی چاپ شوی، په خپلو اشعارو کې يې هجري تخلص کړی دی، دی د دولسمې هجري پېړۍ شاعر معلومېږي. دده غزل هنري ښېګڼې لري او عالي تخيلات روزي، دا يې هم دوه ښکلي بيتونه:

ګل په لړه ژړا وخاندي شبنم ته
يار مې ونه ښود د اوښکو په باران مخ

چـــې زمـــا د زړه آهـــــونــه ورتـه رسي
ځکه هسې رنګ کبود شه د اسمان مخ

**۳ - قنبرعلـي خـان اورکـزی**: د سـرور خـان زوی و، د تیـرا پـه کلایه کې اوسېده، صوفي مشـر او عـالم سړی و، د انور شاه مرید و، قنبرعلي خان پر (۱۲۰۷هـ.ق) کال د رجب پر میاشت پـه پېښـور کې وفـات شـوی او همـلتـه ښـخ شـوی دی. دی د اشعـارو دېـوان او د (اشک قنبر) په نامه یو ځانګړی اثر لري. په دې دویم کتـاب کـې یـې د کربلا د پېښې سوزناکې پېښې راوړې دي. د قنبرعلـي خـان اورکـزي غزلـې او نـور اشـعـار ډېـر خـوا‌ږه او سـوزناکه دي. دده غـزل او نـور اشعـار د هنر لوړه مایه او ځینې اشعار یـې لـوړ فکـري ارزښـتونه هـم لري، ده د پښتو د ډېرو شاعرانو په ځواب کې غزلـې ویلـې دي او د پښتو اشعـارو د مطالعې خاوند سړی و، د رحمان بابا د یـوې غزلـې په ځواب کې یې داسې ویلې دي:

کړی چې رحمان مومند سوال ددې غزل و
دا ښکلی غـــزل مې په ځواب راسره یوور

**۴ - محتشـم**: د دولسـمې پېړۍ غـزل ویـونکی شـاعر دی، دده پـه بـاب ډېـر معلومـات نـه دي ترلاسـه شـوي، د غـزل نمونـه یـې ترلاسـه شـوې ده، دومـره ښـکاري چـې د غـزل پـه ویلـو کـې یـې روانـه طبعـه درلوده. د ترلاسه شوي غزل مقطع یې داده:

پاڅه وخت د صبحدم شه محتشمــه
مـحبوبـا خـو تـه بللی په چربـانګ یې

**۵- سرورشاه**: د ده حالات هم معلوم نه دي، (د پښتو غزل) مولف يې يو غزل موندلى دى. غزل يې رنګيني او جذابيت لري، دده د غزلې مطلع داده:

چې مې نوش کړله پياله د عشق له جامه
خبر نه يمه هر ګز له صبح و شامه

**۶- شاه غريب**: د ميا حبيب ګل په بياض کې يې شعرونه راغلي دي، د ديارلسمې پېړۍ د اواخرو غزل ويونکى شاعر دى.

**۷- غلام محمد خټک**: دا شاعر د پښتونخوا د جهانګيرې په سيمو کې اوسېده، پر (۱۹۱۹م) کال مړ دى. د اشعارو مجموعه يې د (رموزخټک) په نامه چاپ شوې ده، ده قصيدې او غزلې ويلې دي.

**۸- امګل جان خټک**: دا شاعر د پښتونخوا د سيمو شاعر او د څوارلسمې پېړۍ په لومړيو لسيزو کې ژوندى و، د شعر مجموعه يې د (ګلشن امګل جان) په نامه چاپ شوې ده.

**۹- محمد نصين**: دى هم د ديارلسمې هجري پېړۍ غزلبول شاعر و، ځينې غزلې يې په (ګلزار روه) کې چاپ شوي دي، د يوې غزلې مطلع يې داده:

چې مدام مې فريادونه کړه اغاز
الوتلى مې طوفان دى په شهناز

**۱۰- روشن الدين خټک**: د خټکو په اکوړه کې يې ژوند کړى دى، د ژوند زمانه يې د څوارلسمې پېړۍ اوايل اټکل شوي دي. د

پښتو غزلبول شاعر و، غزل یې د قدماوو د غزل رنګ اوخوند لري. په (ګلزار روه) کې یې ځینې غزلې چاپ شوې دي، د یو غزل مطلع یې داده:

همېشه د یار له غمه په کوکار ګډ
چېرې نه شوم د وصال په نوبهار ګډ

**۱۱ - شېرمحمد**: د پښین د سیمو دېوان لرونکی شاعر و، په غزل کې یې د نشې سوز لیدل کېږي، د ژوند زمانه یې دیارلسمه هجري پېړۍ ښودل شوې، دېوان یې تر اوسه نه دی چاپ شوی، د یوې غزلې یو بیت یې دادی:

الهي د حقیقت په شنه پیاله کې
دا رنګین شراب د عشق په میخانه کې

**۱۲ - حمدالله کاکړ**: دی هم غزلبول شاعر تېر شوی دی، د جنوبي پښتونخوا بلوچستان د سیمې د پښین اوسېدونکی دی، د ((رساله دلنشین)) په نامه د شعر مجموعه لري چې شپږ سوه بیته ده، دا مجموعه نه ده چاپ شوې او په دې بیت پیل شوې ده:

منور په نور د ځان دی یار زما
لمر ختلی پر جهان دی یار زما

**۱۳ - جام محمد کاکړ**: د دولسمې پېړۍ د اواخرو او دیارلسمې پېړۍ د اوایلو شاعر و، دی د ږوب د شمامزو په کلي کې اوسېده. تر (۱۲۵۰هـ.ق) دمخه تېر شوی دی. د اشعارو دېوان یې پاتی دی. په دېوان کې یې غټه برخه د غزلو ده، غزلې یې زیاتره د مینې اخلاقي رنګ لري. د وعظ او نصیحت خبرې هم په کې شته. پر

ځينو غزلو يې د عرفان مالګه دوربدلې ده، د ده ديوان نه دی چاپ شوی، دا يې د يوې غزلې يو بيت دی:

بې حسابـه يم په مينه د خپل يار خوښ
داسې شان به بلبل نه وي په ګلزار خوښ

## د غزل دې بهير ته يوه کتنه:

موږ د همدې بحث په مقدمه کې ولوستل، چې پښتو غزل په پښتو کې کله پيدا شو او د پښتو ادبياتو د تاريخ په لومړي پړاو کې يې ځنګه پاينبت وموند. په دويمه ادبي دوره کې غزل له نويو تمايلاتو سره ځنګه ځان په روښاني اثارو کې ځرګند کړ.

په دويمه ادبي دوره کې موږ تـه تر (۱۰۰۰) زياتو پښتو شاعرانو نومونه ځرګند دي، دا به مبالغه نه وي که ووايو چې له زرو تنو ځخه اتوسوو تنو په پښتو غزل ويلی دی. په دغو غزل ويونکو کې د ځينو بشپړ ديوانونه او د ځينو متفرقې غزلې تر موږه رارسېدلې دي.

ددغو غزلبولو غزلې د بېلابېلو فکري او ادبي هنري جرياناتو تر اغېزې لاندې ايجاد شوې دي، لکه: د پير روښان غزل، د اخوند درويزه د پيروانو غزليات، د هندي سبک تابع غزل، د احمدشاهي عصر پورې مربوطې غزلې.

په پورته ټولو يادو شويو جريانونو کې پښتو غزل د فکر او هنر له پلوه يو ډول انکشاف نه دی کړی، بلکې له لوړو ځوړو سر مخ و، د بېلګې په توګه په روښاني اثارو کې ډېر محدود غزلونه د هنر مالګه لري، زياتره غزلونه يې يوازې تبليغي اهدافو ته وقف شوي دي.

د دروېزه په پیروانو کې غزل سره له دې چې عرفاني او تبلیغي اهداف هم لري، خو ورسره شریعت په کې د روښانیانو د زیاترو غزلو په پرتله په اوچت معیار کې ځای لري. د صوفیانه حلقو غزل تر یوې داسې جذبې لاندې ویل شوی ښکاري چې خاصه روحاني جذبه او خاص کشش لري او پر لوستونکي او اورېدونکي اغېزه کوي.

د خوشال بابا او دده د پیروانو په اثارو کې غزل د موضوع له پلوه وسعت ومومند، هر ډول مسایل په کې بیان شول او هنري ښېګڼې یې هم د توجه وړ دي. د رحمان بابا په دېوان او دده د پیروانو په اثارو کې پښتو غزل د خپل انکشاف لوړو پوړیو ته وخوت او د هندي سبک په پیروۍ ویل شویو غزلو کې پښتو غزل نوي هنري کړه وړه خپل کړل.

د پښتو د دغو متفرقو غزلو ویونکو په باب باید ووایو، کوم پښتو غزلونه چې دغو غزلبولو ایجاد کړي دي، د پښتو د ادبي تاریخ په کوم خاص ادبي جریان پورې اړه نه لري. د دغو خلکو په غزلو کې هغه که د دولسمې پېړۍ دي او که د دیارلسمې او څوارلسمې د اوایلو ډېرې محدودې غزلې هنري او فکري ارزښتونه لري، زیاتره غزلې هغه شور، مستي او کشش نه لري چې د پښتو غزل د یوولسمې پېړۍ د دویمې نیمایي او د دولسمې پېړۍ د خوشال، رحمان او حمید په سبکونو پورې اړوندې غزلې یې لري.

په دیارلسمه پېړۍ کې د غزل پرځای په پښتو ادبیاتو کې داستان ته زیاته پاملرنه لیدل کېږي. د دیارلسمې پېړۍ په دویمه نیمایي

کې، زیاتره شاعران د شرقي ادب ځینې داستانونه او حکایات په پښتو نظموي، دا کار په هند او پښتونخوا کې د چاپ د وسایلو په پرمختیا سره زیات بابېږي او په سلګونو داستانونه پښتو ته اوړي او د تاجرانو له خوا چاپېږي او خلکو ته وړاندې کېږي. ددې کار یو علت دادی چې عام خلک له داستاني اثارو سره زیاته علاقه ښيي، نو ځکه تاجرانو به ددغسې اثارو له چاپ سره زیاته مینه ښودله او شاعرانو هم د غزل او د یواني ادبیاتو پر ځای داستاني ادبیاتو ته پاملرنه کوله.

# د سلیمان ماکو تذکرة الاولیاء



په دې لیکنه کې لومړی د سلیمان ماکو پېژندنه او بیا په ترتیب سره د تذکرة الاولیا معرفي او د هغې محتوا په تفصیل سره شرحه شوې ده. اول تذکرة الاولیا په دوو برخو وېشل شوې ده، چې یوه د نثر برخه ده یانې د سلیمان ماکو خپله لیکنه او دویمه د نظم برخه ده چې د شاعرانو شعرونه او نظمونه دي. همدارنګه د سلیمان ماکو نثر په ترتیب سره، په هغو کې د پښتو، عربي او فارسي ژبې لغاتونه او اغېزې چې په دې نثر کې دي، تفصیل او تحلیل شوي دي. همدارنګه د سلیمان ماکو د نثر ممیزات هم تشریح شوي دي.

## سلیمان ماکو او تذکرة الاولیاء:

د پښتو ژبې له پخوانیو لیکوالو څخه یو هم سلیمان ماکو دی، دی د بارک خان صابزي ماکو زوی دی، چې د کندهار په ارغستان کې اوسېده، د ماکو قوم تر اوسه هم په لږ تعداد هورې اوسېږي او په ابدالیو (درانیو) کې شاملېږي. سلیمان ماکو له دې قومه یو پوه

لیکوال راوتلی دی او د پښتونخوا په غرو کې یې سیاحتونه کړي او د خپل عصر مشهور روحاني او ادبي رجال یې کتلي دي.

دی په خپله وایي چې پر ۲۱۲هـ تللی وم او د پښتونخوا په غرو او رغو گرځېدم او د لویانو مراقد مې لیدل او پلټل، داسې ښکاري چې سلیمان تر دغه مفید او گټور سفر وروسته بریالی شو چې د پښتنو د نومورو بزرگانو د حال او احوال په باب یوه تذکره ولیکي او د دوی ویناوې او اشعار په دې کتاب کې خوندي کړي.

په خواشینۍ سره چې دا کتاب لاتر اوسه ورک دی، خو لومړي مخونه یې چې اته مخه دي، هغه پوهاند عبدالحی حبیبي پر (۱۳۱۹ل) کال په کندهار کې وموندل او د هغو مخونو عکسونه یې د کابل په کالنۍ (۱۳۱۹ل) او پښتانه شعرا لومړي ټوک کې خپاره کړل.

د تذکرې یو څو پاڼې چې پیدا شوې دي، یا نې څلور پاڼې چې اته مخه کېږي او اووه ډک مخونه دي، ځنې معلومېږي چې سلیمان د پښتنو مشاهیرو احوال په داسې ډول لیکل چې د هغو د ژوندانه وقایع ثبت شي او دا خبره هم څرگنده شي چې پلاني سړي څنگه ژوند کاوه، چېرې اوسېده، پلار نیکه او کورنۍ یې کومه او چېرې وه او له هغه سړي څخه د خلکو په خولو او زړو کې کومه وینا او کوم شعر پاتې دی؟ دی په خپل سفر کې د کاملانو حضور ته رسېدلی او کوم مشاهیر چې مړه وو د هغو مراقد یې موندلي او لیدلي دي او د تاریخي وقایعو په ضبط کې یې ډېر دقت کړی دی چې د تذکرې په دیباچه کې دی په خپله وایي:

((په سنه دولس او شپږ سوه د هجري تللی وم او د پښتونخوا په راغو او کلیو ګرځېدم او مراقد د اولیاوو او واصلینو مې پلټل او په هر لوري مې کاملان موندل او د دوی په خدمت خاکپای وم او هرکله په سلام ورته ولاړ چې له دې سفره په کور کېناستم او تناکې وچاودلې د پښو بیا پاڅېدلم او د ښتنه مې مرستون شوم چې احوال د هغو کاملانو وکاږم او دوی چې هغه ویناوې پاتې کړي دي او پښتانه یې لولي.)) اوس له دې څخه ښکاري چې سلیمان ماکو په تذکره کې خپل مشاهدات او د سیاحت لیدل شوي او کتل شوي معلومات کښلي دي. د سلیمان ماکو تذکرة الاولیا د پښتنو پخوانیو شاعرانو په احوال او اثارو کې زموږ یو پخوانی تاریخي او پوخ ماخذ دی. هغه اوه مخه چې له دې تذکرې څخه زموږ لاسته راغلي، ددغو شاعرانو احوال په کې راغلي دي: بېټ نیکه، ملکیار غرشین، شیخ تیمن، قطب الدین بختیار. دا خبره باید هم له یاده ونه باسو چې سلیمان د پښتنو رجالو په تاریخ لیکلو کې هغه سبک نه دی تعقیب کړی چې د شیخ عطار په تذکرة الاولیا کې ټاکلی شوی و، ځکه چې شیخ عطار یوازې د اولیاوو د زهد او تقوا حکایات راټول کړي دي، خو سلیمان د رجالو د ژوندانه احوال او د دوی اخلاق او کورنۍ او هم ادبي موقعیت ښیي او په دې ډول پوه سړی او سترګور مورخ ښکاري. د تذکرة الاولیا د موندلو په اړه راغلي دي چې تذکرة الاولیا د هلمند د ناوې د ادم خان په کلي کې د زړو کتابونو د پلټلو پر مهال د پوهاند عبدالحی حبیبي صاحب لاسته ورغله، چې پر مخنیو چاپونو سربېره پر (۱۳۲۱ل) کال د استاد حبیبي د تعلیقاتو شرحې او سریزې او له اصل متن سره

یوځای د سرمحقق زلمي هېوادمل په زیار چاپ شوې او دغه راز پر (۱۳۷۹ل) کال یوځل بیا د علامه حبیبي د څېړنو د مرکز له خوا د هغې د انګلیسي متن سره یوځای چاپ شوې ده، خو تر دې دمخه هم چاپ شوې ده. تذکرة الاولیا په لومړي ګام کې موږ پر دوو برخو وېشو:

الـف- د سـلیمان مـاکو خپلـه لیکنـه چـې نثـر دی او د شـاعرانو ژوندلیک په کې راغلی دی.

ب- په تذکره کې د شاعرانو راغلی کلام چې په نظم دی.

**الف- د سلیمان ماکو نثر:** تر سلیمان ماکو دمخه د پښتو نثر کومه نمونه زموږ لاسته نه ده راغلې، چې پخوا به د پښتو نثر څنګه و او څه ډول سبک یې لاره، خو د سلیمان ماکو د نثر پوخوالی دا څرګندوي چې ددغه عصر نثرونه به دغسې پاخه وو او له دې نثر څخه څرګندېږي چې د پښتو نثر د ماشومتوب پړاو تېر کړی او د پوخوالي مرحلې ته رسېدلی دی.

د سلیمان ماکو نثر که په تحلیلي سترګه ولیدل شي، تر دغو لاندې درېیو عواملو لاندې یې نشونما راته ښکاره کېږي او په هغه چاپېریال کې چې دې نثر وجود موندلی و هم دا درې عوامل موجود وو:

۱- د پښتو ژبې خپل اثر چې سلیمان پښتون و او د پښتو ژبې ویونکی و، نو طبیعي ده چې دغه لامل به دده د نثر په ادبي بڼه او جوړښت پوره اثر درلود او ښایي چې تر ده دمخه چې کوم نثاران موجود وو د هغو د لیکلو سبک به هم پر ده درونـد اغېز درلود.

۲- په فارسي ژبه کې چې کوم ادبي حرکت موجود و او د سليمان چاپېريال يې نيولی و، ضرور به يې دده پر نثر هم اثر کړی وي.
۳- په دغه عصر کې فارسي نثر رشد موندلی و، هم په غزني هم په خراسان او هم په هند کې خپل عروج ته رسېدلی و، تاريخ بيهقي او زين الاخبار او د محمد عوفي لباب الالباب او نور کتابونه ددغه عصر مهم منثور اثار دي، ځکه پښتو هم ددغه ادبي چاپېريال په منځ کې ژوند کاوه، نو يې اغېزې هم طبيعي دي.
په دغه عصر کې عربي ادب او عربي ژبې هم پوره او بشپړ اثر کړی و، په خپله فارسي نثر هم په ابتدا کې تر دغه اثر لاندې نشونما وکړه. د (۵۰۰هـ) په شاوخوا کې چې کوم فارسي منثور کتابونه وليکل شول، د عربي ژبې اغېزې په کې څرګندې دي، ځکه پښتانه هم له عربي ژبې سره په دغه زمانه کې پوره اړيکي لري، پر پښتو هم د عربي ژبې اثر شوی دی. د سليمان ماکو په حياتي چاپېريال کې دغه درې سايقه موجود وو چې هر يو په ادبي تحول او د ليک او نثر پر ډول باندې طبعاً اثر کوي او زه هم تر دغه درې عواملو لاندې د سليمان نثر تحليلوم:
**الف- د سليمان د نثر پښتو لغتونه:** که په عمومي ډول سليمان ماکو نثر ارزول کېږي، نو دا تقريباً په نړه پښتو نثرونو کې حسابېدلی شي، ځکه د پرديو ژبو تاثيرات پرې ډېر کم دي او ان که څوک اوس هم پښتو نثر ليکي، نو د نورو ژبو دومره کلمې به ضرور په کې کاروي. د سليمان ماکو له نثر څخه داسې ښکاري چې هغه وخت د پرديو ژبو (عربي او فارسي) تاثيرات پر پښتني ادبي چاپېريال وو، خو دومره زيات نه وو چې ټول نثر متاثر کړي، دلته به

د ده د نثر سوچه پښتو لغاتونو ته اشاره وکړم: لوی، استازی، روښان، ویاله، هوسېږم، خاوري، راغه، کلی، پلټل، لوری، مونډل، څښتن، پاڅېدل، وینا، لولي، شپه، ستانه، کول، سندرې، یرغل، غرشین، ملګری، ستر، واکمن، بری، مرورل، پاړکی، څرګند، مېشت او داسې نور. د سلیمان ماکو په نثر کې کارول شوي دي، اکثره پښتو لغتونه اوس هم په خپله هماغه پخوانۍ مانا او مفهوم او هماغه شکل کارول کېږي. د سلیمان ماکو د نثر له پوخوالي څخه داسې ښکاري چې پښتو نثر به تر دې پخوا ښه اوږد مزل کړی وي چې د سلیمان ماکو د مهال داسې پخې مرحلې ته رسېدلی دی.

**ب- د سلیمان ماکو په نثر کې عربي لغتونه:** د سلیمان ماکو په نثر کې یو شمېر عربي لغتونه هم شته، خو دا اکثره داسې لغتونه دي چې مذهبي او عقیده یي مفاهیم لري، دا ډول لغتونه اکثره اوس هم د مذهبي اصطلاحاتو په ښه موجود دي او ترجمه یا اندولونه یې ډېر ممکن نه برېښي.

عربي ژبې د اسلام تر راتګ وروسته په افغانستان کې خپلې اغېزې وښندلې دا اغېزې لومړی پر فارسي ژبه او وروسته پر پښتو ژبې محسوسې شوې، خو د پښتو په اندول یې پر فارسي ژبه اوس هم تاثیرات زیات دي، دلته به څو عربي لغتونو ته اشاره وکړو: قدوة الواصلین، مراقد، حمد، برکت، نصیب،صلی الله علیه وسلم، غریب، هجري، اولیا، آل، امابعد، نقل، عبادت،مبارک، واقع، قبول، کفر، شیخ او ځینې نور...

**ج- د سلیمان ماکو په نثر کې فارسي لغتونه:** د سلیمان ماکو په نثر کې د عربي په نسبت فارسي لغتونه ډېر کم دي خو د استاد عبدالحی حبیبي په نظر د سلیمان ماکو په نثر کې د فارسي ژبې د هغه وخت د نثر څه اغېز شته. د سلیمان ماکو تر عصر نږدې دوه سوه کاله دمخه د غزنویانو په عصر کې فارسي نثر ډېر پرمختګ کړی و، ډېر روان، ساده او عام فهمه و، لنډې لنډې جملې یې لرلې او له ابهام او تکلف څخه خالي و. د سلیمان ماکو نثر هم ساده سلیس او روان دی، جملې یې هم لنډې دي، ابهام، تصنع او تکلف هم نه لري، د فارسي نثر د هغه وخت د خوږلنیو د څه ناڅه اغېزمنۍ ترڅنګ یو شمېر فارسي لغتونه هم د سلیمان په نثر کې لیدل کېږي، لکه: سپاس، خاکپای، بزرګ، روزګار، مهربان، درخواست او ځینې نور...

**د- د سلیمان ماکو د نثر ګرامري جوړښت:** سره له دې چې د سلیمان ماکو په نثر کې زیاتره سوچه پښتو لغتونه کارېدلي دي او لیکنی متن یې هم سږي ته ډېر خوند ورکوي. له دې سره سره یې لیکنۍ بڼه له عامې محاورې او همدارنګه د پښتو ژبې له اوسني ګرامري جوړښت سره اړخ نه لګوي. د نثر دا حالت کېدی شي د دوو عواملو له امله رامنځته شوی وي، کېدی شي د هغه وخت د پښتو محاورې ژبه همدا شان یا دې ته ورته وه، یا هم نثر په دې بڼه لیکل کېده او یا هم د عربي ژبې تاثیر پر فارسي او د فارسي پر پښتو پرېوتی وي. د سلیمان ماکو د نثر په ځینو جملو کې مبتدا او خبر، فاعل او فعل، مضاف او مضاف الیه سره وړاندې وروسته دي، دا

کار د پښتو له اوسني ګرامري جوړښت سره توپیر لري، کېدی شي د لرغونې دورې نثر همدا بڼه درلوده، خو بیا هم د سلیمان ماکو نثر، د پیر روښان او د هغه د پلویانو او همدارنګه د اخوند درویزه او د هغه د پلویانو تر نثر ډېر زیات خوږ، سوچه او روان دی؛ تکلف، تصنع او ابهام په کې نه شته، دلته به د سلیمان ماکو د نثر څو ترکیبونه راوړو او بیا به د پښتو ژبې د اوسني ګرامري جوړښت اصله بڼه هم ورسره ولیکو:

| د سلیمان ماکو نثر | اوسنی ګرامري جوړښت |
|---|---|
| وایم حمد وسپاس د لوی خاوند | د لوی خاوند حمد و سپاس وایم |
| چې دی بادار د کونینو او رحمت د ثقلینو | چې د کونینو بادار او د ثقلینو رحمت دی |
| په ویاله د ارغستان هوسېږم | د ارغستان په ویاله هوسېږم |
| مراقد د اولیاو او واصلینو مې پلټل | د اولیاو او واصلینو مراقد مې پلټل |
| او تڼاکې وچاودلې د پښو | او د پښو تڼاکې مې وچاودلې |
| سرېڼ نه درلودل زامن | سرېڼ زامن نه درلودل |
| او هر کله به ویل خپل ورور ته | او هر کله به یې خپل ورور ته ویل |

او داسې نور ترکیبونه او نورې جملې. دلته موږ د سلیمان ماکو په نثر کې ګورو چې نثر له عامې محاورې څخه لرې شوی دی. په پښتو کې عامه قاعده همدا ده چې اول فاعل راځي بیا فعل، اول مبتدا ده او بیا خبر،خو د سلیمان ماکو په نثر کې دا قاعده تر ډېره حده معکوسه ده.

**ه- د سلیمان ماکو په نثر کې پخواني لغتونه:** د سلیمان ماکو په نثر کې پر هغو سوچه پښتو کلمو سربېره چې اوس هم په پښتو کې استعمالېږي، ځینې داسې نور پښتو لغتونه هم شته چې

یا اوس نه کارېږي او یا هم په لږ شاني لفظي تغیر او تحول سره کارېږي یانې متروکې کلمې په کې شته، دلته به دې ډول کلمو ته هم اشاره وکړو.

| په تذکرة الاولیا کې کارېدلې بڼه | اوسنۍ بڼه |
|---|---|
| پښتنخا | پښتونخوا |
| مرستون | مرسته غوښتونکی (په پخوانۍ بڼه اوس متروکه ده) |
| لولي | ویلې |
| جوبله | جنګ پخوانۍ بڼه یې مترکه ده |
| پپنا | پوپنا |
| دښنه | دښمن |
| کتهارو | تورې (پخوانۍ بنه یې متروکه ده) |
| ډېرزښت | ډېر زیات |
| ګنهوڼ | شمېر |
| کول | نسل |
| بما (بومیا) | لاربښود (اوس متروکه ده) |
| وګروهېد | متعقد شو (دابڼه هم اوس متروکه ده) |

او ځینې نورې کلمې چې اوس یا متروکې دي او یا یې هم بڼه کې بدلون راغلی دی، په تذکرة الاولیا کې د دغسې مړو او پخوانیو کلمو شتوالی ددې ادبي تذکرې لرغونتیا او ځانګړتیا په ګوته کوي.

## د سلیمان ماکو د نثر ځینې ممیزات:

اوس چې د پښتو د لومړي نثر اساسي عناصر (د پښتو، فارسي او عربي اغېزې) وڅېړل شول، یو څو نور مهم ادبي ممیزات هم لاندې ذکر کېږي، چې په دې نثر کې لیدل کېږي.

**۱- ایجاد**: د سلیمان ماکو د نثر یو عمده او څرګند مزیت د جملو ایجاد دی چې دغه ممیزه یې د فارسي له قدیمه نثره سره شریکه ده تر غزنویانو دمخه تر (۴۰۰هـ) پخوا د فارسي نثر نهایت موجز او جملې یې لنډې دي.

**۲- توصیف او توضیح**: د سلیمان ماکو په نثر کې ځینې جملې داسې هم شته چې یوازې د توصیف او ښو څرګندولو لپاره راوړل شوي دا مزیت د فارسي په ساماني سبک کې لرو، خو د غزنوي دورې لیکوالو ښه پسې ډېر کړ او د مطلب د روښانولو لپاره یې ځینې پرله پسې جملې راوړلې چې مقاصد ښه پسې واضح شي، د مثال په ډول (په ویاله د ارغستان هوسېږم او په دې ځمکو یاد ېږم) بل مثال ((شیخ بېټنی هوسېد په غره باندې او هلته دېره و)) بل مثال ((د دوی په خدمت خاکپای وم او هر کله په سلام ورته ولاړ)) چې په دغو مثالونو کې دویمې جملې د توصیف او توضیح لپاره راغلې دي.

**۳- د افعالو تکرار**: د فارسي پخواني لیکوال تر غزنوي دورې دمخه د هرې جملې لپاره د فعل ذکر لازم ګڼي. که څه هم یو فعل په څو جملو کې مسلسل تکرار هم شي. د افعالو تکرار چې وروسته یو ادبي عیب هم وګڼل شو د ساماني عصر په نثر کې عیب نه و،

بلکې د الفاظو تکرار او د جملو تکرار هم کېده او دغه تکرار په اوستا او پهلوي ژبو کې هم و چې فارسي ژبې ته راغلی و او دا يو قديم ادبي سنت ګڼل کېده. د مثال په ډول سليمان په خپل نثر کې داسې ليکلي: «بختيار په پښتو سندرې کړينه، اوښې تويوينه خدای ته نارې کړينه، غلبلې کړينه، پارکی لرينه» وګورئ پنځه فصله په يوه ليکه کې سره يوځای دي چې دوه کټ مټ تکرار هم دي. دلته دا بايد هېر نه شي چې د ژبې دغه طبيعي او روان سبک ډېر ښه دی او د افعالو د حذف او عطف ناروا دود وروسته رواج شوی دی، چې کله کله د کلام رنګ او خوند وراړوي، موږ بايد په اوسني نثر کې دغه د افعالو د حذف بدعت رواج نه کړو او د قديم طبيعي او خواږه سبک پيروي وکړو.

## اخځونه


۱- د پښتو ادب تاريخ، پوهاند عبدالحی حبيبي، ۱۳۸۴ل کال.
۲- د تذکرة الاوليا په اړه د پوهندوی محمد اسمعيل يون مقاله.

# په لرغوني ادب کې د نظم او نثر انډول ؟



نثر او نظم د ادبیاتو دوه مهم ستونونه دي چې ټول ادبیات پرې استوار دي او د یوې ژبې استوارتوب هغه مهال لاټینګ او قایم وي چې دواړه یې پرخپل ځای برابر او ټینګ وي، که یوه خوا زیاته قوي وي او بله خوا کمزورې وي، نو بیاهم شرایط د ډاډ وړ نه دي، نو که ولیدل شي د نظم پله تر نثره له پخوا راهیسې درنده وه یانې نظم ته زیات کار شوی او نثر ته وروسته کار پیل شوی دی، ددې تر شا مختلف لاملونه شتون لري.د پخوانیو اریایانو او د اکثرو قومونو زاړه ادبي اثار منظوم وو او منثور یې ډیر کم او یا لږ پاتې دي.

(ویدا) او (اوستا) کتابونه دواړه منظوم وو او د سانسکریت زاړه کتابونه هم اکثره منظوم دي ، نو له دې سببه د اریایي اقوامو د نظم تاریخ تر نثر دمخه دی، په دې کې هیڅ شک نشته چې د ژبې اساس پر نثر اېښودل کېږي، ځرنګه چې بشر خپل پخواني ادبي اثار په حافظه کې ساتل او د لیک او تحریرفن لانه و ایجاد شوی، نو د حافظې د ساتلو لپاره نظم تر نثر اسانه و او هر وخت به اریایي اقوامو( شاعرانو ) خپل دیني او ټولنیز مطالب په نظم کول او حماسي شاعرانو به خپل جنګي او حماسي اشعارپه منظم ډول

جوړول. د ویدا قدیم اثار د دغو ریشانو د ذوق نتایج دي . اوستا هم د زردشت او د دده د اتباعو گیتونه ((سندرې)) دي ، د لرغوني یونان ((ایلیاد او اوډیسې)) هم د (هومر) حماسي سرودونه دي . د پښتو ژبې په ادبي تاریخ کې هم موږ ته تر اسلام را وروسته لومړني منظم اشعار لاسته راغلي او د قدماوو په دوره کې تر (۲۰۰ هـ ق) دمخه د کوم منثور اثر درک نه لرو، فقط د محمد هاشم بن زید سرواني د (سالو وږمه) یو کتاب موږ ته معلوم دی، مگر منظوم اشعار خورا زیات دي . لکه څرنگه چې پخواني اریایي متون سینه په سینه رانقل شوي، وروسته په کتابونو کې ثبت شوي او تر موږ رارسیدلي دي، څکه پښتو ژبه دپخوانیو منظوماتو په شهادت موجوده وه ، نو طبعاً به یې نثر هم درلود مگر د لیک او تحریر د نه موجودیت په سبب به نثر نه وي ثبت شوی او که وو هم هغه به د زماني د ناوخوالو څپو له ځانه سره وړی وي، نو ځکه موږ له قدماوو او پخوانو راوروسته د منځنیو لیکوالو په دوره کې چې څلور پېړۍ رانغاړي، د نثر نمونې په لاس کې لرو او نثر لیکونکي پښتانه موږ پېژنوچې کتابونه یې تالیف کړي دي. د مغولو تر تاړاک او چپاول دمخه ((۲۰۰ هـ ق)) پخوا د پښتو ژبې ادبي مرکزونه د غور، هلمند، ارغنداو او د ترنک ورشوگانې وې. دغه مرکزونه د مغولو خونخوارو لښکرو وران کړل او د مدنیت یوه برخه یې هم پکې پرېښوده. نو داسې ښکاري چې د پښتو ډېر کتابونه او علمي اثار هم ورسره تباه او پوپناه شوي دي. یو کلک او مظبوط دلیل شته، چې د (۲۰۰ هـ ق) په حدودو کې چې د نثر کومه نومونه او بېلگه موجوده ده هغه ډېره پخه او خوږه ده ، د یوې ژبې

نثر چې دې درجې ته رارسېږي نو طبعا يې بايد دمخه ابتدايي مرحلې تېرې کړې وي چې د وړکتوب له مرتبوڅخه د زړښت او پوخوالي درجې ته راغلی وي، نو له دې خبرې څخه داسې استدلال کوو، چې بايد ډېر مخکې لږ تر لږه دوه درې پيړۍ پر پښتو نثر تېرې شوې وي،چې د اومې پېړۍ (۲۰۰ هـ ق) کلونو متانت او پوخوالی يې موندلی وي. له همدې کبله ويلای شو چې د نظم پله تر نثر ځکه درنده ده چې په پخواوختونو کې له يوې خوا د نثر لپاره د املا او انشاء زمينه نه وه مساعده او بل خلکو تر نثر نظم ژر يادولای او حافظې ته سپارلی شو او نثر ورته مشکل و شايد له همدې امله له منځه تللی وي، نو ځکه يې د نظم په شان ډېرې بېلگې نه شته.

# په پښتو لرغوني ادب کې ویرنه



په پښتو لرغوني ادب کې لومړنۍ ویرنه شیخ اسعدسوري د محمد سوري زوی د قصیدې په چوکاټ کې د غور د پښتون پاچا امیر محمد سوري، چې د سلطان محمود غزنوي په واسطه د «اهنګرانو» په کلا کې کلا بند کړای شو او د ګرفتارۍ په حال کې یې زهر وخوړل، مړ شو، ویلې ده، د قصیدې څو بیتونه په دې توګه دي:

د فلک له چارو څه وکړم کوکار
زمولوي هرګل چې خاندي په بهار
هرغټول چې په بیدیا غوړېده وکا
رېژوي یې پاڼې کاندي تار په تار
ډېر مخونه د فلک څپېړه شنه کا
ډېر سرونه کا ترخاورو لاندې زار
د واکمن له سره خول پرېباسي مړ سي
د ېبوزلو وینې توې کاندي خونخوار

xxx

سخ په تا ای محمده د غور لمر وې
په نړۍ به نه وي ستا د عدل سار

تـه پـر تنگـه وې ولاړ پـه تنگـه مـړ سـوې
هـم پـه تنگـه دې پـه تنگـه کـا ځـان جـار
که سوري دې په تگ وېر کاندي وېرمن سول
هـم بـه ويـاړي سـتا پـه نـوم سـتاپه تېـار
پـه جنـت کـې دې وتـون زمـوږ واکمنـه
هـم پـه تـا دې وي ډ يـر لـور د غفـار.

شاعر په دې قصيده کې د فلک له جبر ، جفا او بې پروايۍ څخه سرټکوي، ژاړي فلک ظالم معرفي کوي او شکايت ورڅخه کوي، داځکه چې فلک امير محمدسوري له منځه وړی، د هغه پاچاهي، تاج اوشتمني يې له خاورو سره برابر کړي. د طبيعت منظرې، د مرغانو نغمې او نورې زړه کشوونکې ښکلاوې د امير محمدسوري په نشتون کې هېڅ بولي، د هغه مړينه د ملت او وطن لپاره وير او ماتم بولي. له بلې خوا د امير محمد مېړانه او غيرت بيانوي او د هغه د دورې نظم، ابادي او ارامي خلکو ته څرگندوي. لنډه دا چې د امير محمدسوري ټولې برياوې روښانوي او په پای کې د نوموړي مړينه د وطن او قوم لپاره لويه ضايعه بولي.
دا په پښتو لرغوني ادب کې د ويرنې لومړنۍ او بشپړه بېلگه ده، البته تر دې وروسته ځينې شعرونه هم شته چې غمجن حالت بيانوي، خو د شيخ اسعد سوري د ويرنې په شان پوره ويرنې نه دي.

# په پښتو ادبیاتو کې نکلونه او ملي هنداره اثر

سریزه:



د لومړي کال د دویم سمستر د (پښتو ادب تاریخ) مضمون ګران استاد ښاغلي پوهندوی محمد اسمعیل یون له خوا تدریسېږي، استاد یون تل د پښتو او پښتونولۍ لپاره نه ستړي کېدونکې هلې ځلې کړې دي، په دې موخه چې موږ خپل ادبي فعالیت جاري ساتلی وي، نو یې ټول ټولګي ته کورنۍ دندې ورکړې، دا کړنه محترم استاد ځکه وکاروله چې له یوې خوا زده کړیالان له ادبي څېړنې سره بلد شي او بله مهمه موخه یې دا وه چې ټولو راغونډو شویو موادو ته کتابي بڼه ورکړل شي او په پښتو کې یو بل نوی اثر چې هغه هم د یوې ادبي دورې په اړه وي، لوستونکو ته وړاندې شي.

ماته د نورو ملګرو په شان یوه ځانګړې موضوع چې عنوان یې (په پښتو ادبیاتو کې نکلونه او پر ملي هنداري کتاب تبصره) راکړل شوه، ما هم پر یاد عنوان تر خپل وسه کار کړی دی، هیله ده چې د پاملرنې وړ مو وګرځي.

په پایله کې زه له یون صاحب د دغه ادبي فعالیت له امله زیاته مننه کوم او له الله(ج) څخه یې تل په ژوند او پر خپلو سیالانو بری غواړم.

# نکلونه

د پښتو د شفاهي ادبیاتو ډېره خوندوره برخه نکلونه دي. دا نکلونه له پېړیو راهیسې د ولس په حافظه کې پاتې شوي او ځینې اشکال یې تر نن ورځې پورې رارسېدلي دي.

نکلونه د پښتو د بېلابېلو سیمو په کلیو او بانډو کې موجود دي، که یو نکل په یوه سیمه کې ایجاد شوی هم وي، په هماغې مشخصې سیمې پورې مربوط نه دی پاتې شوی، بلکې نورو سیمو ته هم ور انتقال شوی او عام شوی دی. په نکلونو کې د انتقال په دې جریان کې ځینې محیطي اصطلاحات، جغرافیایي نومونه او روایات تبدیل شوي او پرځای یې د بلې سیمې اصطلاحات او نومونه راغلي دي.

د زمان په تېرېدو سره د نکلونو په ژبه کې هم تغیر راغلی دی او همدا راز د نکلونو په ځینو روایاتو کې هم تغیرات واقع شوي دي.

د پښتنو په سیمو کې موجود نکلونه پر دوو برخوو وېشلای شو:

(۱) د پښتنو خپل نکلونه: چې قهرمانان، محیط او ټول کره وړه یې پښتني دي او د پښتنو د اجتماعي ژوندانه په څېړنه کې له دې ډول نکلونو څخه ډېره استفاده کېدی شي او د دوی د فرهنګ د ډېرو پخوانیو خصوصیاتو ځینې څرکونه هم ځنې ایستل کېدی شي.

په دې پښتني نکلونو کې بیان شوي حکایات او پېښې د پښتنو له هماعه وختني اجتماعي فرهنګي ژوند څخه رنګ اخلي .

پښتني نکلونه ځینې ډېر اوږده دي. په دغسې نکلونو کې په کیسو کې کیسې بیانېږي، خوځینې یې بیا ډېر اوږده نه دي او د شرقي ادبیاتو حکایتي اثارو ته ورته دي.

ددغو نکلونو اوسني اشکال د خلکو له خبرو او وېناوو سره سم اوډل شوي دي، په دې نکلونو کې ځای ځای ځینې نارې هم شته، چې نکل چیان یې د نکل د بیان په ترڅ کې په مخصوصو ځایونو کې د نکل د کرکټر له خولې وایي.

په پښتو نکلونو کې د دغسې نارو موجودیت ځینې څېړونکي په دې باوري کړي دي ، چې دغه نکلونه به په لومړي سر کې منظوم ایجاد شوي وي او بیا به یې د وختونو په تېرېدو سره منظوم اشکال هېر شوي وي او د نکل خاکه به د خلکو په حافظو کې پاتې وي او بیا به د همدغې خاکې له مخې د ولس له عامې محاورې سره سم د نکلونو اوسنۍ بڼې عیارې شوې وي او کومې منظومې چې د نکل له لومړنیو اشکالو څخه د خلکو په حافظو کې پاتې شوې دي، هغه یې د نارو په توګه د نکل په اوسني شکل په خپلو خپلو ځایونو کې ځای کړې دي .

د پښتنو په خپلو ملي نکلونو کې ادم خان درخانۍ، دلۍ شهو، مومن خان شیرینو، طالب جان او ګل بشره، ولي جان او تانو، موسی جان او ګلمکۍ، فتح خان او رابیا ، ښادي او بیبو، جمال خان او زیب النسا ، ظریف خان او مابۍ، جلات خان او شمایله او نور ډېر مشهور دي، د پښتنو خپل نور ملي نکلونه هم شته.

( ۲ ) لـه نـورو ولسـونو څخـه راغلـي نکلونـه: د بـېلا بېلـو ولسونو ترمنځ دود دي، په شفاهي ډول ولس اخيستي دي، په ځينو کې يې له خپلو محيطي او اجتماعي، فرهنګي شرايطو سره سم څه ورزيات کړي او يالړ کړي دي په دې کټګوري نکلونو کې شهزاده بهرام او ګلندامه، سيف الملوک او بدري جماله او نور د دېوانو ښاپېريانو ډېر نکلونه شامل دي.

د پښتنو په کليو او بانډو کې اوس هم نکلچيان شته، دا نکلچيان هغه خلک دي، چې دا نکلونه يې په خپلو حافظو کې ساتلې او د کال پر بېلا بېلو وختونو په تېره د ژمي په اوږدو شپو کې يې کليوالو ته وايي.

د پښتنو ځينو خواخوږو لکه مرحوم ګل محمد نوري، عابد شاه عابد، پروفيسورولي محمد جان سيال کاکړ، پروفيسورمحمد نواز خان طاير، عبدا لکريم پتنګ دا ډول نکلونه له اوله راټول کړي او چاپ کړي دي.

په ورستيو وختونو کې: نورالله ولسپال، محمد مومن پتوال، غوتۍ خاورې، ميراحمد ګربز او علي محمد منګل هم له خپلو سيمو څخه ځينې پښتو نکلونه راټول کړي دي.

## ملی هنداره

دا کتاب چې چمتو کوونکي او راغونډوونکی يې مرحوم محمد ګل نوري دی، د پښتو د شفاهي ادب غوره او خوندوره ټولګه ده چې ښکلي او هنري نکلونه په ځان کې رانغاړي او د پښتو ژبې لپاره د مرغلرې ارزښت لري، په کتاب کې د ولس په خوله حقيقي

نکلونه او د کرکټرونو په اوازونو باندې نارې او لنډۍ شته او همدا راز د پښتنو د سيمو دود او دستور يانې د پښتنو سپېڅلې مينه، پر ژمنو ولاړ او د غيرت او مېړانې کيسې د غوره او ښکلو کرکټرونو په نظر کې نيولو سره ليکل شوي دي، چې هره کيسه يې د يادونې وړ ده . پخوا هم په کليو او بانډو کې د اناګانو، نيکه ګانو او نورو مشرانو له لوري په ځانګړي وخت کې دا ډول کيسې او نکلونه کېږي او زيات مينوال لري، ځکه دا په ځان کې يو ځانګړی خوند لري، په نکلونو کې هر ډول کيسې شته يانې حماسي، عشقي او حکايتي خو زياتره خلک د عشقي نکلونو په اصطلاح عمليان دي. دا کتاب هم زياتره عشقي نکلونو ته ځانګړی شوی دی، چې څرنګه پښتانه سپېڅلي عاشقان تر کومه حده پورې وفادار دي او د غيرت او ننګ لپاره حتی پښتانه د سر سودا کولو ته راځي دي. بله مهمه خبره د کتاب دا ده چې د فولکلوري ادبياتو بډايه پانګه؛ نارې او لنډۍ پکې زياتې دي، لکه :

سر د سره پالنګه هسک کړه فتح خانه
ياغي سوی هندوستان رعيت ملکونه



دروازه ژر کړئ راخلاصه ګوريانو
راپسې د زرغونو توتيانو سيل دی



دا کاروان د شمس الدين په طلا بار دی
دا ټول د برېڅانو ککی ښکار دی



که اور ګډ کړي د برېښانو په سپينږيرو
مرور يې پخلا نه کړل
لا د لاسه ورښيي ، ورښيي ياغي ملکونه



کرميه چې غم نه وي ته غم راوړې
کرميه که زما په دعا کېږي
کرميه په لم غوټه په سپرو واوړې

په اوسني وخت کې ليدل کېږي چې د ډراماتيکو ادبياتو مينوال ډير زيات دي، د نړۍ اقتصاد پرې چلېږي چې له دې له ډلې څخه د هاليوډ او باليوډ يادونه مهمه ده، ځکه چې دوی په سلګونه زره خوښوونکي لري او که داسې ووايو چې د باليوډ يا هندي سينما د هندوستان د اقتصاد د ملا تير جوړ کړی دی، نو مبالغه به مو نه وي کړي، ولې موږ تاسو يې وينو چې دوی څومره فلمونه او سريالونه جوړوي. فلم جوړونکي اوس په کيسو پسې ګرځي چې يو څه ځانګړې وي، خو نه ورته پيدا کېږي. که دوی زموږ ( ملي هنداره) کتاب ولولي نو تاسو يقين وکړئ چې پر هغه ورځ به فلم شروع کړي. موږ تاسو خو په نورو ډګرونو کې د پرديو تر يرغل لاندې وو، خو له کله چې نوی دولت راغلی او مطبوعاتو ازادي موندلې ده بس د نورو هېوادونو سريالونه او ډرامې يې پر موږ را ايله کړي دي او کورنۍ يې يوې بلې خواته سوق کړې دي. دا دوه لاملونه لري:

**۱ - لومړی لامل:** دا چې موږ تر دې مهاله پورې له خپلو ارزښتناکو اثارو څخه خبر نه یو او یا هم د نورو کړه وړه خوند راکوي.

**۲ - دویم لامل:** دا کېدلای شي چې دلته خارجي لمسون دی او زموږ ځینې شخصي تلویزونونه د پردیو په پیسو چلېږي، او دا واضح خبره ده چې هر څوک چې دوی ته پیسې ورکوي د هغوی ګوډاګیان دي.

پکار دا ده چې پر دغو خوندورو نکلونو باندې باید ښکلي هنري فلمونه جوړ کړل شي او نورو ژبو ته وژباړل شي او خلکو ته د لاسرسي لپاره وېبپاڼو ته پورته شي ترڅو عام شي. دا کار به د ادبي یرغلګرو پر مخ څپېړه وي. د بېلګې په توګه به د ملي هنداري له کتاب څخه یوه ښایسته کیسه را واخلم:

## جلات خان او شمایله

و نه و یو سړی و، دده دوه زامن او یوه ښځه وه، د مشر زوی نوم یې خنکار او د کشر زوی نوم یې مسلم و. د سړي روزګار سم نه و او دوو زامنو یې په دام کې چوغکۍ نیولې او کورته به یې راوړلې او په اصطلاح د ژوند چارې یې پرې پرمخ بیولې.

یوه ورځ دغه سړی راولاړ شو او له ځانه سره یې دا پرېکړه وکړه چې نور نو دغسې ژوند خوند نه کوي ځم غره ته یا به څه پیدا کړم او یا به مړ راشم . ښاغلی غره ته لاړ او زیاته ستړیا یې وګالله چې بلاخره یې یوه دانه هګۍ ومونده او کورته یې راوړه، ماینې یې

ورتـه وویـل چې بازارتـه یې یوسـه خرڅـه یې کـه او پـه بـدل کې یې خوراکي توکي راوړه . سړی بازار تـه راغـی او هګـۍ یې پر صراف باندې پر درې سوه افغـانۍ خرڅـه کړه او پـه ډېرې خوشحالۍ یې پیسې کورتـه راوړې او ژوند یې پرې سم شو. یوه ورځ یې ښځې مشوره ورکړه چې دغـه مرغـه ونیسـه او کورتـه یې راوړه، سړي دام مرغه ته پټ کړ او مرغـه یې ونیـو او کورتـه یې راوړ او پـه کـور کې هګـۍ ورته اچوې، څه دې سر درګرځوم ، دوی خانان شول او غټه کلا یې جوړه کړه. دغـه سړی مړ شو مرغـه او پیسې یې زامنو تـه پاتې شوې. یوه ورځ د هلکانو مور خپلو زامنو ته وویل چې یوه ورځ دغه صراف مېلمه کړئ چې زموږ هګۍ هر وخت رانیسي، دوی هم ورغلل او صراف یې مېلمه کړ، صراف شرط پرې کېښود چې ماتـه بـه همدغـه مرغـه چې هګـۍ یې تاسو ماتـه راوړئ راتـه حلالـوئ او درست چرګ بـه ماتـه پخوئ، دوی هم ورتـه وویـل: سمه ده. وینځې چرګ پوخ کړ او د چرګ څخه یې سر یوه هلک ته ورکړ او زړه یې بـل هلک ته ورکړ چې و یې خوري ځکه دوی وږي وو، دا دی صراف راغی ګوري چې د چرګ سر او زړه نشته ، صراف ورتـه وویـل تاسو پرخپلې ژمنې و نـه ختلاست او بسـته چرګ مو نـه دی راتـه راوړی، وینځه په موضوع خبره شوه او هلکانو تـه یې وویـل چې ځئ تښتـئ چې مور مو وهي، دواړو ورونو له وېرې تېښته وکړه او لرې د صحرا خواته لاړل، د یوې ونې لاندې خنکـار بې حسـه ویـده و او مسـلم یې زیات وارخطا کړی و، ځکه له یوې خوا صحرا وه او له بلې خوا دوی هم څه نه وو خوړلي. خیر مسلم د کومک په هیله له هغه ځایه یو څه راتېـر شـو او تېـې تـه وخـوت چې ګـوري یـوه غټـه اجتمـاع راغونـډه

شوې ده او پاچا یې مړ شوی دی باز یې ایله کړی دی چې نوی پاچا پیدا کړي، دی هم ورغی باز راغی دده پر سر کېناست خلکو سره وویل چې باز خطا ووت خیر باز یې بیا وشړه باز بیا راغی د مسلم پر سر کېناست خلکو بیا باز وشړه چې باز درېیم ځل راغی او د مسلم پر سر کېناست، خلکو وویل نو همدا مو پاچا دی مسلم هم ورسره ولاړ او خپل ورور یې هېر شو. دا کمال دهغه چرګ و چې ده یې سر خوړلی و، مسلم ته پرېږده، خنکار پسې راواخله، خنکار پروت دی تر ونې لاندې درې مرغۍ راغلې په خپلو منځو کې سره ګډې دي چې دغه ښایسته ځوان ولې همدغسې مړ پروت دی. یوې مرغۍ وویل چې دی مړ نه دی که دغه د ونې پاڼه دده په خوله کې ولوېږي او او به یې دی تېرې کړي، نو جوړ به شي، مرغانو له ونې پاڼې ورېژولې او یوه پاڼه راغله او د خنکار په خوله کې پرېوته هغه هم د پاڼې اوبه تېرې کړې روغ رمټ شو او راپورته شو چې ګوري مسلم نشته، د هغه په تلاش پسې د غونډۍ سرته وخوت چې ګوري هلته هم د پاچا موندنې لپاره باز خوشې شوی دی. خنکار هم ورغی د مسلم په شان باز درې ځلې دده پرسر کېناست او خلکو هم دی د خپل نوي پاچا په حیث قبول کړ. خیر دغه دې وختونه تېرېږي مسلم خان په یوه ځای کې پاچا دی او خنکار په بل ځای کې. د مسلم خان اوه زامن دي او د خنکار هر واري لونې پیداکېږي او د پیدا کېدو سره یې سم وژني اخره د اووم ځل لپاره د خنکار لور پیدا شوه داځل یې ښځې لور خپلې یوې وینځې ته ورکړه چې پالنه یې پټه وکړي او خرچه یې ورکوله، شپې او ورځې تېرېږي وختونه تېرېږي شمایله پېغله شوه او داسې ښکلې ده چې سترګې نه پرې رونېږي، وینځې

يې ومور ته وويل چې دغه ده نو شمايله نوره پېغله شوه او همدلته اوسيږي خو داسې نه وي چې پلار يې راخبر شي او يا ناخبره له دې سره ناروا شروع کړي بيا به نو څنګه کېږي. دشمايلې مور شمايله راوغوښته اوکورته يې راوبلله. شمايله بام ته وختله سيل کوي چې دهغه خوا خنکار راغی اوسترګې يې پرې ولګېدې او پرې مين شو، خو ښځې يې ټوله کيسه ورته وکړه چې داسې او داسې .... دا ستا لور ده ........

خنکار هم داپرېکړه وکړه چې دا د وژلو نه ده خو مېړه ته به يې په شرايطو ورکوم او چاچې شرايط پوره نه کړل سر به يې غوڅوم ..

خلکو ته د شمايلې دښايست اوازې رسي او په شرطونو کې پاتې راځي او سرونه يې غوځيږي. هلته دغه اوازې د مسلم شپږو ځوانانو زامنو ته هم ورسېدلې او هغوی هم بې ديدنه عاشقان کېږي او د شرطونو لپاره راځي.

پاچا ته وايي چې شرطونه دې کوم دي؟ هغه ورته وايي چې ښايسته زلمي ياست مه کوئ دوی يې نه ورسره مني، نو وروسته شرطونه ورته وړاندې کېږي چې په لاندې ډول دي:

١. د اوسپنې کونده به د لرګی په تبر ماتوئ
٢. د شمايلې ژېړه غوا به لوشئ
٣. لوشل شوې شيدې به په زينو کې څلور واره پورته او کښته کوئ
۴. په کلا کې به د شمايلې خونه او ځای پيدا کوئ
۵. په يوه خونه کې چې نيمايي له غنمو او شګو ګډه ده سره جلا کوئ.

۲.   د پاچا له زمري سره په خپل زمري جنګوئ.

خو که چېري مو له پورته شرایطو نه یو هم پوره نه کړ نو سر به مو پرې کېږي.

دا دي وروره یو یو ځوان ورمختـه کېـږي او پـه اول شـرط کـې ناکامېږي او جلاد یې سر غوڅوي، شپږ سره ورونه وژل کېږي.

مسلم خپـل اوم او روستی زوی چې جـلات نومېږي پـه حـال نـه خبروي او وخت تېرېږي جلات لا ماشوم دی په کوڅه کې د یوه کور لـه ماشوم سـره بجلـي کـوي او هغـه ماشـوم بجلـي ورڅخـه ګټـي او جـلات پـه زوره بجلـي واپـس ورڅخـه اخلـي او ماشـوم پـه ژړا کورتـه راځي اومور یې بېرته راضي کوي، خو د جلات هر وخت دغـه کـار دی یوه ورځ د ماشوم مور په تنګه شوه او خپل زوی ته وایي چې که جلات ووهلې نو ورتـه ووایـه چې کـه دومـره نـر یـې نـو ورشـه هغـه د خپلو ورونو غچ دې واخله، سبا بیا جلات بجلي بایلي او له ماشوم څخه یې په زوره اخلي خو ماشوم ورته د مور څخه زده ځواب جلات ته ورکوي او هغه هک پک کېږي چې زما ورونه بیا چېرې وو او چا ووژل.

جـلات کورتـه راځـي او خپلـه مـور مجبـوروي چـې حقیقـت ورتـه ووایي هغـه بلاخـره ورتـه ټـول حقیقت وړانـدې کـوي ، دی لـه کـوره راوځي او ځي د خنکار ښـار تـه، پـر لاره یـو ملنـګ وینـي او هغـه تـه خپله ټوله کیسه کوي او هغه ورته وایي چې تـا لـه مـوراو پـلار څخـه اجازه اخیستې ده هغه ورته وویل چې نه ! ملنګ ورته وویل چې تـه باید اجازه واخلې جـلات بېرتـه کورتـه راغـی او د مـور او پـلار څخـه یې رخصت واخیست . ملنګ ورته یو لیک ورکړ چې د خنکار ملا

زما شاګرد دی هغه ته ورسه او دغه لیک ورکړه، دی ورته ښه کوي او لیک را اخلي په لاره کې ځنګل دی او راځي چې ګوري یوه زمری په یو دام کې نښتې ده او ځان نسي خلاصولای او فریاد کوي جلات ورځي او ورته وايي چې زه تا خلاصوم ولې ته به هم ژمنه کوي چې مابه نه خورې هغه ژمنه ورسره کوي. کله چې جلات دا ازادوي پر پښه یې زور راځي او چغې کوي چې له دې سره سم یې پښه ازاد یږي ولې نور زمریان راځي جلات وارخطا کیږي دا ورته وايي چې مه وارخطاکیږه زه ددوی ټولو مشره یم. وروسته زمریان جلات ته د هر راز همکاری تیار دبوي او خپل یو وېښته ورکوي چې د خطر پرمهال یې ومږه موږ به ځان درته رارسوو. خیر جلات را رهي شي ځي ځي چې یوه کلي ته رانږدې کیږي هلته ګوري چې یوه بزګر پرخپلې ځمکې اوبه ایله کړي دي خو یو کورد یا برخه کې د میږیانو غار دی او هغه ټول بربادی سره مخ دي جلات له بزګر سره خبري کوي او هغه پیسې ورکوي چې دا ځای پر ما خرڅ کړه او دا ځای رانیسي او میږیان هم خوشحالیږي او له ده نه مننه کوي او د مشکل په صورت کې ورته خپل یو وېښته ورکوي چې تاو یې کړي موږ به درته حاضر شو. خیر جلات راځي د خنکار ځای ته او هلته د ملنګ له شاګرد سره اړوي څه وخت چې تېرشو جلات یو داسې زمری جوړوي چې په نس کې یې انسان پټېدلای شي البته له باندې طرفه سمدم د زمري غوندې شکل لري. له ملا څخه هیله کوي چې ما وپاچا ته بوځي او ورته ووایي چې دا داسې زمری دی چې بازي هم کوي او ښه ساعت تېري پرې کیږي، خوپس له څو هفتو مې بیرته له پاچا نه راوړه کورته..

ملا هم زمری کوم چې جلات یې په نس کې پټ دی راوړي پاچا یې خوښوي او ساعت یې پرې تېر دی. داخبره تر شمایلې رسي چې له پلاره سره یې داسې فرعي زمری دی چې بازي هم کوي ، دا و پلار ته نفر ور لېږي چې دا زمری موږ ته هم راواستوه چې ساعت پرې تېر کړو هغه هم زمری د شمایلې کورته رالېږي، چې شمایلې ته یې بیایې زمري بازي ورته وکړه دا د شمایلې مجلسیانې څوک پرې سپرېږي څوک یې تر لکۍ کشوي تر نیمو شپو یې ساتېری کاوه. وروسته ټولې سترې شوې راغلې ډوډۍ یې و خوړه بیدې شوې زمری یې و تړه. چې ټولې بیدې شوې شمایله هم بیده شوه جلات ځان د زمري څخه راوویست راغی د شمایلې پالنګ ته د شمایلې د پالنګ سره چراغان لګېږي جلات خان یې د سر چراغ وپښو ته او د پښو څراغ یې و سرته کېښود خپلې ګوتې یې ددې پر ګوته کړې او ددې ګوته یې په خپله ګوته کړله. ددې دسمال یې ځنې واخیست خپل دسمال یې ورپرېښود نو بېرته زمري کې ننوت.

شمایله چې سهار را ویښه شوله اریانۍ واخیستله چې همدا څه نقل دی دا سړی د کمې خوا راغلی ولې دا ګوتمۍ خو د نارینه دي نو یې ناره وکړه

که کرار دی نن زما زړګی کرار دی

تاسې کېنۍ سهېلو دا په لاس ګوتمه زما ده که د یار ده

خیر سهېلۍ هم اریانۍ واخیستلې خو دغه ورځ یې په چورت تېره کړه ږغ یې ونه کړ بیا یې په هغه زمري بازۍ کولې، بیا ماښام شو بیا بیده شوه جلات خان بیا له زمري څخه راووت شمایلې ته راغی

خو دا واريې مچه ځنې واخيسته بېرته په زمري ننوت دا چې راوينه شوله مخ يې لوند دی دوباره يې ناره وکړه

که کرار دی نن زما شوی کرار دی
تاسي کښېنئ سهيلو چې پرمخ مې د خوني زمری پرهار دی

خو شمايله پوه شوه چې په زمري کې علت دی خو ږغ يې ونه کړ خپلې سهيلې يې رختصې کړې او وينځه يې د خپلې خونې دباندې ودروله چې څوک راپرې نږدي. شمايلې ځان پر خوب واچاوه په زمری يې ناره کړه:

که کرار دی نن زما زړه ناکرار دی
ته را اوزه د زمريه که غوبه يې که چميار يې زما يار دی

جلات چې دا اواز واورېده فکر يې وکړ چې څوک نشته او شمايلې پېغور ورکړ نو ده پرې ناره کړه:

نه غوبه يم نه چميار يم لويه خدايه
ښايسته جلات مې نوم مسلم مې پلار دی

نو جلات له زمري څخه راووت سره غېږ په غېږ شو سره کېناستل جلات ورته ويل ځنګه به شي دا شرطونه زه به پرځای کړم .. شمايلې د شرطونو جوابونه ور وښودل چې اول شرط داسې حل کړه چې دغه زما د پېکې تار واخله او د اوسپنې پر کوندې يې وتړه او په تبر يې وواهه ماتېږي. بل شرط دغه زما د سمال به ورته وښورو ې نو به غوا درته ودرېږي وبه يې لوشې. درېيم دغه زما ګوته به د هغې غوا په شيدو کې ووهې هغه به پوه شي بام ته به يې په تاخت وخېژوې. څلورم زما د ځای لار زما د پلار ترتخت لاندې ده، دی به ترلاس ونيسې چتک به يې ولاړ کړې ته به راشې او هغه دوه نور شرطونه مې نه دي زده، ده ورته وويل هغه زما زده دي چاره به يې

وکړم. سهار شو ملا پاچاته راغی چې زما زمری راکه بسته نور به دې سات پرې تېرکړی وي. پاچا هم زمری ملا ته ورکړ.
ملا زمری کورته راوست او جلات ورڅخه راووت، جلات درېشي وکړه او پاچا ته راغی چې شرطونه. شرطونه یې ورته وړاندې کړل جلات خان لومړي څلور شرطونه د شمایلې په لارښونه حل کړل، وختې چې پنځم شرط یې په ځای کوه نوراغی د شپې په هغه غنمواوشګو خونه کې یې هغه مېږي بربېت یې وموږی یو ګړی، چې وشوه هغه مېږیان چې د بزګره یې خلاص کړي وو ټول راحاضرشول ویل خدمت! جلات خان حکم پرې وکړ چې ترسهاره پورې به دغه شګې او غنم سره داسې جلا کوئ چې یوه دانه سره ګډه نه شي مېږیانو هم دا کار صفا وکړ او دا شرط یې هم وګاټه، شپږم شرط بیا پاچا زمری راوست چې د جلات له زمري سره یې وجنګوي نو جلات د زمرو بربېت لمس کړ او یوغټ زمری یې راویستی د پاچا زمری یې ورمات کړ او دا شرط یې هم وګاټه او شمایله یې په نره توره وګټله.
نو پاچا هم شمایله و جلات ته ورکړه پاچاه فکر وکړ چې دغه ټول کار د ملا د زمري له لاسه خراب شو نو د هغه د وژلو امر یې وکړ کله یې چې ملا د اعدام لپاره بیوه نو ملا پر جلات ناره وکړه:
جلات خانه وروره ولې دې موږ هېر کړو
جلات خانه : لاس تړلي یې تر تاتېر کړو
نو جلات خان خنکار پاچا څخه د اوو ورځو پاچاهي یې وغوښتله هغه ورکړه نو یې ملا خپل وزیر کړ او خنکار یې په دوو سترګو ړوند کړ. کیسه ولاړه پورته زه ولاړم کورته.

# د پښتو لرغونې دورې د شاعرۍ عامې ځانګړنې



ددې دورې اثـــار د خپلـــو ځـــانګړو خصوصـياتو لـه امله دغـه لاندې ارزښـتونه لرلای شي:

۱- د پښـتو کوم اثار چې پـه لـومړۍ ادبـي دورې پـورې اړه لـري د کميت لـه پلوه ډېر نـه دي او د هر شاعر او ليکوال محدودې شعري نمـونې تـر مـوږ رارسـېدلې دي. ددې دورې د ډېـرو شـاعرانو او ليکوالو د کتابونو نومونه موږ ته ښکاره دي، خو زياتره دا کتابونـه او ديوانونـه اوس ورک دي. د پښــتو د لـومړۍ دورې پـه اثـارو کـې يوازې د سليمان مـاکو د تـذکرة الاوليـا د بشـپړ کتـاب ځينـې برخـې موږ ته رسېدلې دي، په عمومي ډول د پښتو د ادبي تاريخ د لومړۍ دورې اثار متفرق اثار دي.

۲-که څه هم د پښتو د لومړۍ دورې اثار د کميت لـه پلوه لږ دي، خو د کيفيت له پلوه ځينې دغـه ډول اثـار ډېـر لـوړ ارزيـابي کېدلای شـي. د غــوري دورې قصــيدې، د شــيخ متــي مناجــات، د اکبــر زميند اوري اشعار، د شيخ تيمن، شـيخ بسـتان بـدلې او هـم د علـي سرور او شيخ محمد صالح الکوزي غزلې د خپلو فکري ارزښـتونو

ترخنګ لوړه هنري مایه هم لري، ددې دورې ځینې نور اشعار که څه هم ساده دي، خو په سادګۍ کې یوه ابتدایي ښکلا هم ورسره مله ده، ددې دورې ځینې اثار تش نظمونه دي، چې ناظم نېغ په نېغه خپل هدف په منظومو او وچو الفاظو کې بیان کړی دی.

۳- ددې دورې اثار سره له دې چې په کمي لحاظ لږ دي، خو له دغو لږو اثارو هم موږ په شکلي او موضوعي لحاظ د انکشاف څرک ایستلای شو.

الف- ددې مهال اثار موږ ته راښیي چې ددې دورې ادبي پدیدې پر یوه حال ولاړې نه دي او نه یو ډول شعري انواع موږ په دې اثارو کې ګورو، بلکې په دې دوره کې پښتو شاعري پر خپلو عنعنه یي ملي اوزانو سربېره په دریمه هجري پېړۍ کې قطعه بیا په پرله پسې پېړیو کې قصیده ورپسې غزل او مثنوي چې د شرقي شاعرۍ عمده شعري ډولونه دي، خپل کړل. د پښتو د ولسي شاعرۍ له ژانرونو څخه چاربیتې او بدلې هم په همدې دوره کې خپله بڼه خپله کړې ده او د پښتو د لرغونو سندرو او شعري انواعو ځای یې نیولی دی.

ج- د شعر ځینې ځانګړي معنوي ډولونه، لکه ویاړنه (فخریه)، ساقي نامه او حکایتي اثار هم په همدې دوره کې په پښتو شعر کې ځان ځرګندوي. د امیر کروړ سوري ویاړنه، د زرغون خان نورزي ساقي نامه او د دوست محمد کاکړ د غرغښت نامې ځینې حکایات ددې دورې د شعر د معنوي اقسامو ډېرې ښې نمونې دي.

د امیر کروړ ویاړنه او د زرغون خان ساقي نامه د خپل جوړښت ادبي قوت او شعري ځانګړنو له امله د پښتو ادبي تاریخ په

وروستيو دورو کې هم بل ساری نه لري، دا ډول اشعار موږ وروسته هم لرو، خو کوم قوت او شور چې د امير کروړ او زرغون خان په ويارنه او ساقي نامه کې شته په وروستيو دې ته ورته اثارو کې نه ليدل کېږي.

د - پښتو ادبي پديدې او پښتو اثار په دې دوره کې مجرد نه دي راپيدا شوي، بلکې د سيمې له ژبو او ادبياتو سره په ارتباط کې يې وده موندلې ده. د دريمې هجري پېړۍ په دوران کې له عربي ژبې څخه پښتو ته ژباړه پيل شوه او د ابن خلاد شعر ابومحمد هاشم په پښتو نظم ترجمه کړ او بيا را وروسته له فارسي ادب سره د پښتو ادبياتو نږدې اړيکې پاتې شوې دي. پښتو ادبياتو په دې دوره کې ځينې معنوي ارزښتونه له فارسي ادب څخه خپل کړي دي، دا خبره طبيعي هم ده، ځکه فارسي دغه مهال په منطقه کې مسلطه فرهنګي ژبه وه، ډېر شاعران او فرهنګي اثار يې درلودل، نو د دغسې يوې ژبې اثرات د منطقې پر نورو ژبو حتمي دي. له فارسي اثارو نه پښتو ته ترجمه هم دغه مهال پيل شوې ده، د لسمې هجري پېړۍ په لومړيو کلونو کې يوې پښتنې مېرمنې د سعدي بوستان په پښتو نظم واړاوه.

هـ- د دې دورې متفرق اثار د سيمې په لحاظ هم په يوه ځای کې نه دي ايجاد شوي، بلکې له غوره نيولې ان د هندوستان تر سيمو پورې پرتو ځمکو کې ايجاد شوي دي او دا خبره پر دې دلالت کوي چې پښتانه دا وخت د غور او سليمان پر غرو سربېره د افغانستان او (روه) او هندوستان په لتو کې خپاره وو.

۴- په دې دوره کې موږ ځينې داسې متفرق اثار هم لرو چې د دربارونو له خواو ورته د توجه او پالنې څرک هم ځنې ايستلای شو، لکه د غور د شاهانو په دربارونو کې د شاعرانو موجوديت او د

دوی اثار او دغه راز د هندوستان د افغان پاچا سلطان بهلول لودي دربار هم لري و ډېر دغه ډول خصوصیات درلودل.

ددې دورې کوم اثار چې زموږ په واک کې دي زیاتره د پښتو دوو لرغونو تذکرو؛ پټې خزانې او تذکرة الاولیا خوندي کړي دي، د ځینو لکه تایمني او اکبر زمینداوري اثار په متفرق ډول ترلاسه شوي دي، دغه اثار د منبع پېژندنې له پلوه کومه خلا نه لري او له کره او باوري اسنادو څخه ګڼل کېږي.

۸- دغه لاسته راغلي اثار د ژبې د لغاتو، ترکیبونو او نورو ګرامري ژبنیو خصوصیاتو او له نورو ژبو سره د امېزش یو سیستماتیک تحول په لاس راکوي، ددې دورې لومړني اثار تر زیاته حده د پښتو خپل زاړه لغات او ترکیبونه لري، خو په وروستیو پېړیو کې له نورو ژبو په خاص ډول فارسي او عربي سره نږدېوالی ښیي.

د پښتو د ادبي تاریخ لومړۍ دوره د پورتنیو خصوصیاتو په لرلو سره پایته رسېږي او پښتو ادبیات له نورو تمایلاتو او نویو فکري ارزښتونو او تازه ادبي جریانونو سره یوې پرمختللې بلې دورې ته داخلېږي.

یادونه: په دې لیکنه کې د پښتو ادبیاتو لرغونې او منځنۍ دوره، د ښاغلي سرمحقق زلمي هېوادمل له اثر څخه زیاته ګټه اخیستل شوې ده.

# پښتو ادب کې متلونه



**متلونه دوه ډولونه لري:**

**۱- منثور متلونه**

**۲- منظوم متلونه**

چې بیا هره برخه یې پر څو برخو وېشل کېږي.

## منثور متلونه:

متلونه هغه لنډې، خو پخې تللې او کوټلې جملې دي، چې په ډېره خوږه او اغېزمنه بڼه په کې لوی لوی مفاهیم ځای شوې وي او ډېره ژوره مانا لري.

متلونه د یوې ټولنې او ولس د خلکو د زرګونو کلونو تجربو نتیجه او انځور دی، چې د دوی د عقل او منطق ښکارندویي کوي. د متل د کلمې د لغوي تحلیل په هکله ځینې پوهان په دې عقیده دي، چې متل د عربي ژبې د کلمې د مثال او مثل مفغن شکل دی. منثور متلونه هم د منظومو متلونو په څېر ځانګړی اهنګ د ادا طرز، خوږه او پسته ژبه او د الفاظو د جوړښت او ترکیب له مخې ادبي او هنري ښکلا لري، د ژوند تجربې په کې له یو نسل څخه بل ته په اغېزمنه توګه لېږدي او انتقالېږي. دا له پند او حکمت څخه ډکې خبرې چې د وینا د ټینګښت لپاره ویل کېږي یو بشپړ مبتدا

او خبر لري، منثور متلونه د شمېر له مخې د منظومو متلونو په پرتله څو ځله ډېر دي او بېلابېلې بڼې لري:

**کیسه یي متلونه:** چې یوې کیسې یا یوې پېښې ته اشاره په کې شوې وي.

**عادي متلونه:** چې د عام ولس فلسفي افکار او ژور مطالب په کې بیان شوې وي، لکه:

د ښې غوښې ښه ښوروا وي
د ژمي په توده او د دښمن په خوږه مه غولېږه
وګټه فیل وخوره

**د منثورو متلونو یو څو نمونې:**

اوښ چې لاړه، مهار یې زه څه کوم
اوښ که غټ دی د شیدو تمه ترې مه کوه
پنځه ګوتې سره برابرې نه دي
تر بې عقل دوست هوښیار دښمن ښه دی
له مزده یې شکرانه ډېره شوه
ترخه خوره خو ترخه مه وایه
د مړو به لاڅه ښادي وي
د مجبور یو نوم صبر دی
د مړو پرده خدای کوي
بد زوی نه زوی
بد بوتی بلا هم نه وهي

## منظوم متلونه:

منظوم متلونه هغه متلونه دي، چې د شعر او نظم غونډې وزن او قافیه ولري او دا متلونه د نظم په شان ځانګړی اهنګ، د ادا طرز، پخه، خوږه او پسته ژبه او د الفاظو جوړښت او ترکیب له مخې ادبي او هنري ښکلا ولري.

لومړی دلته یو څو منظوم متلونه راوړو:

د لرې دې لیدی نه شم د نږدې درته کتی نه شم.

د کور غم د ګور غم

د ښکار غوښې د ځان غوښې

متل د پښتو فولکلوري ادب د یوې ارزښتمنې برخې په توګه:

چې اور یې بل شي خدای یې مل شي

چې بد کوي کارونه، هغه بدویني خوبونه

چې بې قامه شي، بې مقامه شي

چې پردي کور ته یې تمه شي، یو من غوښه یې کمه شي

چې په ځان کې یې ویني، په جهان کې یې ویني

چې پیر وي فقیر وي

چې چم لري چمتو دی، چې چم نه لري هندو دی

چې سم د چا ویل شي، په هر چا یې منل شي

چې د دوو ښځو څښتن وي، سخت به یې ځنکدن وي

چې ډب نه وي ادب نه وي

چې دې زده کړه په طفلۍ، هېر به یې نه کړې تر پیرۍ

چې زور تېر شي، عقل هېر شي

چې سر و مال ترې جار کړې، نو هر سړی به یار کړې

چې سبا شي غم پیدا شي، چې بېګاه شي غم پنا شي
چې ګل کړې ګل به رېبې
چې لاس په خوشیو نه شي، خوله به په غوړو نه شي
چې مېلمه شي، اسوده شي
چې مېږونه وي، هلته کورونه وي
چې مشر یې قمبر وي، اختر یې مازیګر وي
چې مړ شو، هغه پړ شو
چې مړی لرې مېلمه څه دی، چې ایمان لرې مرګی څه دی
چې لوی غاپي کوچنی تراپي
چې مور لرې ادکه، په صفت به یې واده که
چې دا ملا کیسې لرې، ما به غونډې ورپسې لرې
چې توري چلېږي، وینې بهېږي
ابا په کور نه شته، له ادې ډار نه شته
ارمان به کړې هلکه، بیا به نه مومې ادکه
اسمان چې ګرزېږي، هومره نه ورېږي
اسمان چې ولاړ وي، لات به مردار وي
اس یې په خره بار کړ، خر یې پرې مردار کړ
اسان یې په سوو ګټي، مېږونه یې په خولو ګټي
اصیل خطا نه لري، کم اصل وفا نه لري
امیر چې ظلم کار وي، اور بل په ټول دیار وي
اوبه په اوبو شیدې په شیدو
اوښ دې هوښیار کړ، نو دې په لار کړ
اوګره چې سړېږي، بلا پرې لګېږي

اول سلام پسې کلام
اول ځان پسې جهان
اول زده کړه، بيا کوزده کړه
اول نام پسې کلام
بابا ويل، ادې منل
بابا ګيلې کوي، ادې پېرې کوي
بخشش په لک، حساب په کک
بد به دې په زړه کړم، سلام به دې په خوله کړم
بد عادت چې زورور شي، عقل مرور شي
بده ماينه پرېښودل کېږي، بد کښت نه پرېښودل کېږي
بر يې شته، برکت يې نه شته
بنده اريان، خدای مهربان
بې ډوډۍ اوسې، بې کوره مه اوسې
بې زحمته راحت نه شته
بې عقل جمال خوښوي، عاقل کمال خوښوي
پاک اوسه، بې باک اوسه
بر دی خر دی، په شاه زورور دی
پک نه په سر تار لري، نه په چا کار لري
پلار يې ګټې، زوی يې ښځې
په اوړي يې ګټه، په ژمي يې ښځه
په خوله صاف، په زړه خلاف
په رنګ ښايسته، په عمل خوار خسته
په زړه هوښيار، په خوله بې کار

په عمر کشر په عقل مشر
په لاس کار، په زړه یار
په مسجد کې لمونځ او کتاب، په چوک کې چلم او رباب
ځنګ چې دې کور دی، هسې یې زړه تور دی
څوک چې دې طلب کار وي، هغه به دې یار وي
څوک مه وهه په ګوته، تا به نه وهي په لوټه
خپل عمل د لارې مل
خوار خدای کړې، نو دوس چا کړې
دروغجن، هېرجن
د پلار ګټه د امبار ګټه، د زوی ګټه د زړه غوټه
د سر نه چې تېر شي، قلندر شي
د کور ګټه، د لاهور ګټه
دوه سره ورونه، هغه سره تربوره
دولت دې د ځان دی، عزت دې په جهان دی
دوست به دې وژړوي، دښمن به دې وخندوي
ډوډۍ که د بل وه، نس خو دې خپل و
زامن خواره دي، غشي یې کاږه دي
سخت ساعت، یو ساعت
عاشق سر نه لري، غم لښکر نه لري
عقل چې یې کم وي، پر کور به یې تل غم وي
عقل عقلمندي غواړي، هنر هنرمندي غواړي
کار اسان دی، پیل یې ګران دی
غل هم وایي خدایه، مل هم وایي خدایه

کار د بابا ، خوراک د لالا
کام کام ته ځي او به خپل مقام ته ځي
که یار نادان وي، نو کار ګران وي
لکه ځان هسې یې جهان
له ما پیدا شو، راته بلا شو
مور و پلار چې زاړه شي، که شکر و لاخواږه شي
مه کوه په چا ، چې وبه شي پر تا
ناسته ښځه کار کوي، ولاړه ښځه څار کوي
نن پر ما ، سبا پر تا
ورانول اسان دي، خو جوړول ډېر ګران دي
ورور چې سپور شي، د خپل کور شي
هر چېرې چې خورې، هلته به مرې
هر څوک چې وزګار شي، یا غل شي یا بیمار شي
یا د خدای قدرت دی، یا د مېړو غیرت دی.

# د پښتو لرغوني دورې ادبي شخصیتونه



څرنګه چې د محترم استاد اسمعیل یون له خوا ماته د پښتو د لرغوني دورې د ادبي شخصیتونو په باره کې مقاله راکړل شوې وه، نو ما هم کوښښ وکړ چې مقاله د پښتو د لرغوني دورې د ادبي شخصیتونو په اړه ولیکم، څنګه چې د پښتو ژبې لومړی لاس ته راغلی شعر د (۱۳۹هـ . ق) حدودو کې ویل شوی دی، نو له همدې ځایه د پښتو لرغوني ادبي دوره شروع کېږي او په زرم هـ.ق کال پای ته رسېږي، نو ما هم د (۱۳۹هـ.ق) کال په شمول او له دې څخه راپدېخوا تر (۱۰۰۰) کاله پورې چې کوم شاعران او د نثر لیکونکي تېر شوي دي د دوی نومونه د شعر یو بیت او یو څو کرښې نثر د خپل وس مطابق د خپلې مقالې د ښکلا لپاره دلته راوړم:

۱- د پښتو د لرغوني ادبي دورې لومړی ادبي شخصیت چې تر موږ یې لومړی شعر رارسېدلی، امیرو کروړ دی چې د امیر پولاد سوري زوی دی، پر (۱۳۹هـ.ق) کال په غور کې امیر شو او پر ۱۵۴هـ.ق کال د فوشنج په جنګ کې مړ شو او جهان پهلوان هم ورته ویل کېده. موږ ته راپاتې شعر چې محتوایي فورم یې ویاړنه

ده، پټې خزانې د تاریخ سوري په حواله خوندي کړی دی، چې یو بند یې دلته د بېلګې په توګه راوړم:

زه یم زمری په دې نړۍ له ما اتل نسته
په هند و سند و پر تخار او پر کابل نسته
له ما اتل نسته بل په زابل نسته

۲- ابو محمد هاشم ابن زید سرواني البستي د پښتو د لرغونې دورې ادبي شخصیت دی. د پټې خزانې له لیکنې ښکاري چې سرواني په پښتو ژبه کې یو کتاب لیکلی دی، چې د (سالو وږمه) نومېږي، د سالو وږمې د کتاب یوازې نوم موږ ته پاتې دی او کتاب مو لیدلی نه دی او هم لومړی ژباړن دی چې له عربي څخه یې پښتو ته یو شعر راژباړلی. دلته یې د همدې ژباړل شوي شعر یو بیت راوړم:

ژبــه هــم ښــه وینا کــاندي چې یې وینه
د خــاوند په لاس کــه زر او درهمــونــه

۳- شیخ رضي لودي او شیخ نصر لودي دوی دواړه د پښتو د لرغونې دورې ادبي شخصیتونه دي، چې د یو او بل په مقابل کې یې شعرونه ویلي دي، پټې خزانې د خپلو قوي اسنادو په مټ د دغو دوو تنو مشرانو اشعار موږ ته سپارلي، چې دلته یې د نمونې په توګه راوړم:

د شیخ رضي لودي شعر یو بیت:

د الحاد په لور دې ترپلل
ګــروه دې زمــوږ وکوراوه

د نصر لودي شعر يو بيت:

د الحاد په تور تورن سوم
زه لرغون خو ملحد نه يم

۴- بېټ نيکه هم د پښتو ادب ادبي څېره ده چي په تاريخ کې يې نوم بېټني او بټني هم راغلی دی. سليمان ماکو په خپله تذکره کې د بېټ نيکه د مناجاتو يو ټوټه هم راوړې ده چي زه يې دلته يوازې يو بيت راوړم، چې د بېټ نيکه پر شاعرۍ دلالت کوي.

لويه خدايه لويه خدايه
ستا په مينه په هرځايه

۵- اسمعيل هم د پښتو د لرغوني دورې ادبي شخصيت دی. د اسمعيل په اړه د پښتو مورخينو او اسماع الرجال خاوندان ليکي چي اسمعيل د بېټ نيکه زوی او د خپل تره سړبن په کور کې لوی شوی دی، نو ځکه په سړبني مشهور دی او شعر يې موږ ته د سليمان ماکو د تذکرې په واسطه رارسېدلی دی، زه يې دلته يو بيت د بېلګې په توګه راوړم:

تېښته وکړه له ابليسه
چې ابليس لعين ښکاره شي

پټه خزانه هم د اسمعيل په باره کې زياتوي چي يو وخت اسمعيل، خرښبون او بېټ نيکه د کسي غره پر سر مخامخ ناست وو چي خرښبون له پلار او تره څخه رخصت شو، نو اسمعيل نيکه داسې ناره وکړه:

که يون دی يون دی مخ کې بېلتون دی
له کسي غره څخه ځي خرښبون دی

۶- خربښبون هم د پښتو د لرغوني ادب ادبي څېره ده، د اسمعیل سړبن زوی او د بېټ نیکه وراره و، د پټې خزانې لیکوال هغه داستان رانقلوي چې مخکې د اسمعیل په باره کې ذکر شو، نو خربښبون د اسمعیل د ناري په مقابل کې یوه څلوریزه وویله، خو زه یې دلته یو بیت راوړم:

بېلتانه ناره مې وسوه په کور باندې
نه پوهېږم چې به څه وي پېښ په وړاندې

۷- د پښتو د لرغوني ادب ادبي ګل شیخ اسعد سوري درپېژنم چې د محمد زوی او د امیر محمد سوري د دربار شاعر و او د دې ترڅنګ د پښتو ژبې قصیده ویونکی شاعر هم و، زه یې دلته د قصیدې یو بیت رانقلوم:

د فلک له چارو څه وکړم کوکار
زمولوي هر ګل چې خاندي به بهار

۸- شیخ تیمن کاکړ د پښتو د لرغونې دورې ادبي شخصیت د محمد هوتک په حواله راځي چې وایي زما پلار داودخان په «بستان الاولیا» کې دغه لاندې شعر لوستلی او ما له خپل پلار څخه اورېدلی دی، زه یې دلته یو بیت راوړم:

ګهیځ رڼا د لمر خپره سوه
زما پر کور د ویر ناره سوه

۹- ښکارندوی غوري هم د پښتو د لرغوني ادب سینګارو ونکی بلبل کېږي او د پښتو پخوانی قصیده ویونکی شاعر هم و. ښکارندوی به تل د غور له سلاطینو «شهاب الدین محمد سام شنباني غیاث الدین» سره په جګړو او جنګي سفرونو کې ملګری

و. زه یې دلته د قصیدې یو بیت راوړم چې د ښکارندوی د شاعرۍ ښکارندویي کوي:

د پسرلي ښکلوونکي بیا کړه سینګارونه
بیا یې ولونل په غرونو کې لالونه

۱۰- خلیل خان نیازی د پښتو د لرغوني ادب د شاعرانو په کتار کې راځي چې د سلطان بهلول لودي د دربار شاعر هم دی، رباعي لیکونکی هم دی. پټې خزانې دده یوه رباعي راوړېده چې د سلطان بهلول لودي په دربار کې یې ویلې ده، زه یې دلته کټ مټ راوړم:

خــړې وریــځې ژاړي له پاسه
کــویله ږغ کــا بېلتون له لاسه
یه هغه لوني ګوهر په خول ستا
دا مــرحبا که ستا زمونږ مواسه

۱۱- زرغون خان نورزی د پښتو د لرغوني دورې ادبي شخصیت دی. زرغون خان د نورزیو په قبیله کې یو لوی ادیب سړی تېر شوی دی، چې یو دېوان هم لري. دوست محمد کاکړ یې دېوان کتلی دی چې (۳۰۰) پاڼې یې درلودلې او په خپل کتاب «غرغښت نامه» کې یې د هغه له دېوانه «مثنوي» رانقل کړې ده چې د پټې خزانې مولف هم د هغه له کتاب څخه راخیستې ده. زه یې دلته یو بیت راوړم چې ساقي نامه سرلیک لري:

ساقي پاڅه پیاله راکړه
مرور یار مې پخلا کړه

۱۲- زرغونه کاکړ هم د پښتو ادب د لرغوني دورې شخصیتونو په لیکه کې راځي چې د پښتو د شعر په تاریخ کې لومړنۍ ښځه ده

چې د شاعرانو په صف کې ودرېږي. د پټې خزانې په روایت زرغونې غزلیات او د اشعارو نور اقسام هم درلودل، خو متاسفانه کومه نمونه یې نه لرو، خو یو حکایت د زرغونې له بوستانه پاتې دی، زه یې دلته یو بیت راوړم:

اورېدلې مې قیصه ده
چې د شاتو نه خوږه ده

۱۳- رابعه د پښتو ژبې له ښځینه شاعرانو څخه ده چې د پټې خزانې مولف رابعه په لنډ ډول داسې معرفي کوي؛ حال ددې شاعرې ماته نه دی معلوم شوی خو لږ څه چې ښکاره ده هغه داسې ده چې دا شاعره د کندهار وه په دوران د محمد بابر بادشاهي کې یې ژوند کاوه. رابعه دېوان هم لري، خو متاسفانه ورک دی خو د محمد طاهر جمریاڼي له خولې دغه رباعي رانقلوم:

ادم یې مځکې وته راستون کا
په اور د غم یې سوی لړمون کا
دوزخ یې روغ کا پرمخ د مځکې
نوم یې د هغه دلته بېلتون کا

۱۴- مېرمن نېکبخته هم د پښتو د لرغونې دورې له شاعرو مېرمنو څخه ده. پټه خزانه د (اولیاء افغان) په حواله لیکي چې نېکبختې یو کتاب د (ارشاد الفقراء) په نامه وکېښ، زه یې دلته یو بیت راوړم:

د خدای حق ته غاړه کښېږده
نوري نوري وینا پرېږده

۱۵- دوست محمد کاکړ د پښتو د لرغونې دورې ادبي شخصيت دی او د بابرخان کاکړ زوی دی، له خپل پلار څخه ورته ادب په ميراث کې پاتې شوی او د خپل پلار ورک شوی کتاب يې دوباره نظم کړ او د (غرغښت نامې) په نوم يې ياد کړ. غرغښت نامه کتاب تر بوستان راوروسته دېر پخوانی کتاب دی او د هغه لاندې حکايت پټې خزانې رانقل کړی دی:

لــه نــيکانو روايت دی
هسې توګه حکايت دی

۱۶- شيخ محمد صالح الکوزی د پښتو په ادبي دوره کې اهم دور تېر کړی دی. شيخ صالح موږ د پټې خزانې په مرسته پېژنو او شيخ صالح د اشعارو نمونه موږ ته پټې خزانې رارسولې ده، زه يې دلته يو بيت راوړم:

د ليلی د مينې فيض هر سبا وړم
بېهوده منت به ولې د نور چا وړم

۱۸- شيخ متي د پښتو د لرغوني ادب ادبي څېره ده چې د ((خدای مينه)) په نامه يو کتاب يې هم درلود، خو اوس ورک دی. شيخ متي په پښتو کې لوړ اخلاق او عرفاني شهرت لري او د بابا لقب هم لري، په پښتو کې د شيخ متي کورنۍ په ((متي زي)) شهرت لري، د پټې خزانې مولف د شيخ متي بابا يوه خوږه منظومه له خپل پلاره اورېدلې او موږ ته يې رانقل کړې ده، زه يې يو بيت دلته راوړم:

پـر لـويـو غرو هم په دښتو کې
په لوی سهار په نيمو شپو کې

۱۹- بابا هوتک د پښتو د لرغونې دورې له ادبي شخصيتونو څخه دی چې هم د عرفان او هم د مشرتوب صفات يې درلودل. د پښتو شعر په ادبي تاريخ کې بابا هوتک لومړی شاعر دی چې د مغولو پر خلاف يې شعر ويلی دی.

په سور غر بل راته نن اور دی
وګړيه جوړ راته پېغور دی

۲۰- شيخ ملکيار هوتک هم د پښتو د لرغونې دورې يو ادبي شخصيت دی چې د بابا هوتک مشر زوی دی، ادب، توره او مشرتوب يې له پلار څخه په ميراث کې رسېدلي دي. پټه خزانه د ملکيار هوتک يوه عشقي سندره رانقلوي چې په پښتو اشعارو کې د وزن او مضمون له پلوه ډېر قيمت لري، زه يې د سندرې سرو کی دلته راوړم:

ترنک بهېږي ترنک بهېږي غاړې تر غاړې
زما زړګی خو خپل لالی غواړي

۲۱- د پښتو د لرغونې دورې يو بل ادبي ګل درپېژنم چې هغه اکبر زمينداوري دی چې ډېر لږ اشعار يې د زمانې له انقلابه ساتلي پاتې دي، يوازې له څو زړو پاڼو څخه موږ يقين کولی شو چې د ديوان خاوند و او په شعرو کې يې د لومړي ځل لپاره غزل او مثنوي موږ ته راپاتې ده، زه يې دلته د غزل يو بيت راوړم:

د خپل ځان له حيرانۍ څه ويل کړم
د عشق وير به تل په خپله پټول کړم

۲۲- سلطان بهلول لودي د پښتو ژبې د لرغونې دورې د شاعرانو په ليکه کې راځي چې متاسفانه نور اثار يې ورک دي او يوازې يوه

رباعي يې د يوې يتيمې مرغلرې په ډول په پټه خزانه کې مومو چې د خليل خان نيازي د رباعي په مقابل کې يې ويلې ده، هغه داده:

ملک به زرغون کړم په ورکړه راسه
ګــوره وريــځې د داد لــه پــاســه
خول مې د عــدل پــه درو روڼ دی
جــهان بــه زېب مومي زما له لاسه

۲۳- سليمان ماکو د پښتو د لرغونې دورې يو ادبي ګل دی او د پښتو ژبې له پخوانيو ليکوالو او نثر ليکونکو څخه دی، يو کتاب يې د تذکرة الاوليا په نامه ليکلی دی، خو دا کتاب متاسفانه ورک دی، خو لومړي اوه مخه يې په کندهار کې د حبيبي صيب لاس ته ورغلي دي چې ددې نثر لوستل تاسو ته پرېږدم او نمونه يې دلته نه راوړم.

۲۴- شيخ عيسی مشواڼی د پښتو لرغوني ادب ادبي څېره ده چې د ژوندانه وخت يې پس له (۹۰۰هـ.ق) څخه ټاکل شوی دی. د شيخ عيسی احوال د پټې خزانې مولف له مخزن الافغاني څخه نقل کړي دي او وايي چې دی لوی ولي و، په پښتو، فارسي او هندي ژبو يې شعرونه هم ويلي دي. پټې خزانې د مخزن الافغاني څخه يو شعر رانقل کړی چې په لاندې ډول دی:

په خپله کار کړې په خپل انکار کړې
کله بادار يــم کله مــې خــوار کــړې

۲۵- احمد لودي د سعيد زوی او د لوديانو له ليکوالو او اديبانو څخه دی او هم د پښتو د لرغونې دورې ادبي شخصيت دی چې د اخبارلودي ليکوال هم دی. د پټې خزانې له ذکر څخه دومره نتيجه

اخیستلای شو چې (۲۰۰) هـ څخه وروسته د پښتو نثر د لیکوالو سلسله شروع کېږي او د دغه قرن تر اخره پورې جاري وه، چې کتاب يې تراوسه نه دی موجود، خو د کامران سدوزي تر یوولسمې پېړۍ پورې کتاب موجود و.

۲۶- شیخ کته د شیخ متي له کورنۍ څخه دی چې د پښتو د لرغوني دورې یو ادبي شخصیت دی، یو کتاب یې د (لرغوني پښتانه) په نامه لیکلی دی، اوس کتاب نه شته خو یوازې یې مونږ ته نوم رارسېدلی دی. نعمت الله هروي د ده د اولاد په باره کې معلومات راکوي او لیکي چې اته زامن یې درلودل.

۲۷- شیخ ملي د پښتو د لرغوني دورې له ادبي شخصیتونو څخه دی چې د (دفتر) په نامه یې د نثر یو کتاب هم لیکلی دی، خو متاسفانه زمونږ په لاس کې نه شته، خو خوشال ختک هم ددې کتاب شهرت ته په یوځای کې اشاره کوي.

په سوات کې دي دوه څیزه که جلي دي که خفي
((مخزن)) د درویزه دي یا ((دفتر)) د شیخ ملي

۲۸- شیخ علي سرور لودي هم د لرغوني دورې یو ادبي شخصیت دی. استاد حبیبي وایي دی د هند د ملتان په (ګمرو) نومي ځای کې اوسېده، نعمت الله هروي یې په مخزن افغان کې یاد لیکلي دي.

محبت پیاله مې نوش کړه په مجاز کې
د حق نور وینم په سترګو د ایاز کې

۲۹- شیخ بستان بړېڅ: پلار یې محمد اکرم نومېده له بړېڅانو څخه و، په ځوانۍ کې هندوستان ته ولاړ او دغه هېواد سامانه

نومي ځای کې اوسېده. د بستان الاولیا په نامه یې یو کتاب هم لیکلی دی.

۳۰- کجوخان رانېزی: راروټي د پښتو ډکشنرۍ په مقدمه کې لیکلي، چې ما سره د خان کجو رانیزي یو پښتو تاریخ شته چې په هغه کې یې د پښتو تاریخي حوادث لیکلي دي. د خان کجو کتاب موږ نه دی لیدلای خو دومره ویلی شو چې د شیخ ملي په څېر یو قانوني کتاب یې لیکلی دی خو اوس متاسفانه ورک دی، کېدی شي د لندن په موزیمونو کې پیدا شي، ځکه چې د راروټي راټول شوي کتابونه تراوسه نه دي ضایع شوي.

۳۱- بابړخان د پښتو یو شاعر هم دی چې د تذکره غرغښت په نوم یې یو کتاب په شعر کې لیکلی دی او د بابړخان له وفات سره سم ضایع شو.

۳۲- شیخ قاسم هم د پښتو ژبې ادبي شخصیت دی چې مور یې بي بي نېکبخته نومېده، شیخ قاسم د خپل ژوند پر یو وخت په شیخ قاسم سلیمان مشهور شو او د تذکرة الاولیا په نامه یې یو کتاب ولیکه چې اوس ورک دی.

۳۳- الله یار چې د ژوندانه دوره یې تر (۱۰۰۰) څخه دمخه ده، د تحفة صالح په نامه یې یو کتاب ولیکه چې په دې کتاب کې یې د خپل استاد شیخ صالح د ژوند احوال او اشعار راټول کړي دي، تراوسه دا کتاب تر موږه نه دی رارسېدلی، خو د پټې خزانې ماخذ دی.

## اخځونه

۱- د پښتو ادبياتو تاريخ، لومړى او دويم ټوک، پوهاند عبدالحى حبيبي، بېلابېل مخونه.
۲- د پښتو ادبياتو تاريخ، لرغوني او منځنۍ دوره، سرمحقق زلمى هېوادمل، بېلابېل مخونه.
۳- عرفان او تصوف، استاد اجمل ښكلى، بېلابېل مخونه.

# د پښتو لرغونو ادبیاتو محتوایي فورمونه

## پښتو لرغوني ادبیات د محتوا له مخې:



۱- ویاړنه: د پښتو لرغوني ادبیات لکه ځنګه چې د فورم یا شکل له مخې ګڼ شمېر اقسام لري، د محتوا له مخې هم مختلف ډولونه لري او ګڼ شمېر موضوعات او مفاهیم په کې ځای شوي دي.

د پښتو په خورا زړو او پخوانیو ادبي اثارو کې چې تراوسه کوم اثر زموږ لاسته راغلی دی، هغه د امیر کروړ سوري یو فخریه شعر دی چې پټې خزانې د تاریخ سوري په حواله خوندي کړی دی، هغه وخت د عباسي دعوت په جنګونو کې چې امیر کروړ ډېرې سوبې وکړلې، نو یې دا بیتونه وویل چې ویاړنه یې بولي، هغه شعر شیخ کته علیه الرحمه له تاریخ سوري نه رانقل کړی دی.

دا شعر د شاعر لوړ حماسي مقام او دده د توري غلبه او بری ښه تصویروي. شاعر د خپل پاخه شعر او غښتلې قریحې په مرسته خپله ویاړنه په داسې ډول ویلې ده چې یو توانا او مقتدر شاعر ته ښایي له دغې ویاړنې څخه د امیر کروړ ملي مینه او د خپل ټبر د پالنې احساسات ښه څرګند ېږي او هغه ویاړنه یې په دې ډول ده:

زه یم زمری پر دې نړۍ له ما اتل نسته
په هند و سند و پر تخار او په کابل نسته
بل په زابل نسته
له ما اتل نسته

**۲ - ساندې** (ویرنه): د پښتو په لرغونو ادبیاتو کې د ویرنې لاسته راغلی شعر د شیخ اسعد سوري دی. کله چې سلطان محمود غزنوي پر غور حمله وکړه او له امیر محمد سوري سره یې جگړه وکړه او په اهنگرانو یې محصور کړ، پر دې وخت اسعد هم د اهنگرانو په کوټ کې و، هغه وخت چې سلطان محمود امیرمحمد سوري ونیو او بندي یې غزني ته یووړ، نو امیرمحمد سوري چې خورا زړور، مهربانه او عادل امیر و له غیرته په بند کې ومړ او شیخ اسعد چې دوست یې و، د امیر په مرگ یې دا ساندې وویلې:

د فلک له چارو څه وکړم کوکار
زمولوي هر گل چې خاندي په بهار
هر غټول چې په بیدیا غوړیده وکا
رېژوي یې پاڼې کاندي تار په تار
ډېر مخونه د فلک څپېړه شنه کا
ډېر سرونه کا تر خاورې لاندې زار

دا د ویرنې قصیده په سلاست او بلاغت کې د پښتو له لومړۍ درجې اشعارو څخه ده. په مرثیه قصیدو کې د غزنویانو له عصره دا رسم و چې شاعر به کوښښ کاوه د خپل مړ ممدوح صفات او ښېگڼې په داسې ډول وښیي چې د هغه مقام د خلکو په نظر کې ډېر لوړ ثابت شي او د ده مرگ د ویر اسباب او علل هم وښیي.

۳- ستاينه: د پښتو په لرغونو ادبياتو کې د ستاينې په برخه کې د ښکارندوی غوري قصيده د يادونې ده. ښکارندوی غوري دا قصيده د محمدسام په ستاينه کې ويلې ده او د هغه سلطان د هند يو سفر تصويروي چې څنګه د سلطان لښکر هند ته ځي او څنګه پر اټک تېرېږي. د ښکارندوی دا قصيده لومړی يو غرا، ډېر لوړ او خوندور تشبيب لري، د بهار مناظر د غرو او رغو زړه راکښونکي او ښکلي تصاوير په دغه تشبيب کې ترسيموي او وروسته بيا د سلطان معزالدين (شهاب الدين غوري) ستاينې ته ګرېز کوي او دا قصيده د پښتو ادب يو شهکار ګڼل کېږي:

د پسرلي ښکلونکي بيا کړل سينګارونه
بيا يې ولونل په غرونو کې لالونه
مځکه شنه لاښونه شنه لمنې شنې سوې
طيلسان زمردي واغوسته غرونه
د نيسان مشاطې لاس د مچېدو دی
مرغلرو باندې وښکلل بڼونه.

بله د ستاينې سندره چې لاسته راغلې او موجوده ده هغه د تايمني سندره ده چې د سلطان غياث الدين غوري په ستاينه کې يې ويلې ده چې ډېره روانه او ساده ده او لږ څه حماسي رنګ هم لري:

نن زه ږغېږم په صفت د سلطان
چې دی بادار غازي ملک د جهان
د فيروز کوه او غور رڼا له ده ده
هم د تېرو تورو برېښنا له ده ده

چـــې تـــوره وکـــاږي چرتـــون کـــې خـــالي
غلـــيم يـــې کلـــه کـــړي پـــه تـــوره ســـيالي
غيـــاث الـــدين د غـــور زمـــری عاليشـــان
د اســـلام ديـــن دده پـــه تـــوره روښـــان.

**۴- تصـوف او عرفـان**: د پښـتو ژبـې پـه لرغونـو ادبيـاتو کـې د تصوف او عرفان په برخه کې چې کـوم شـعر موجـود دی هغـه د شـيخ متـي بابـا تصـوفي اوعرفـاني شـعر دی. شـيخ متـي بابـا خـورا لـوی صوفي او عرفاني شاعر دی، ده په غونډان کې يـو کتـاب کښـلی و چې نـوم يـې و (د خـدای مينـه) او پـه دې کتـاب کـې اکثـره عرفـاني اشعار او مناجاتونه وو او په داسې ډول ويـل شـوي وو چې پر خلکو به يې ډېر اثر کاوه، خو د شيخ متـي بابـا اشـعار متاسفانه زمـوږ پـه لاس کې نه شته، خو د پټې خزانې مولف يې دغه يوه عارفانه، خوږه او ښکلې منظومه رانقل کړې ده:

پـر لـويـو غرو هم په دښتو کې
په لوی سهار په نيمو شپو کې
پـه غـاړه ږغ او په شپېلکو کې
يـا د ويـرژلـو پـه شپېلو کې

د شيخ متي بابـا دا شـعر پـه پښـتو اشـعارو کې خـورا ډېـر اهميـت لري او يوه داسې نمونه ده چې د عرفاني او تصوفي شعر پـه ديباچـه او پيـل کـې دربېږي او دا شـعر لـه هغـو شـعرونو څخـه دی چې پښـتو شعر ته يې يو ښکلی فلسفي رنګ ورکړی دی.

**۵- عشق او محبت** (Lyric): په پښتو لرغونو ادبیاتو کې چې کوم شعر عشقي یا لیریک رنګ لري او موجود دی هغه د تایمني عشقي سندره ده، چې د وزن، الفاظو او کلماتو له پلوه خالص او سوچه پښتو شعر ګڼل کېږي:

ګهیځ رڼا د لمر خپره سوه
زما پر کور د ویر ناره سوه
د بېلتون ورځ توره تیاره سوه
رېږغ سو ناڅاپه چې بېلتون راغی
زړه مې له دې ویرنې شین دی
په ژړا ژاړم څه ناورین دی
زرغون له اوښو مې سادین دی
په نول نولېږم چې تاخون راغی
نه به بیا یم نه به بیا راسي
نه به تیاره شپه زما رڼا سي
نه به شهې راته پخلا سي
بېلېږي پېر یې اوس د یون راغی
د ښبنتن پار دی هېر مې نه کړې
آغلیه مخ چې په یانه کړې
اور بل دې پرېښوی واته کړې
پر ما د بل اور کړاوون راغی.

دا شعر له هغو اشعارو څخه ګڼل کېږي چې غنايي يا د موسيقيت خوا لري او لکه د پښتو اکثره عوامي اشعار په خواږه او خاص غږ ويل کېږي.

له دغه شعر څخه ښکاري چې تايمني به يو عاشق مشربه سړی و او کله به يې د خپلو عاشقانه جذباتو په شور او هيجان کې خواږه شعرونه غږول. ددې شعر ژبه سپېڅلې، پاکه او سپينه ده. بله عشقي يا ليريک سندره چې موږ ته رارسېدلې ده هغه د قطب الدين بختيار سندره ده، د مينې او د مين د زړه احساسات يې په ښه ډول څرګند کړي دي. دا شعر لکه اوسني عاميانه اشعار تکرارېدونکی کسر هم لري او داسې ښکاري چې قطب الدين د مينې په دنيا کې تاوده جذبات لرل:

وير مې زړه سوری سوری کړ
راتــــه وګـــوره مــلـــوکــې
پــــه بېلتون کې دې وبــاسـم
لــــه خـــوږمــنه زړګی کوکې
راتــــه وګـــوره مــلـــوکې
راتــــه وګـــوره مــلـــوکې

بله ليريک سندره چې پښتو لرغونو ادبياتو ته ښکلا او رنګيني وربښي، هغه د شيخ ملکيار هوتک سندره ده، شيخ ملکيار هوتک د مينې ډک زړه درلود او د عشق او مينې پر لاره يې قدم او قلم وهلی دی. پټه خزانه دده يو داسې عشقي سندره رانقلوي چې

په پښتو اشعارو کې د وزن، بحر او مضمون له پلوه ډېر قيمت لري او د يوه ساده عشقي پښتني فکر استازيتوب کوي.

ده دا شعر د طبيعت په ښکلې لمن کې د رود پر غاړه د سپينې سپوږمۍ په ښکلې رڼا کې غږولی دی.

ترنک بهېږي ترنک بهېږي
غاړې تر غاړې
زما زړگی خو
خپل لالی غواړي

**۲- مناجات:** د پښتو ژبې په لرغونو ادبياتو کې د مناجاتو په برخه کې لومړنی لاسته راغلی اثر د بېټ نيکه دی چې دده د ژوند زمانه د څلورمې هجري پېړۍ په شاوخوا کې ټاکل کېدی شي او دا شعر يې (۳۵۰) هـ په شاوخوا پورې اړه لري. (خدای د ژوندون واکمن دی مالک الملک دی، دی ښاغلی کورنۍ سرو ته ورکوي نو خدايه موږ ستا مريي يو) او د بېټ نيکه هغه شعر دادی:

لويه خدايه لويه خدايه
ستا په مينه په هر ځايه
غر ولاړ دی درناوي کې
ټوله ژوي په زاري کې
دلته دي د غرو لمنې
زموږ کېږدۍ دي پکې پلنې
دا وګړي ډېر کړې خدايه
لويه خدايه لويه خدايه

۷- رزم، جنګ او ننګ: د پښتو په لرغونو ادبیاتو کې لومړنی لاسته راغلی اثر د رزم په برخه کې د ملکیار غرشین شعر دی، چې د (۵۸۰) هـ کال په حدودو کې یې لیکلی دی. ملکیار یو غښتلی او توریالی سړی هم و او د توري او ادب له څښتنانو څخه و چې له سلطان سره یې په جهاد او جګړو کې ملګري کوله، داسې ښکاري چې ملکیار پر جنګیالیتوب او توریالیتوب علاوه ادبي ذوق هم درلود، په خپله هم شاعر و او د نورو پښتو شاعرانو اشعار یې هم تل لوستل، په هغه میدان کې چې ملکیار د سلطان معزالدین له لښکرو سره یوځای جنګېږي او نږدې و چې د سلطان لښکر ماته وکړي، نو دې توریالي ادیب او عارف یوه د ننګ او جنګ سندره وویله او لښکریان یې همت او شجاعت او توریالیتوب ته تشویق کړل، تر هغه چې بریالي شول او د جنګ پر ډګر یې سوبه په برخه شوه. سلیمان ماکو لیکي چې په جګړه کې ملکیار دا پارکی ووایه چې غاریان وپارېدل او په څېر د زمریو ورتوی شول. د ملکیار دا شعر چې د قدیمو اقوامو د حماسیو رنګ لري له هغو سندرو څخه دی چې پخوانیو پښتنو به د جګړې پر میدان ویلې او مقصد یې دا و چې د زلمو احساسات تاوده کړي او پر جنګ یې ښه وپاروي:

څښتن مو مل دی    اوس مو یرغل دی    هېواد د بل دی

غازیانو ګورئ    څښتن مو مل دی

بله د مقاومت یا رزم کومه سندره چې لاسته راغلې ده هغه د باباهوتک رزمي یا د مقاومت سندره ده چې د مغولو له لښکرو سره د جنګ پر وخت یې ویلې ده او هغه سندره داده:

پــر ســور غــر بــل راتــه نــن اور دی
وګړیـــه جـــوړ راتـــه پېغـــور دی
پــر کلــي کــور بانــدې مغــل راغــی
هــم پــه غزنــي هــم پــه کابــل راغــی
غښــتلیو تنــګ کــړئ دا مــو وار دی
مغـــل راغلـــی پـــه تلـــوار دی
پـــه پښـــتونخوا کـــې یـــې ناتـــار دی
پــر کلــي کــور بانــدې مغــل راغــی.

**۸- اخلاق**: په پښتو لرغونو ادبیاتو کې لاسته راغلی اخلاقي شعر د زرغونې کاکړ دی، چې غالباً به د نهمې هجري پېړۍ په دویمه نیمایي کې زېږېدلې وي. دا مېرمنه د شاعرانو په ډله کې په لومړي صف کې درېږي.

که موږ په پښتو ادب کې د اخلاقي شاعرانو لپاره یوه ځانګړې ډله ومنو، نو زرغونه به له خپل بوستان سره د هغو په سر کې ولاړه وي، ځکه چې تر دې دمخه کوم اخلاقي شاعر موږ ته نه دی معلوم او زرغونه د شیخ سعدي د بوستان په منظومه ترجمه د اخلاقي شاعرانو له ډلې څخه بللای شو.

د زرغونې یو حکایت چې د پټې خزانې په واسطه موږ ته رارسېدلی دی، هغه دادی:

| | |
|---|---|
| اورېدلــې مې قیصه ده | چې لـه شاتو هم خوږه ده |
| د اختـر پــه ورځ سهــار | بایزیــد چــې و رویــدار |
| لـــه حــمــامــه راوتــلی | پــه کوڅــه کــې تېرېــدلی |

ایرې خاورې چا له بامه | راچپه کړلې ناپامه
مخ او سر یې سو ککړ | په ایرو په خاورو خړ
بایزید په شکر کښنو سو | د خپل مخ په پاکېدو سو
چې زه ور یم د بل اور | چې په اور کې سم نسکور.

بله مېرمنه چې په لرغونو ادبیاتو کې یې لویه برخه اخیستې ده، هغه مېرمن نېکبخته ده چې د هغې اشعار هم اخلاقي، د نصایحو او د پند او تبلیغ رنګ لري. د نمونې په ډول د هغې یو شعر دادی:

په زړه ښاد شې ای مومنه | په ظاهر په باطن سپینه
ظاهر زهد په اخلاص کړه | په زړه ټینګ شه له یقینه
شکر صبر په هر حال کړه | خودنمای مه شه خود بینه.

نو له دې څخه دا نتیجه اخیستلای شو چې په لرغوني دوره کې هم شاعران د لوړ شعري او ادبي ذوق خاوندان وو او د خپل ذوق، تخیل او جذباتو په مرسته یې د مختلفو موضوعګانو لکه: ویاړنه، ساندې یا ویرنه، ستاینې، تصوفي او عرفاني، عشقي یا لیریک، مناجات یا راز و نیاز په برخه کې او د رزم یا د جنګ او ننګ او بلاخره د اخلاقو او نصایحو په برخه کې یې اشعار ویلي دي.

# په پښتو لرغونې شاعرۍ کې څلوريزه

## (رباعي)



څلوريزه هغه شعري فورم دی چې له عربي څخه پښتو ته راغلی دی. د یوې بلې پېژندګلوۍ له مخې لرو چې د پښتو نظم لیریک ډول پخوانی ادبي ژانر دی، چې په پښتو نظم کې ډېر لرغونی او غوره ځای لري.
په پښتو کې رباعي ته څلوريزه وايي، لکه څنګه چې يې له نامه څخه معلومېږي، دا فورم څلور مسرې لري، له ځينو استثنايي حالاتو پرته چې په هغې کې کېدی شي د درېيمې مسرې يوه څپه د قافيه والو مسرو تر څپو کمه يا زياته شي،په ټوليز ډول د ټولو څلور واړو مسرو د څپو شمېر يې سره مساوي وي.
د رباعي لومړی بيت مقفی، درېيمه مسره يې قافيه نه لري او د څلورمې مسرې قافيه يې د مطلعې قافيه تعقيبوي. مخکې له هغې چې په پښتو ژبه او ادب کې عربي عروض خپلې اغېزې وښندي په پښتو ادب کې يو ډول رباعي موجوده وه چې په ملي وزنونو به ويل کېده.
رباعي د پښتو ژبې او ادب د نورو نظمي ژانرونو په څېر د يوه اوږده تاريخي بهير نتيجه ده. دغه ژانر نه يوازې په کلاسيک پېر، بلکې

په لرغوني پېر کې هم پېژندل شوی ادبي ډول دی، چې ډېرو شاعرانو په همدې جولې کې شعرونه او نظمونه ويلي دي.
په کلاسيک پېر کې ددې ژانر بېلګې ددې مهال د شاعرانو په ليکنو او شعرونو کې ډېرې زياتې ګورو. په پښتو کې د بېلابېلو څپو په شمېر څلوريزې ويل شوي، خو لس څپيزې څلوريزې په کې زياتې دي او دا اکثره په تول تللې دي.
هغه رباعي چې لس څپيزې دي، هره مسره يې د اهنګ له مخې تقريباً پر دوو برخو وېشل کېږي. پنځه څپې يوه خوا او پنځه بله خوا، د رباعي تکنيک او جوله د پښتو ژبې د نورو ادبي نظمونو په څرنګوالي او څومره والي کې د ارزښت وړ مقام لري. د رباعي په جوله کې لنډې- لنډې موضوعګانې ددې ژانر منځپانګې جوړوي.
دغه لنډې- لنډې موضوعګانې چې د ټولنيزو غوره مطالبو د څرګندولو په خاطر د شاعر له فکر او اندېښنې رازېږېدلي، ليکل شوې دي. دغه ډول ځېل د هغه مهال ټولنيزو ستونزو د حلولو او ښې لارښوونې په برخه کې ستره ونده سرته رسولې ده. څلوريزه د غزل په شان ده، خو توپير يې دادی، د څلوريزې د بيتونو شمېر دوه بيتونه وي، چې د غزل د جولې په څېر لومړی بيت يې مقفی وي يانې په وزن او قافيه کې سره يو وي. همدارنګه د رباعي څلورمه مسره د وزن او قافيې له پلوه د مطلع په شان وي.
په «فرهنګ ادبيات» کې زهرا خانلزي څلوريزه داسې راپېژني:
«رباعي څلور مسرې وي، چې لومړی، دويمه او څلورمه مسره يې د واحدې قافيې لرونکې وي. رباعي په فارسي ادب کې د (هـ،ق) له لرغونو پېرونو څخه ددې ژبې او ادب په شاعرانو کې دود شوې ده.

ددې ډول شعرونو او نظمونو ريښې د فارسي ادبياتو په تاريخ کې آن څلورمې هجري پېړۍ ته رسېږي.)) ډاکتر ذبيح الله صفا په (تاريخ ادبيات ايران) کې ليکي: (( ددې مهال شاعرانو د شعر په بېلابېلو څېلونو کې د مثنوي، قصيدې، غزل، رباعي او نورو په هکله ليکنې کړې دي.))

له پورته ليکنې څخه جوتېږي چې رباعي په فارسي ادب کې په څلورمه هجري پېړۍ کې د نظم د پورتنيو يادو شويو ډولونو په څنګ کې د يو ښکلي ادبي ډول په توګه پېژندل شوې او کارول شوې ده.

اصله خبره داده چې په پښتو ژبه او ادب کې دغه ډول ادبي نظم په لرغوني پېر کې هم شتون درلود، چې د پښتو په ملي وزنونو ويل کېده، په کلاسيک پېر او له دې مهاله مخکې عربي عروضو ته نږدې د دېواني نظمونو په ډله کې د رباعي د نظم ډول هم ليدل کېږي. د پښتو ژبې او ادب لومړنۍ رباعي چې د پټې خزانې له لارې لاسته راغلې، خليل خان نيازي ته منسوبه ده، چې سلطان بهلول (۸۹۴هـ) ته يې ويلې وه او په لاندې ډول ده:

خـړې وربـــځې ژاړي له پاسه
کــويله رږغ کـا بېلتون له لاسه
يه هغه لوني ګوهر په خول ستا
دا مرحبا کـا ستـا زمور مواسه

سلطان بهلول ددې رباعي له اورېدو سره سم په ځواب کې دا لاندې رباعي ويلې ده:

ملک به زرغون کړم په ورکړه لاسه
ګـوره وربـځې د داد لـــه پاســـه
خول مې د عـدل پـــه درو روڼ دی
جهان به زېب مـومـي زما له لاسه

هندسي شکل یې:

+______________
+______________
 ______________
+______________

د رباعي یو بله بېلګه د دېواني ادب له رامنځته کېدو لږ مخکې پـه کلاسیک پېر کې (۹۲۰هـ) د رابعې نومې یوې پښـتنې شـاعرې یـوه څلوریزه ده چې د منځپـانګې لـه مخې ددې مهـال د ربـاعي د نظـم څرنګوالی ترې پوره څرګند ېدی شي.

هغه داده:

ادم یـې مځـکې و تـه راسـتـون کا
په اور د غم یـې سـوی لړمون کا
دوزخ یې روغ کا پرمخ د ځمکې
نـوم یـې د هغه دلته بېلتون کا

بله خبره داده چې رباعي له موضوعي پلوه د پند و حکمت پـه بـاب وي او هم عشقي او ټولنیزې خواوې لـري، لـه دغـو څرګنـدونو څخـه معلومېږي چې څلوریزه په کلاسیک او لرغوني پېـر کـې د یـو غـوره ادبــي ژانــر پــه توګــه کــارول شــوې ده او د شــاعرانو د شــاعرانه

احساساتو په څرګندولو او د ټولنیزو موضوعګانو په انځورولو کې يې کارنده مقام درلود.

## اخځونه

کلاسيک ژانرونه: د محبوب شاه ارزومند ليکنه.
د پښتو شعر هندسي جوړښت: د پوهندوی محمد اسمعيل يون اثر.
د پښتو ادبياتو تاريخ، لومړی او دويم ټوک: د پوهاند عبدالحی حبيبي اثر.

# په لرغوني دوره کې پر پښتو ژبه او شاعرۍ مذهبي تاثیرات



پر پښتو شاعرۍ باندې په لرغوني دوره کې مذهبي تاثیرات لږ وو، ځکه په هغه وخت کې د پښتو سوچه او پاک لغاتونه کارېدل او مذهبي تاثیرات لا د هېواد ګوټ ګوټ ته دومره نه وو خواره شوي چې پر ادبیاتو دې پراخ تاثیر وکړي. تر لرغوني دورې وروسته پر پښتو شاعرۍ باندې مذهبي تاثیر ډېر شول او د پښتو له پخوانیو اثارو څخه هم داسې ښکاري چې پښتانه د اسلام په اوایلو کې مشهور وو او د دوی ژبه هم په دغه وخت کې یوه داسې ادبي ژبه وه چې ډېر ښه او پاخه اشعار یې درلودل، لکه د امیر کروړ په وخت کې شعر له مذهبي تاثیراتو څخه لرې و، ځکه هغه د پښتو له سوچه او خپلو لغاتونو څخه کار اخیستی دی، چې وروسته د روښانیانو په وخت کې پر پښتو شعر باندې مذهبي تاثیرات ډېر شوي دي.

د پښتو په خورا زړو او پخوانیو اشعارو کې چې تر اوسه زموږ لاسته راغلي دي، د امیر کروړ سوري یو فخریه شعر دی او له دې شعر څخه داسې ښکاري چې په سوریانو کې د پښتو شعر د اسلام له ابتدا څخه موجود و، ځکه د امیر کروړ د ژوند وخت له (۱۰۰هـ

څخه وروسته شروع کېږي او بيا موږ وينو چې په سوريانو او هم د غور په اوسېدونکو کې د سلطان محمود تر عصره (۴۰۰هـ) پورې هم د پښتو شعر ښېګڼې پورته وې، نو له دې څخه ثابتېږي چې د اسلامي دورې په لومړيو څلورو سوو کلونو کې غور او سوري قبايل د پښتو د شعر او ادب زانګو وه او په دغه وخت کې پښتو ژبې پاخه اشعار او ادبي اثار درلودل او د امير کروړ له شعر څخه څرګندېږي چې په لومړۍ دوره ياني اوله او دويمه هجري پېړۍ کې پښتو ژبه په غور کې د نورو ژبو له اختلاطه سوچه وه او دا سوچه توب او خالصوالى يې تر (۴۰۰هـ) پورې هم ساتلى دى.

څومره چې په اسلامي دوره کې پېړۍ پرې تېرېږي، هغومره ژبه او شاعري له سوچه توب نه لرې کېږي او نور عناصر پرې ګډېږي.

په دويمه هجري پېړۍ کې پښتو ژبه او شعر سوچه او خالص و، خو په دريمه پېړۍ کې د عربي ژبې لغوي او ادبي اغېزې پرې شوې دي او د عربي فکر او ادب اثر په هغو ځايونو کې غالب شوى دى چې د عربو د حکومت اثر هلته ډېر و.

شيخ رضى او نصر لودي د شيخ حميد له کورنۍ څخه دي، رضى د حميد وراره او نصر لودي يې زوى دى. شيخ رضي خپل تربور (تره زوى) ته داسې ليکلي دي:

د الحاد په لور دې ترپلل
ګروه دې زموږ وکوراوه
موږ رونلي په زيارنه
تا په تور و توراوه

نصر لودي د شیخ رضي په غبرګون کې وايي:

د الحاد په تور تورن سوم
زه لرغون خو ملحد نه یم
زما د ښنه هسې تورا کړې
که ملحد یم د دښنه یم.

د لودیانو په وخت کې که څه هم تر هاشم سرواني وروسته دی، خو د پښتو سوچه توب او ژبې نږه والی قوي دی، د مذهب او د عربي اثر لږ ښکاره کوي. له (الحاد) او (سنتي) ځخه ښکاري چې مذهب او عربي ژبې اثر په دغو وختونو کې تش په دیني اصطلاحاتو پورې محدود و او لاډېر عربي اصطلاحات په ژبه او ادب کې ننوتلي نه وو.

د لودي کورنۍ د اسلام سوچه خدمتګاران وو او غوښتل یې چې د پښتونخوا په بېلابېلو سیمو کې د اسلام رڼا خپره کړي. نصر لودي په خپل نظم کې له ځانه ښه دفاع کړې ده او خپل عقاید یې د پخوانیو په ډول د (سنت) تابع بللي دي. تر دې وروسته ان تر روښاني دورې چې کوم شعرونه لیکل شوي، په پام وړ شمېر شعرونو کې مذهبي تاثیرات او د عربي ژبې اغېزې ځرګند ېږي، خو د لرغونې دورې په اندول بیا په روښاني پېر کې دا اغېزې زیاتې ځرګند ېږي.

# د پښتو لرغوني ادب په پرمختيايي بهير کې د ښځو ونډه



که چېرې موږ د پښتو شفاهي ادبيات مطالعه کړو، نو ددغو شفاهي سندرو په جوړولو کې د ښځو برخه د يادونې وړ ده او ډېرې زياتې دغه ډول شفاهي سندرې پښتنو کليوالو او مېرمنو جوړې کړې دي، خو څنګه چې ددغو شفاهي سندرو ويونکي زياتره نه دي معلوم، نو پر دې اساس موږ ددغسې هنري ذوق خاوندانو ډېرو ښځو له نامه څخه نه يو خبر، خو کله چې د پښتو تحريري ادبيات مطالعه کوو، نو د نهمې هجري پېړۍ په اواخرو او د لسمې پېړۍ په اوايلو کې موږ د ځينو پښتنو ښځو له نومونو سره مخامخېږو، چې په پښتو ژبه ترې اثار پاتې شوې دي.

ددغو ښځو اثار موږ ته دا هم راښيي، چې دغه وخت د پښتنو په ځينو کورنيو کې د ښځو باسواده کېدلو ته توجه کېده او داسې ښکاري چې دغه مهال ځينو پښتنو ښځو ته دا حق ورکړل شوی و، چې سواد زده کړي، د ديني علومو زده کړه وکړي او د مدارسو ځينې نصابي منظوم او منثور کتابونه ولولي. په دغو باسواده ښځو کې چې به که کومې يوې د ليکوالۍ او شعر ويلو استعداد

درلود، نو دې خواته به يې هم پاملرنه کوله او په پښتو به يې ځينې اثار يا ژباړل او يا به يې نظمول. دغه اثار زياتره اخلاقي او ديني تبليغي رنګ لري. ددغو ښځو له خوا ددغه ډول اثارو تاليف او ترجمې ته توجه به د دوی د همدغه ديني تعليم نتيجه وي او د همدغو تعليماتو تر فکري اغېز لاندې به يې د ديني، تبليغي او اخلاقي اثارو ايجاد او ترجمې ته هڅه کړې وي. که نه وي د پښتنو کليوالو ښځو له خوا چې کوم شفاهي ادبيات ايجاد شوي دي، زياتره ليريک او غنايي رنګ لري، اوس هم دا ثابته شوې ده چې ښځې له نرينه سره يوشان استعداد لري، هغه ښځې چې اثار يې د پښتو په لرغوني ادبي دوره کې د مطالعې ځای لري په دغو ښځو کې لومړنۍ يې زرغونه کاکړ ده، چې غالباً به د نهمې هجري پېړۍ په دويمه نيمايي کې زېږېدلې وي.

دا مېرمن د کندهار په پنجوايي کې اوسېده، پلار يې ملا دين محمد کاکړ نومېده او دا خپله د سعدالله خان نورزي ماينه وه، دې مېرمنې پر (۹۰۳هـ.ق) کال د سعدي بوستان په پښتو نظم ترجمه کړې دی. د پټې خزانې روايت دی، چې دغې مېرمنې د بوستان پر ترجمې سربېره نور اشعار هم ويلي وو، د زرغونې د پښتو بوستان يو حکايت پټې خزانې راوړی دی، چې زه يې څو بيته دلته را اخلم:

| | |
|---|---|
| اورېدلې مې قيصه ده | چې له شاتو هم خوږه ده |
| د اختر په ورځ سهار | بايزيد چې و رويدار |
| له حمامه راوتلی | په کوڅه کې تېرېدلی |
| ايرې خاورې چا له بامه | راچپه کړلې ناپامه |
| مخ او سر يې سو ککړ | په ايرو په خاورو خړ |

بایزید په شکر کښنو سو　　　　د خپل مخ په پاکېدو سو
چـــې زه ور یـــم د بل اور　　　　چې په اور کې سم نسـکور

د ادبپوهانو په وینا دا ترجمه ډېره غښتلې ده او زرغونه د سعدي بوستان له ترجمې بریالۍ راوتلې ده.
د پښتو ادبیاتو په لرغونې دوره کې د زرغونې پښتو بوستان لومړنی اخلاقي اثر دی او تر دغه اثر دمخه موږ په پښتو ادبي اثارو کې د اخلاقي مفاهیمو لرونکي دغسې اثار نه لرو. د استاد حبیبي خبره چې که چېرې موږ په پښتو ادب کې د اخلاقي ویناوو خاوندان سره بېلوو، نو زرغونه له خپل پښتو بوستان سره ددې ډلې په سر کې درېږي.
پر دې سربېره له فارسي ژبې نه پښتو ته د ادبي اثارو د ترجمې تاریخ هم د زرغونې کاکړې له خوا د بوستان له همدې ترجمې څخه پیلېږي، تر دې ترجمې دمخه موږ ته بل داسې اثر نه دی معلوم، چې له فارسي ژبې څخه دې پښتو ته ترجمه شوی وي.
زرغونه کاکړ سربېره پر دې چې د پښتو شاعره او مترجمه وه، ددې ترڅنګ یې بل هنر هم درلود او هغه دا چې نوموړې ډېره ښه خطاطه هم وه.
بله مېرمن چې موږ یې باید په زرغونې کاکړې پسې اثار په دې ځای کې مطالعه کړو، هغه رابعه ده. رابعه د پټې خزانې له لیکنو سره سم د ظهیرالدین محمد بابر (۹۳۷هـ.ق) د زمانې شاعره ده، په کندهار کې اوسېده، د اشعارو دېوان یې درلود، ددې شاعرې دغه لاندې رباعي پټې خزانې راوړې ده:

ادم يې مځکې و تـه راستون کا
پـه اور د غـم يـې سـوی لړمون کا
دوزخ يـې روغ کا پرمـخ د مځکې
نـوم يـې د هـغه دلـته بـېلتون کا

له دې يوې رباعي پرته ددې نور اثار موږ ته نه دي معلوم، خو له دې يوې رباعي څخه يې هم د وينا قدرت ښکاري او دا راښيي چې رابعې به په خپل ديوان کې عشقي موضوعات په خورا ادبي نزاکت او لطافت بيان کړي وي.

دريمه مېرمن چې په لرغوني ادب کې د مطالعې ځای لري، هغه نېکبخته ده. مېرمن نېکبخته د شيخ الله داد لور وه، چې پلار نيکه يې په اشنغر کې اوسېدل. نېکبختې پر (۹۵۱هـ.ق) کال له شيخ قدم سره واده وکړ، مېرمن نېکبخته زاهده، پرهېزګاره او عالمه مېرمن وه. نېکبختې پر (۹۴۹هـ.ق) کال د (ارشاد الفقرا) په نامه يو کتاب ليکلی و، چې درې ټوټې ترې محمد هوتک په پټه خزانه کې را اخيستې دي، د يوې ټوټې څو بيته يې دادي:

پـه زړه ښاد سې ای مومنه        پـه ظاهـر پـه بـاطـن سپينه
ظاهر زهد پـه اخلاص کـړه        په زړه ټينګ سـه لـه يـقينه
شـکر صبر په هـر حـال کړه        خودنمای مه سه خـود بـينه

د مېرمن نېکبختې لاسته راغلې منظومې ټوټې تبليغي رنګ لري او نصايح او پندونه يې په دې اثر کې وړاندې کړي دي، که څه هم د نېکبختې کتاب له اوسنيو ادبياتو سره ډېر سمون نه لري، خو مځکې داسې کتاب نه و.

د پښتنو په تاريخي فرهنګي بهير کې بله شاعره او اديبه نازو انا ده. د پټې خزانې په قول: ((مېرمن نازو د سلطان ملخي توخي لور ده او پر (۱۰۷۱هـ) کال په تازي نومې سيمه کې زېږېدلې ده، سلطان ملخی پر هغه وخت د غزني تر جلدکه د اقوامو مشر و او په استقلال يې حکومت کاوه، معاوض او ساري يې نه درلود او نازو په کوچنيوالي له پښتنو مېرمنو او سپين ږيرو علماوو څخه لوست کړی و، مېره مخې ارتينه وه چې نارينه يې مېړانې او شجاعت او سخاوت ته حيران وو. له ثقه رواياتو څخه يو روايت دی چې سلطان ملخی سور غره ته نږدې په جنګ کې ومړ او حاجي عادل چې د نازو ورور و، د پلار په انتقام جنګ ته ولاړ، کلا او کور يې نازو ته پرېښودل او په هغه وخت کې نازو توره په ملا کړه او له جنګياليو ځوانانو سره يې کور او کلا د دښمنانو له تاړاکه وساتل.

نازو انا په مېلمستيا، غريبانو او مسافرانو په پالنه مصروفه وه او هر وخت به چې په ژمي کې د مسافرو قافلې راغلې د نازو پر کلا يې اړول او دوی به ورته ډوډۍ ورکوله، د سخاوت نوم يې له خيبره تر کوسانه خپور شو، نازو په حباله د ښالم خان هوتک وه چې د کريم خان زوی و او مېرمن نازو څلور زامن درلودل چې مشر يې حاجي ميرخان او نور عبدالعزيز خان، يحيی خان او عبدالقادر خان دي.

نازو انا سربېره پر سخاوت، شجاعت او عبادت هسې ارتينه وه چې د خدای تعالی څخه په مناجات يې ډېر اشعار وويل او يو ديوان يې درلود چې دوه زره بيتونه پکې وو او هلته يې ښه نکات ادا کړي

وو. داسې يې ويلي وو چې نارينه يې هم نه شي ويلای، دغه رباعي چې د نازو انا وه په لاندې ډول ده:

سحرګه وه د نرګس ليمه لانده
څاڅکي څاڅکي يې له سترګو څڅېده
ما ويل څه دي ښکلې ګله ولې ژاړې؟
ده ويل ژوند مې دی يوه خوله خندېده

مېرمن حليمه حافظه بله ليکواله او شاعره مېرمن ده چې تر لرغونې دورې وروسته په کلاسيکې يا منځنۍ دورې پورې اړه لري. حليمه د خان عليين مکان خوشال خان خټک لور وه چې د عبدالقادر خان خټک سکه خور کېده او د خپل پلار پر ژوند يې مروج علوم ولوستل او بيا د شيخ سعدي لاهوري مريده شوه. د خپل پلار عبدالقادر خان په لاس يې بيعت وکړ، چې هغه هم د شيخ دوران خليفه و، روايت کا چې، حليمه بي بي فاضله او عارفه ښځه ده او مېړه يې نه دی کړی، قرآن عظيم الشان يې هم په ياد و، په پښتو يې اشعار هم ويلي دي. د حليمې په اشعارو کې مجازي عشق نه ښکاري، بلکې ټول شعرونه يې د حقيقت په لاره کې دي او د حقيقي محبوب حقيقي صفت کوي، د بي بي حليمې غزل دا دی:

د اشنا په فکر خوښه هسې شان شوم
نه پوهېږم چې ممتاز که نورجهان شوم
چې يې کړمه ستا په مينه سرفرازه
ثناخوانه په څو رنګه د رحمان شوم

چـــې مجـــاز مـــې د ایـــاز ولاړی زړه نـــه
ســربلنده تــر محمــود غونــدې ســلطان شــوم
و هـــر چـــا وتـــه چـــې ګـــورم واړه دی دی
د جمـــال پـــه ننـــدارو یـــې شـــادمان شـــوم
د غیـــر فکـــر مـــې لـــه زړه نـــه رابهـــر شـــو
پـــر خلیـــل و پـــر عـــدو بانـــدې یکســـان شـــوم
حلیمـــې د غمـــاز مکـــر زیـــات لـــه حـــد شـــو
چـــې دې بیـــل لـــه یـــاره نـــه کـــا بـــدګمان شـــوم.

# په پښتو ادبیاتو کې ساندې او د ښادۍ سندرې

## ساندې:



څرنګه چې ولسي سندرې په ولس کې په شفاهي بڼه منځته راځي او هر یو فورم یې په ولس کې ځانته د ویلو خاص ترتیب او اهنګ لري، نو ښایي چې په لیکلې بڼه زیاتې ولسي سندرې سره ورته والی او نږدېوالی ولري، خو د ویلو له مخې بیا بېخي بېل او ځانګړي صنفونه جوړوي، دا ځکه چې د دغو سندرو ارزښت او جوړښت شفاهي دی او خلک یې د اورېدلو له لارې سره بېلوي او لیکلې بڼه یې یوازې د ثبت او تلپاتې کېدلو وسیله ده.

د بېلګې په توګه په لوی سر کې خو د ښادۍ بدلې، د اتڼ نارې، غړونه، د بې بې دستې سندرې او چغیان د سره ورته سکښت درلودونکي ښکاري او په عمومي توګه دا ټولې یادې شوې سندرې درې مسره ییزې دي، چې د لومړیو او درېیو مسریو قافیه یې سره یوه ده او د دویمې یې ازاده ده، خو د ویلو پر وخت داسې سره بېل اهنګونه او طرزونه لري، چې هېڅ امکان نه لري چې د ښادۍ بدلې

دې د اتڼ د نارو په څېر، یا دې ساندې د لنډیو په څېر او یا دې هم تاریخي نارې د چغیانو غوندې وویل شي، بلکې هر فورم ځانته بېل سُر او تال لري.
نو له همدې امله موږ هم ساندې په فورمي لحاظ د یوه ځانګړي صنف او ژانر په توګه تر څېړنې لاندې نیسو. ساندې چې د عامو ولسي سندرو یو صنف دی، د ښځو له خوا پر مړي باندې ویل کېږي. ځیني خلک یې ستایني، ځیني یې کړیکې او ځیني نور یې غړانګې هم بولي. ځیني ساندې په خپله لنډۍ وي چې په خاص وزن او اهنګ په کې د مړي د محاسنو او نېکیو، دده د نیمه خوا هیلو، پاته شویو کوچنیو ماشومانو او ناوې، یا که ځوان مړ وي، نو دده د هیلو د نه ترسره کېدلو او نورو ارمانونو ویر په کې کېږي. زه دلته هغه لنډۍ چې خلک یې د ساندو په بڼه وایي، ډېرې ځکه نه راوړم چې پر لنډیو باندې په خپله د لنډیو په برخه کې پوره خبرې شوې دي او یوازې د یو دوه درېیو لنډیو په راوړلو بسنه کوم.

که نور دې هر څه میراتېږي
میرات دې مه شه دا د غاړې تاویزونه
که نور دې هر څه میراتېږي
میرات دې مه شه لوی پتي واړه ورخونه
بې وروره خور په کوڅه راغله
ناره یې وکړه شپه به چا کره کومه

هغه ښځه چې ساندې کوي، نو د ساندو دویمه مسرې نورې ښځې ورسره غبرګوي او په ګډه د (وای او وئ) په ویلو سرونه او ځانونه وهي.

دا يې هم څو نورې بېلګې:
پلانکيه په سر دې کېنه يوه مرغۍ
چې درته ووايي د پلانکۍ د سلامتګۍ
خدايه پخې کړې د غره ممانړې
پلانکۍ شاوو کړې ښځه يې ناوې
پلانکۍ رانه وړه ډولۍ
وی دې (...) ونه واله پګړۍ

ساندې عموماً دوه مسره ييزې دي، ما په خپله درې مسره ييزې او تر دې زياتې مسرې والا ساندې نه دي اورېدلي، خو (د خلکو سندرې) نومي مولف د درې مسره ييزو ساندو يوازې يوه نمونه ليکلې ده:

پلانکيه مه شپې کړه مه کلونه کور ته دې رادرومه
پر خيالي جامو دې پرېوتل ګردونه

## ب- د ښادۍ سندرې:

د ښادۍ بدلې چې د واده سندرې يې هم بولي، لکه د ولسي عامو سندرو د نورو فورمونو غوندې خاص ويونکي نه لري او د عامو سندرو په کټګورۍ کې مطالعه کېږي. دغه سندرې چې ځانګړې جوړښت لري غالباً د ښځو له خوا جوړې شوي او په خپله د همدوی له خوا له هوکې او کوژدې څخه نيولې، بيا د واده د درېيمې او اوومې ورځې تر مراسمو پورې دوام مومي. ښځې د واده، کوژدې، هوکې او واده د بېلابېلو وختونو او شپو ورځو لپاره بېلابېلې

سندرې لري. دغه سندرې په اکثرو پښتني سيمو کې د بابولالو په نامه پېژني او زياتو پوهانو او څېړونکو هم بابولالې بللي، خو د زرينې څانګې مولف وايي: «څرنګه چې بابولالې ددې سندرو يوه ډېره وړه څانګه ده، نو دا نوم جامع او مانع نه دی، نو ځکه ځينې محققين د واده سندرې يا د ښادۍ سندرې ورته وايي او الحق چې سم نوم دی» دی زياتوي: د واده ځينې سندرې د ښځو له خوا د نڅا په ترڅ کې ويل کېږي.

دغه سندرې ډېرې لرغونې دي او داسې نښې نښانې له ځانه سره لري چې تر اسلامي دورې مخکې ښکاري، د بېلګې په توګه په څو سندرو کې د چندڼو، استعمال ته اشاره شته چې دا کار د اريايانو بودايي دوره کې دود و او هندوانو اوس هم ساتلی دی، هغه دا چې د چندڼ، سندل، سندرله بوټي څخه د سپېڅلتيا او خوشبويي لپاره کار اخلي او په تندي يې موښي.

د (زرينې څانګې) ليکوال د خبرو د بشپړتابه لپاره بايد دومره ووايم چې همدا اوس هم په ځينو پښتني سيمو کې د سندر استعمال رواج لري، د ننګرهار ولايت د روداتو په ولسوالۍ کې همدا اوس هم د زوم کورنۍ د نورو جوړو جامو سره يوځای سندر هم د ناوې پلارګنۍ کره وړي، د واده پر ورځ د ناوې له کورنۍ څخه يوه ښځه سندر جوړوي او په بل لوښي کې (سور لرګی) په زېړو غوړيو کې ټکوي، په سندر کې سلايي ږدي او کله چې د زوم کور والاد ورځې له خوا په ناوې پسې راشي، نو هغه ښځه لومړی پېغلو او ښځو ته پېکی او يا پيچه غوړوي او بيا په سلايي ورته سندر

وهي چې هلته په هغه سیمه کې یې ((دړی بولي))، نو څرنګه چې دغه دود همدا اوس هم په پښتنو کې شته، نو ځکه هغه سندرې چې د سندر نوم پکې راغلی وي، لرغوني بلل زما په نظر د تامل وړ بریښي، د محتوا له نظره د واده سندرې کله د جنګ او د پېغور مطالب، کله د خوښۍ او خوشالۍ مطالب کله د ستاینې او غندنې مطالب او کله هم ټوکې ټکالې احتوا کوي.

د واده د سندرو د ویلو ترتیب او طرز د اتڼ له نارو سره جوت توپیر لري، خو د شعري جوړښت له پلوه دا هم دوه مسره ییزې، درې مسره ییزې او کله هم څلور مسره ییزې وي.

دا یې هم څو بېلګې:

کله چې د نکریزو په شپه د زوم د کاله ورا د ناوې کور ته لاړه شي، نو لومړی د زوم یوه خپلوانه چې ډېر زامن ولري او په کورني ژوند کې ښه خوشاله وي، ناوې ته نکریزې کېږدي، بیا نو ښځې چمبې را واخلي او دا سندره وایي:

د کونج مېرمنې پاڅه که دې زړه شي

هومره خو پانه څې چې پلانکی خان لونګۍ په لاس درته رانه شي

یا دا سندره:

که د بر بنګو ونه یې اوس به ګلونه نیسې

که د دادا د کوره یې اوس ترېنه ووتلې

که د (پلانکي) د کوره یې د غولي منځ به نیسې

کله چې د ورا ښځې غواړي چې ناوې په ژړا کړي نو داسې سندره ورته وايي:

زموږه ناوې تیله داره ده نه ژاړي
چې د ‹مېړه نوم يې اخلي› لغتې وخوري دا به ښه ژاړي

یا: کله چې ورا نوې د ناوې کور ته ځي په دروازه کې دا سندره وايي:

درځم که نه درځم شالونګینې
ولاړه شم که ځمه

اخځ

د پښتو شفاهي ادبيات، غوټۍ خاوري، ۱۳۲۲ل کال، بېلابېل مخونه.

# د پښتو ادبیاتو فالونه او چیغان



**الف- فالونه**: د پښتو د شفاهي سندرو په لړ کې یو ډول سندرې د فالونو په نامه ښودل شوي، چې زموږ د عامو ولسي سندرو یو ځانګړی ډول دی، ویونکي یې نه دي معلوم او د ټول ولس ګډ مال دی. دغه ولسي منظوم فالونه غالباً د ښځو له خوا جوړ شوي او داسې سوچه پښتو لغات هم په خپله لمن کې رانغاړي، چې تراوسه لاپښتو قاموسونو نه دي خوندي کړي. د فالونو د جوړښت په برخه کې باید وویل شي، چې کوم ټاکلي اوزان نه لري، اکثره لومړی مسره یې لنډه او دویمه یې اوږده وي، کله یې دویمه مسره هم لنډه او کله یې د دواړو مسرو سپلابونه سره یو شان وي، خو په هر حال خوږ اهنګ لري او هېڅ ډول سکتګي او بندښت په کې نه راځي.

فالونه کله دوه مسریز او کله څلور مسریز وي، لکه دا فالونه چې څلور مسرې لري:

د جنت په منارې — سور چرګ وهي نارې
شېر د خدای تېرېږي — خلکو کاندئ ننداري

دوه مسریز فالونه لکه:

دپاسه مسله راله — پر کلي عالم خوره راله

فالونه د ښځو له خوا د شعبان المعظم پر پنځلسمه شپه چې د برات مبارکه شپه ده، د ځانګړو مراسمو په ترڅ کې ويل کېږي، داسې چې د کلي پېغلې او ښځې سره ټولې شي دوی يوه پېغله نجلۍ پاکه ولمبوي بيا يې په برېستن کېنوي او په اصطلاح ناوې يې کړي او څو ټکري ورته پر سر واچوي، يوه ښځه منګی له پاکو اوبو څخه ډک کړي او نجلۍ مخې ته يې کېږدي، دلته نو هره ښځه او پېغله خپله ګوته، ګوتمه، بودلۍ او يا کوم بل شی د خپل ځان او يا هم د خپلې کورنۍ د کوم بل غړي په نامه منګي کې واچوي فال ويونکې ښځه د منګي ترڅنګ کېني او فال وايي، د شيانو د را ايستلو ترمخه هره ښځه د منګي ترڅنګ کېني درې وارې کلمه طيبه وايي او بيا ورپسې فال وايي:

واچوئ فالونه چې خدای تېينګ کړي تناوونه

فال ويونکې ښځه د فال د هرې غزلې په پای کې وايي: «ليلو د کاږه کنګړ» بيا نو هغه پېغلوټې نجلۍ منګي ته لاس کړي او يو شی ترې راوباسي دلته نو هره ښځه متوجه وي چې زما د کنګړ به څرنګه غزله په برخه شي، دا هم څو فالونه:

د جومات په مخ ريشکه ده
بي بي اودس پرې کړی بې بارانه زرغونه ده
ليلو وکاږه کنګړ
د غره په سر کې خوش خميره
که موزي شل اورتې وکړي زه بې اميره

په دې توګه ټوله شپه تر سهاره ښځې او پېغلې چمبه وهي، په مجلس کې ټوکې ټکالې او په کړس کړس خنداګانې وي. دغه

مبارکه شپه پښتنو پېغلو او مېرمنو ته د خوشالۍ، نېکمرغۍ او په عین حال کې د مېلې شپه هم وي.

په ځینو پښتنو کې، پښتنې مېرمنې د دغه منګي اوبو ته ډېره عقیده لري او له همدې امله د خپل تیکري پیڅکه په همدې اوبو لمدوي او بیا ګنډه (غوټه) ور اچوي، د دوی داسې عقیده ده؛ کله چې دا ګنډه خلاصه شي، حتماً به یو وېښته په کې پیدا شوی وي که دا وېښته سپین و دا مانا لري چې ددې ښځې ژوند به اوږد وي او که وېښته تور و، نو دا مانا لري چې دغه ښځه به ښایي په ځوانۍ کې مړه شي، داسې چې وېښتان به یې لا نه وي سپین شوي.

د برات پر شپه د ټولو پښتنو په کورونو کې ښه خواږه پخېږي، ځکه د دوی ترمنځ داسې عقیده ده؛ څوک چې پر دغه شپه ښه او ډېر خواږه برابر کړي، نو تر کال همدې شپو ورځو پورې بیا همداسې خواږه خوري، د برات پر شپه ماشومان پټاکۍ ولي او اور لوبې کوي.

فالونه هر ډول مذهبي، اخلاقي، اجتماعي، انتقادي او ټوکي مطالب په خپله لمن کې رانغاړي، دا هم څو فالونه:

د کلي په سپین بامونه
پښې وکاږه را درومه
په دا غره کې ورېښم بوټی
د زدې مور سي چې پر واچوي مخ پوټی

چاودې چاودې پښې
یومن ایرې پکې

او خړ خړ پر له اوړي
که دې صبر ورته وکو لعل به څنډې له در واوړي
شین دې پرتوګ شین دې خت
پر مکه دې اج (حج) قبول

د پښتو ددغه ډول سندرو پر ټولولو استاد حبيب الله رفيع، پروفیسور سیال کاکړ، علي محمد منګل او نورو کار کړی دی.

**ب- چغیان (انګۍ)**: د پښتو د شفاهي سندرو په لړ کې د ولسي سندرو یو ځانګړی فورم دی چې ځانته خاص شکلي او موضوعي خصوصیات لري. دغه سندرې چې تراژیدیکه بڼه لري ناوې یې د ژړا په څپو کې په خاص اهنګ او وزن وایي.

څرنګه چې په پښتنو کې واده د نجلۍ په خوښه نه دی شوی، نو نجلۍ نا راضه وي او پر زړه یې غوټې وي چې د خپل زړه د غوټو د خلاصولو لپاره د ژړا په ترڅ کې همدغه احتجاجیه سندرې (چغیان) وایي. د چغیان ملتیا ناوې د ساز پر ځای په خاص او اهنګ واره ژړا کوي چې ټولې همزولې او خپلوانې ورسره ژاړي، چغیانو ته په ځینې پښتني سیمو کې د (هوی) سندرې وایي او په ځینو ځایونو کې ځینې نور محلي نومونه هم لري.

د کاکړستان په سندریزه سیمه کې دغو سندرو ته د (اله مور) سندرې وایي، خو موږ ته راوړل شوې سندرې د انګۍ او چغیان په نومونو رارسېدلې دي.

لکه دا سندرې:

وروره لاس که په کڅوړه
یو اصیل غمی راباسه
خور دې ځي د بابک له کوره
خورې هوی که غاړه لوی که
اکاګان درته ولاړ دي
اکاګانو زړونه لوی دي

چغیان لکه د اتڼ نارې او د واده د سندرو په څېر سکښت لري او ځینې یې دوه مسره ییز، درې مسره ییز، څلور مسره ییز او تر دې زیات وي چې د مطلب تر بشپړېدو پورې مسرې ډېرېږي او د هر بیت مسرې معمولاً په خپلو منځو کې برابرې دي، دا یې هم څو بېلګې:

زه په خپل کور وم په راحت
بابک کړم خرڅه په ډېر دولت
په پردي کور کې مې نسته عزت
خود به ژړا کړم په هر ساعت
×××
شینکۍ کوتره وم ښورېدمه
نه چا نیومه نه چا کتمه
په هر یو ټکي به پرېوتمه
نن ناولده یې کېنستمه

باید یادونه وکړم چې ځینې څېړونکي چغیان په فورمي لحاظ د ښادۍ په سندرو کې مطالعه کوي، حال دا چې چغیان ځانته خاص فورمي او موضوعي جوړښت لري، چې د پښتني فولکلور په نورو

اصنافو کې نه مطالعه کېږي. دغه سندري چې خاص د ناوې او پېغلو له خوا ويل کېږي، په ټولنه کې د ناوړو شرايطو او د ډېرو زياتو ټولنيزو بې عدالتيو، د ښځو او نرو د حقوقو نه برابرتيا او ښځې ته د انتخاب د حق نه ورکولو زېږنده دي.
چغيان د لومړي ځل لپاره پروفيسور ولي محمد خان سيال کاکړ په خپله يوه وړه رساله کې چې (۴۸) مخونه لري، خوندي کړل، چې دغه رساله پر (۱۹۷۰م) کال په کوټه کې خپره شوې ده.

## اخځونه


۱- هېوادمل زلمی (سرمحقق)، د پښتو ادبياتو تاريخ (لرغوني او منځنۍ دوره) لومړی ټوک، ۱۳۷۹ل کال.
۲- يون محمد اسمعيل، (پوهندوی)، د پښتو شعر هندسي جوړښت، ۱۳۷۷ل کال.
۳- خاورې غوټۍ، د پښتو شفاهي ادبيات، شکل او مضمون، ۱۳۶۲ل کال.

# په پښتو لرغونو ادبیاتو کې مشاعرې



د پښتو منظمو مشاعرو لومړی څرک د پښتو ادبیاتو په لرغوني دوره کې کتلای شو، خو دا مشاعرې د اوسنیو هغو په شان ډله ییزې نه دي او یا هم کېدی شي د ډله ییزو مشاعرو بېلګې تر موږ نه وي رارسېدلي، خو په کلاسیکه دوره کې بیا د ډله ییزو مقیدو مشاعرو بېلګه هم لرو. په لرغوني ادبي دوره کې د ځینو شاعرانو ترمنځ مشاعرې شوي، هغه دا چې یوه بل ته په شعر سره ځواب ورکړی دی. شعر ته په شعر ځواب هم د مشاعرې یو ډول دی، چې د دوو افرادو ترمنځ ترسره کېږي، دلته به ددې ډول مشاعرو څو بېلګې وړاندې کړو:

## د اسمعیل سړبني نارې:

اسمعیل سړبنی د پښتون بابا د کسي د عبدالرشید لمسی و، الله(ج) ده ته ښکاره کمالات او کرامات ورکړي وو، د خدای(ج) په عبادت به بوخت و او دی به د کسي غره ته ته، نو په کال کې به یو ځل د خپل نیکه (بېټ نیکه) لیدنې ته راته او پس له مرګه یې بیا د هغه زیارت ته د زیارت کولو لپاره ورته. ده د خرښبون بابا د یوه

سفر په باب ژوره اند ېښنه څرګنده کړې او هغه سفر ده ته د زغملو نه دی، نو ځکه يې دا سوې نارې له خولې ووتلې:

کـه يـون دی يـون دی مخکـــې بېلتـــون دی
لـه کـسي غـره څـخه ځـــي خربښـــبون دی
کـــه وروره وروره خربښـــــبون وروره
تـــه چې بېلتون کړې زمـــا ويـــر تـــه ګـــوره
چـې ځـې مـرغې له تـــورې کرغـــې لـــه
هـــمزولـــي پـــاتـــه ځـــې څـــه برغـــې لـــه
د خــــدای دپـــاره خربښـــبون پـــــاره
چـې هـېر مو نه کړې زمــــورږ کهـــول واړه
زړه مــــې ويـــلېږي يــــار مــــې بېلېـــږي
بـېلتـون يـې اور دی ځــــان پـــه ســـوځېږي.

د اسمعيل سړبني په غبرګون کې د خربښبون بابا ناره داده:

بېلتانــه نــاره مــې وســوه پــه کــور بانــدې
نــه پــوهېږم چــې بــه څـه پــېښ وي پـه وړانــدې
لـــه خپلوانـــو بـــه بېلېـــږم پـــه ســـرو ســـترګو
دواړه ســـترګې مـــې پـــه وينـــو دې ژړانـــدې
اســـمعيله ســـتا نـــارو مـــې زړګـــی سُـــری کـــځ
بېلتانـــه خربښـــبون بيـــا لـــه تـــا پـــردی کـــځ
نــه هېرېـږي کـه مـې بيـا نـه سـتا يـادی کـځ
پــه چـړو د ويــر بــه پــرې ســي دزړه مرانــدې

ځمــه ځمــه چــې اوږد يــون مــې دی و مــخ تــه
ديـــا نـــه ځـــوری بـــه اچـــوم و تـــرخ تـــه
ستاســې يـاد بـه مـې وي بـس د زړه وسـخ تـه
کـه دا مځکـه غرونـه ټـول سـي لانـدې بانـدې.

## نصر لودي ته د شيخ رضی پاړکی:

شيخ رضي او نصر لودي دواړه د تره زامن وو او پس د تره له مرګه شيخ رضی د سليمان غرونو ته لاړ، هلته يې د خدای عبادت کاوه او خلک به يې د اسلام دين ته دعوتول، نو بيا خلکو د دوی ترمنځ شيطاني وکړه او دوی يې سره بې اتفاقه کړل، نو شيخ رضی لودي نصر لودي ته دا پاړکی وليکه چې ته کافر شوی يې او د اسلام دين دې پرې ايښی دی:

د الحـــاد پـــه لـــور دې ترپلـــل
ګـــروه دې زمـــوږ وکـــوراوه
مـــوږ روڼلـــی پـــه زيارنـــه
تـــا پـــه تـــورو تـــوراوه
لرغـــون ولـــې ګروهېـــدلې
چـــــې دې ګوښـــــې اړاوه
هغـــه ګـــروه دې اوس اړه کـــړ
چـــــې پلـــــرو دې رڼـــــا وه
لـودي سـتا پـه نامـه سـپک شـو
کـــه هـــر ځـــو مـــو درنـــاوه

نصــره نــه مــو يــې لــه کهالــه
لـــودي نـــه يـــې پـــه کـــاوه
زمـــوږ رغـــا ده ســـتا لـــه ګروهـــه
د ورځ لـــــوی پـــــه رغـــــاوه.

خو نصر لودي هم شيخ رضی لودي ته يو پاړکی وليکه او ورته يې وويل چې زه له خپلې عقيدې نه يم اوښتی دا هسې د دښمنانو تورونه دي او ته به بايد د هغوی تورونو ته غوږ کېنږدې:

د الحـــاد پـــه تـــور تـــورن ســـوم
زه لرغـــون خـــو ملحـــد نـــه يـــم
زمـــا دښـــنه هســـې تـــوراکړي
کـــه ملحـــد يـــم د دښـــنه يـــم
لـــــه اســـــلامه نـــــه ترپلمـــــه
تورانـــو څخـــه پـــه ترپلـــه يـــم
ګـــروه مـــې هغـــه لرغـــونی دی
اوس هـــم کـــروړ پـــه لرغونـــه يـــم
د لـــــودي زوی ســـــنتي يـــــم
د حميـــد لـــه لـــوړ کهالـــه يـــم
تـــوراني دښـــن چـــې وايـــي
زه لـــــه ګروهـــــه پـــــه اړه يـــــم
دا يـــې تـــور تاســـې دروهـــوي
زه مـــومن ستاســـې پـــه تلـــه يـــم

د دښـــنو ويـنـــاوې مـــه غـــږه
زه لـــودي يمـــه څـــو زه يـــم.

**د خليل خان نيازي رباعي:**

په لودي دربار کې پښتو ادب او ژبې ته پاملرنه کېدله او شاعران هم ښه پالل کېدل. يوه ورځ خليل خان نيازي د سلطان بهلول لودي په ستاينه کې يوه څلوريزه وويله:

خرې وربخې ژاړي له پاسه
کويله رېغ کا بېلتون له لاسه
يه هغه لوني ګوهر په خول ستا
دا مرحبا کا ستا زمورږ مواسه

سلطان بهلول سم لاسي د خليل خان نيازي په ځواب کې دا لاندې رباعي انشاء کړه:

ملک به زرغون کړم په ورکړه راســه
ګــوره اوربـــځې د داد لـــه پـــاســه
خــول مـــې د عـــدل په درو رونې دی
جــهان بـــه زيـــب مومي زما له لاسه

د پښـتو ادب پـه لرغـونې دوره کـې دغـه شـپږ شعرونه چـې د شـپږو بېلابېلو شاعرانو له خوا ويل شوي او دوو تنو پـه خپـل منځ کې يـوه بـل تـه ويلـي د پښـتو لومړنيـو مشـاعرو بېلګـې دي. البتـه وروسـته مشاعرو بله بڼه خپله کړې چې سربېره پر دوو يا څو تنو، ان لسګونو تنو پـه کـې ګډون کړی، هم مقيـدې مشـاعرې جـوړې شـوي او هـم ازادې، خو په لرغونې دوره کې يې دا څو بېلګې وې چې پورتـه يـې يادونه وشوه.

# په پښتو ادبیاتو کې سروکي او نارې

## الف- سروکی (نیمکۍ):



سروکی یا نیمکۍ یو ډول مرکب یا ولسي شعر دی، چې بېلابېل فورمونه یا شکلونه لري. دا چې د وخت په تېرېدو سره یې بندونه د خلکو له حافظو وتلي دي، یوازې سر یې پاتی دی نو ځکه ورته سروکي وایي او بیا د ولس له خوا په لنډیو بشپړ شوي، چې په پښتني سیمو کې ډېر رواج لري، ځینې ورته سروکي وایي او د پکتیا په منګلو کې ورته پامونه (پام) وایي. په سروکي کې د موضوع له پلوه زیاتره د عشق او مینې مسایل منعکس کېږي او د پښتي سیمو د خلکو داجتماعي، ملي او روحي ځانګړنو عکاسي په کې شوې ده. سروکي سره له دې چې زیاتره برخه یې د پښتو ولسي سندرې پاتې شوې دي، ځینې داسې سروکي شته چې ذوقیانو جوړ کړي دي، دا په پښتو ادبیاتو کې په عام ډول سروکي بلل کېږي.

سروکي په ټولیزه توګه یو بیت لري، د بیت یوه مسره یا نیم بیتي یې اوږده او بله لنډه وي. دا چې سر یا سروکی یې بولي سر زیاتره د مقفی بیت په بڼه وي کله د سر اوږده مسره په اول کې او لنډه مسره

په اخر کې راځي او په ځينو نيمکيو يا سروکو کې لنډه مسره اول او اوږده په پای کې راځي.

کلـه کلـه دواړه مسـرې متحدالوزنـه او متحدالقافيـه وي. د ويلـو ترتيب يې دا دی چې په منځ کې يې لنډۍ يا ټيکۍ راځي او د لنډۍ له لنډې مسرې سره د سروکي لنډه مسره برابرېږي.

دغه لنډه مسره که د سروکي په اول کې وي يا په اخر کې او د لنډۍ له لنډې برخې سره د سروکي هغه جوله چې دواړه مسرې يې سره برابرې دي، دويمه مسره تکرارېږي او د لنډۍ د اوږدې مسرې بيا هماغـه د سر لنـډه مسـره او د هغـه سـروکي چـې دواړه مسـرې يـې برابرې وي، دويمه مسره يا (نيم بيتي) تکرارېږي، وروسته بيا ټول سروکي تکرارېږي.

هغه سروکي چې لومړۍ مسره يې اوږده، دويمه يې لنډه وي، بېلګه يې داده:

سورکی پېزوان دې په کنډو ختلی لمر دی
چا ويل چې مازيګر دی

د لنډۍ اچول:

موسم بهار وخت د ګلزار دی
چاويل چې مازيګر دی
په ما انګار دی چې پردي وطن ته ځمه
چا ويل چې مازيګر دی
سورکی پېزوان دې په کنډو ختلی لمر دی
چا ويل چې مازيګر دی

هغه سروکي چې لومړی مسره یې لنډه وي او دویمه یې اوږده وي، بېلګه یې داده:

خانه راځه دلبره

ډ کې لاری د جینکو لندن ته ځینه

د لنډی اچول:

د جینکو قدر یې کم که

امان الله ته دې خدای لوښې ورکوینه

درې مسره ییز سروکي:

پسې ورجګ کړه سره لاسونه

لـنډ کـړه د ټیکـی مزي دې

خـال بـه دې وران شـي

سروکي په دوه ډوله دي: عام او خاص

**الف- عام سروکي:** دا ویل شوي سروکي هم په عامو کې راځي.

پورې د جانان کډې بار یـږي

ځـم ورسـره ځـمه

کله مې مین زړګی صبرېږي

**۲ - خاص سروکي:** هغه سروکي دي چې یوازې د اتڼ میدانونو کې ویل کېږي، لکه دا:

تا ویشتلی یمه وا بې غوره یاره

خـوب خـوب مـې وړینه

درځـم لـه ګـلـو

اوس به لمن ډکه دروړم د ګلـو

د سروکو په برخه کې ځینو ښاغلو د پام وړ کارونه کړي او د سروکو په راټولولو کې یې زحمتونه ګاللي، لکه، ښاغلي حبیب الله رفیع، پروفیسور محمد نواز خان او داسې نور.
اوس د پښتو ټولنې د فولکلور څانګې د سروکو یوه لویه مجموعه د چاپ لپار تیاره کړې ده.

## ب- ناري یا غړونه:

ناري ملي اشعار او هغه برخه ده چې په کیسو (افسانو) کې راځي او دا اشعار عموماً د بیت په ډول وي؛ ځینې اوږده او ځینې لنډ وي.
د هرې کیسې د ناري یا غړ سېلابونه کله په خپل منځ کې برابر وي او کله نه وي او په کوم شعري بحر پورې مقید نه وي.
ناري پر درېیو غټو برخو وېشل شوې دي:
الف- د اتڼ ناري
ب- تاریخي ناري
ج- د نکلونو ناري
**الف- د اتڼ ناري:** دا ناري په عام ډول د اتڼ په میدانونو کې ویل کېږي. دا ناري په ناسته نه ویل کېږي یوازې په اتڼ کې ویل کېږي او که وویل شي خوند نه لري. دا ناري یوازې د اتڼچیانو له خوا ویل کېږي، د اتڼ ناري د اتڼ له سروکو څخه بېلې دي. دا ناري د ښځو په ښادۍ کې هم ویل کېږي او د نرینه وو په محفلونو کې هم ویل کېږي، خو د ښځو د اتڼ ناري بېلې دي، نرینه هغه په خپلو محفلونو یا اتڼونو کې نه وایي. د اتڼ ناري ډول ډول دي په بېل بېل وزن د اتڼچیانو له حرکتو سره سمې ویل کېږي.

لکه ورو اتڼ، يو بغله اتڼ، دوه بغله اتڼ، چپه اتڼ، راسته اتڼ، په ناسته اتڼ، غلی اتڼ او داسې نور...
د دې هر ډول اتڼ له حرکاتو سره سم ناره له خپل وزن څخه اوړي او په نوي وزن يې وايي. د اتڼ نارې د خپل جوړښت له مخې دوه مسره ييزې، درې مسره ييزې او څلور مسره ييزې وي، خو کېدی شي تر دې زياتې مسرې هم پيدا شي. د قافيې جوړښت، د مسريو لنډوالی، اوږدوالی او هيجايي سيستم يې همډوله دی. په درې مسريزو او څلور مسريزو نارو کې د مسريو د څپو شمېر سره مساوي نه وي، په درې مسريزو نارو کې لومړۍ او درېيمه مسره سره هم قافيه يا هم اهنګه وي، وروستۍ يا درېيمه مسره معمولاً لويه وي او دويمه مسره يې تر ټولو کوچنۍ وي، بېلګه يې داده:

لونګينه پر څنګ څنګ راواوړه
چې دې شرنګ د بنګړو شينه لونګينه

xxx

چتې چې په پښو دې کړې چوتې
ځوانان دې لېوني کړل
زاړه خواران دې وايستل له ګتې

په دې ناره کې (چوتې يا ګتې) د قافيې کلمې دي، لومړۍ مسره يې لس دويمه مسره يې اووه درېيمه مسره يې يوولس څپې ده.
ب- تاريخي نارې: دا يو ډول نارې دي چې د پښتو له اجتماعي، سياسي تاريخ سره اړه لري، دا ډول نارې د هوتکو د پادشاهۍ په واقعاتو، د نادر افشار د راتګ او بيا د لوی احمدشاه بابا د دوران په پېښو پورې اړه لري. دا نارې د ډېرې پخوا زمانې تر پېښو

وروسته له همغه وخت څخه په خلکو کې خورې شوې دي، دا نارې ځينې مهمو واقعيتونو او تاريخي نکلونو ته اشاره کوي.
نارې د جوړښت له پلوه په عام ډول دوه مسره ييزې دي چې يوه مسره يې لنډه وي او بله اوږده وي، خو قافيه يې يوه وي.
بېلګه يې داده:

زمرى دى شاه ولي د جنګ زمرى دى
د سنګرو يې ويستلى مرهتې دى

د فتح کرنګه نال به دې زرين کړم
که دې دا وار فتحه راوړه خپل امېل به ستا د غاړې لونګين کړم

ج- د نکلونو نارې: په پښتو نکلونو کې زياتره د نکل د بيانولو او کيسو په ترڅ کې ځينې منظومې ټوټې هم ويل کېږي چې دا ټوټې د نکل نارې بلل کېږي.
دا نارې دوه مسريزې او درې مسريزې دي او دا کله هم قافيه وي او کله نه وي. لومړۍ او دريمه مسره يې يوه قافيه لري، دويمه قافيه يې هماهنګي نه ساتي. په ځينو درې مسريزو کې درې واړه يوه قافيه نه لري.
بېلګه يې داده:

سر د سره پالنګه هسک کړه فتح خانه
ياغي شوى هندوستان رعيت ملکونه

# اخځونه

۱- پښتو متون، د پوهنوال محمدصابر خويشکي اثر، بېلابېل مخونه.
۲- د شعر هندسي جوړښت،د پوهندوی محمداسمعيل يون اثر، بېلابېلو مخونه.
۳- د پښتو ادبياتو تاريخ لرغوني او منځنۍ دوره، سرمحقق زلمی هېوادمل اثر، بېلابېل مخونه.
۴- قافيه او د پښتو نظم شکل يا ډولونه، پوهنوال جلال الدين اثر، بېلابېل مخونه.

# په لرغوني ادب کې سياسي پېښې



په پښتو لرغوني ادب کې يو زيات شمېر پېښې چې په هغه مهال کې واقع شوي، نه يوازې په پښتو شعر کې د هغو يادونه شوې، بلکې ځينې شعرونه له هغو څخه متاثر شوي دي او يا هم د شعر د ټوکېدو سبب شوي دي. دلته به دې ډول ځينو پېښو ته په لنډيز سره اشاره وکړو.

## ۱- د بابا هوتک سندره کې سياسي پېښه:

کله چې مغولو پر اتغر يرغل وکړ، نو باباهوتک قومونه سره راټول کړل او په سره غره کې يې ورسره مقابله وکړه او هغوی ته يې ماته ورکړه، نو بابا هوتک دغه سياسي او پوځي پېښه په سندره کې داسې څرګنده کړې ده:

پښتنو هلئ پر غره جنګ دی
سور غر په وينو د دوی رنګ دی
مهال د توري دی د ننګ دی
پر کلي کور باندې مغل راغی

ځلمو پر تنګ ځانونه مړه کړئ
دښــن پــه غشــيو مو پېيه کړئ
د پښتونخوا مځکې ساته کړئ
پر کلي کور باندې مغل راغی

## ۲- د امير کروړ ويا ړنه کې سياسي پېښنه:

کله چې د ابوالعباس سفاح له بني اميه سره جګړه وه، نو امير پولاد او امير کروړ په کې هم ګډون کړی و، چې امير کروړ په کې ډېرې سوبې وکړې. امير کروړ ددې جګړې په پای کې څو بيتونه وويل چې سياسي پېښنه يې په لاندې بيتونو کې څرګند ېږي:

د زرنج سوبه مې د تورې په مخ سور وکړه
په باداری مې لوړاوی د کول د سور وکړه
ستر مې تربور وکړه
له ما اتله نسته
خـپلو وګـړو لـره لـور پېـرزويــنه کـــوم
دوی په ډاډ ينه ښه بامم ښه يې روزنه کوم
تل يې ودنه کوم
له ما اتل نسته

## ۳- د شيخ اسعد سوري له خوا د امير محمد سوري په اړه ويرنه کې سياسي پېښنه:

کله چې محمود غزنوي پر غور باندې يرغل وکړ او امير محمد سوري يې بندي کړ، نو هغه له ډېر غيرته په بنديخانه کې مړ شو،

نو شیخ اسعد سوري دغه سیاسي پېښنه په ویرنه کې داسې څرګندوي:

د محمود د ژوبلورو په لاس کنبېوت
چې غزنه ته یې باتلې په تلوار
ننګیالیو لره قید مړینه ده ځکه
ساه یې والوتله هسک ته پر دې لار
تر نړۍ یې غوره خاورې هدیره کا
د زمریو په بیړیو کله وي څوار

## ۴- د ښکارندوی له خوا د سلطان شهاب الدین په اړه ستاینه کې سیاسي پېښنه:

کله چې سلطان شهاب الدین پر هند یرغل کاوه، نو ښکارندوی به هم ورسره د جنګ ډګر ته تلو، نو د سلطان شهاب الدین دغه سیاسي پېښنه یې په لاندې بیتونو کې څرګنده کړې ده:

د اسلام د دین شهاب د نړۍ لمر دی
تورستهان یې کړ رڼا په جهادونه
هره پلا چې دې پر هند و سند یرغل کا
رڼوي توره نړۍ په شهابونه

## ۵- د خلیل خان نیازي رباعي کې د سلطان بهلول لودي په اړوند سیاسي پیښې:

کله چې سلطان بهلول لودي له ډېرو جنګونو وروسته هندوستان ونیو او ۳۸ کاله پادشاهي یې هلته وکړه، نو خلیل خان نیازي د هغه د عدل په اړوند داسې رباعي وویله:

خرې وربخې ژاړي له پاسه
کویله ږغ کا بېلتون له لاسه
یه هغه لوني ګوهر په خول ستا
دا مرحبا کا ستا زمورږ مواسه!

# د امير کروړ د شعر لغوي څېړنه



## لومړی د امير کروړ پېژندنه:

امير کروړ سوري چې په جهان پهلوان يې شهرت درلود، د دويمې هجري قمري پېړۍ د اولې دورې شاعر دی. امير کروړ د امير پولاد سوري زوی دی او امير پولاد په غور کې د ملک شنسب له زامنو څخه و، چې په غور کې يې پادشاهي کوله. امير کروړ پر (۱۳۹هـ.ق) کال د غور په مندېش کې پاچا شو، دی يو تکړه، غښتلی، کلک او مضبوط سړی و، په يوه تن به له سلو تنو سره جګېده، نو ځکه کروړ او جهان پهلوان بلل کېده.
پټه خزانه د تاريخ سوري په حواله ليکي: ((... دا اميران له پېړيو پېړيو څخه په غور کې اوسېدل او د هغه سور اولاده ده چې د سهاک له پښته و.)) امير کروړ د پښتو يو زبردست شاعر تېر شوی دی. داسې ويل کېږي چې يو عادل، ضابط او ښه کلک سړی و او د ښې وينا څښتن و او هر وخت به يې شعرونه ويل، کوم وخت يې چې جنګونو کې ډېرې فتحې وکړې، نو يو ښه شعر يې ووايه چې وياړنه يې بولي. دغه شعر او دې ته ورته اشعارو ته رزمي او فخريه شعرونه هم ويل کېږي. امير کروړ شاعر پر (۱۵۴هـ.ق) کال د فوشنج په جنګ کې وفات شوی دی.

اوس به د امیر کروړ سوري ویاړنه وګورو چې څومره خوږوالی، روانوالی او پوخوالی لري.

زه یم زمری پر دې نړۍ له ما اتل نسته
پر هند و سند و پر تخار و په کابل نسته
بل په زابل نسته
له ما اتل نسته

غشی د من مې ځي بریښنا پر میرځمنو باندې
په ژوبله یو نیم یرغالم پر تښتېدونو باندې
پر ماتېدونو باندې له ما اتل نسته
زما د بریو پر خول تاوېږي هسک په نمنځ و په ویاړ
د اس د سوو مې ځمکه رېږدي غرونه کاندم لتاړ
کړم ایوادونه ویجاړ له ما اتل نسته
زما د توري تر شپول لاندې هرات و جروم
غرج و بامیان و تخار بولي نوم زما په اودوم
زه پېژندوی یم په روم له ما اتل نسته
په مرو زما غشی لوني ډاري دښن راڅخه
د هریرود پر څنډو ځم تښتي پلن راڅخه
رپي زړن راڅخه له ما اتل نسته
خپلو وګړو لوره لور پېرزوینه کوم
دوی په ډاډینه ښه بامم ښه یې روزنه کوم
تل یې ودنه کوم له ما اتل نسته

د زرنـــج ســـوبه مـــې د تـــورې پـــه مخســـور وکـــړه
پـــه بـــاداري مـــې لـــوړاوی د کـــول د ســـور وکـــړه
ستر مې تربور وکړه          له ما اتل نسته
پـر لويـو غـرو مـې وينـا درومـي نـه پـه ځنـډو پـه تـال
نـــړۍ زمـــا ده نـــوم مـــې بـــولي پـــر دريـــځ ســـتايوال
پـــه ورځـــو شـــپو مياشـــتو کـــال- لـــه مـــا اتـــل نســـته

**لغتونه:**

زه- من، د مفرد متکلم ضمير خپل طرف ته اشاره
په- د ربط توري
نړۍ- جهان، دنيا، دارالفنا
له- سربل
اتل- قهرمان
هند- يو اسيايي هېواد
سند- په هند کې د يو ځای نوم
تخار- د افغانستان يو شمالي ولايت
کابل- د افغانستان پلازمېنه
زابل- د افغانستان ولايت
من- عزم، اراده، تصميم، نيت
ميرخمنو- ميرخمن، دښن، دښمن
ژوبله- جنگ، جگړه، يو بل ژوبلول
يونم- متصل ضمير دی، يون په مانا د حرکت، حرکت کوم، تلل کوم

یرغالم- یرغل کوم، تخت و تاز
ماتېدونو- ماتې خوړلي
بریو- د بري، کامیابۍ، کامیابیو، فتحې، سوبې
خول- تاج، جنګي خولۍ
هسک- جګ، بلند، اسمان
نمنځ- افتخار کول، لمانځل
ویاړ- افتخار
سو- پوندې
لتاړ- ګډوډ، تخریب، خرابېدل، له منځه تلل
ایوادونه- هېوادونه، ممالک
ویجاړ- خراب، ړنګ
شپول- حلقه، احاطه
هرات- د افغانستان یو ولایت دی
جروم- د بدخشان ولسوالۍ، ګرمسیر، تراوسه پورې هم د افغانستان سهیلي خواته ویل کېږي.
غرج- غور، د غور پخوانی نوم و
بامیان- د افغانستان مرکزي ولایت دی
اودوم- چاره، علاج، درملنه
پېژندوی- پېژندل شوی، اوښار
روم- د یو هېواد نوم دی اوس د ایتالیا پلازمېنه ده
مرو- ماورالنهر، د آمو سیند پورې غاړه
لوني- شیندي، لونل، شیندل، پاشل، تیتول، مصدر دی
پلن- پیاده، پلی

هریرود - په هرات یا هري کې د یو سیند نوم دی
رپي - رپېدل، لړزېدل
وګړو - وګړي، خلک
لور - مهرباني، شفقت، رواداري، پېرزوینه
ډاډینه - اطمینان
بامم - (بامل یې مصدر دی دا یې متصل ضمیر دی) روزم، تربیه کوم، پالم
روزنه - تربیه کول
ودنه - وده ورکول، روزنه، نشو ونما ورکول
زرنج - د نیمروز مرکز
سوبه - فتحه
مخ سور - سرخرویي، بریالیتوب
کول - نسل
سور - د سور کورنۍ
ستر - لوی، مشر، بزرګ
دریځ - منبر، د درېدو ځای
ستایوال، مداح، ستایونکی

# د پښتو ادبیاتو پر پراختیایي بهیر کورنۍ او بهرنۍ اغېزې



په ټولنه کې چې هره پېښه رامنځته کېږي، که هغه سیاسي پېښه وي، که اجتماعي، که سیاسي او پوځي، ټول په خپل خپل وار پر ادبیاتو او ادبي بهیر تاثیر کوي. په پښتو لرغونو ادبیاتو کې موږ ګورو چې افغانستان ته د اسلام تر راتګ وروسته، سیاسي، مذهبي او جنګي پېښو پر پښتو ادبیاتو خپل خپل تاثیرات پرې ایښي دي. د امیر کروړ له شعره نیولې، ابو هاشم سرواني، شیخ رضی لودي، نصر لودي، اسمعیل او خرښبون، شیخ اسعد سوري، ښکارندوی غوري، شیخ تیمن، بېټ نیکه، شیخ متي، ملکیار هوتک او نورو ټولو په شعرونو کې ټول هغه مسایل بیان شوي چې د بېلابېلو اجتماعي، مذهبي او سیاسي کورنیو او بهرنیو پېښو په نتیجه کې رامنځته شوي دي.

د امیر کروړ شعر د افغاني ټولنې د داخلي تعاملاتو او تحولاتو نتیجه ده. د ابو هاشم سرواني منظومه ژباړه افغانستان ته د اسلام تر راتګ وروسته د مذهبي اخلاقي تاثیراتو نتیجه ده. د شیخ اسعد سوري قصیده بیا د کورنیو جګړو او د پاچایي اوښتون د پېښو

عواقبو له امله رامنځته شوې ده. د ښکارندوی غوري قصیده بیا هم هند ته د افغانانو د فتوحاتو، سیاسي او مذهبي پېښو انځور-ګري کوي، د ملکیار هوتک سندره بیا د مغولو د بریدونو پر وړاندې یو عکس العمل دی، بېټ نیکه په خپلو مناجاتو کې د خدای(ج) دربار ته خپل لاسونه پورته کوي چې د پښتون په نغري کې اور بل کړي او د پښتون قام وګړي زیات کړي. لنډه دا چې په لرغوني ادبي دوره کې چې هره پېښه رامنځته شوې، په یو نه یو ډول یې په ادبیاتو کې انعکاس موندلی او ځینې پېښې بیا داسې دي چې خپله د ادبیاتو د راټوکېدو سبب شوي دي. دا سیاسي، ټولنیزې او پوځي پېښې بیا منځنۍ دورې او وروسته معاصرې دورې ته هم راغځېدلي او هرې پېښې په خپل وخت کې خپل خپل تاثیرات پرېښي دي او ادبیاتو کې یې انعکاس موندلی دی.

د رنسانس تر پیلېدو وروسته په نړۍ کې ځینو اقتصادي او فرهنګي تحولاتو یو په بل پسې د بریالیتوب پړاوونه ووهل. په اتلسمه پېړۍ کې ډېره مهمه پېښه چې په نړیوال ډګر کې یې زیات ارزښت درلود هغه د فرانسې لوی انقلاب و او بیا وروسته په انګلستان کې د صنعتي انقلاب اغېزو هم په ټوله نړۍ کې ځینې اساسي او بنسټیز بدلونونه رامنځته کړل.

کله چې د فرانسې لوی انقلاب (۱۷۸۹) بریالی شو، د افغانستان د حکومت واګې د تېمورشاه په لاس کې وو، که څه هم د فرانسې او افغانستان د ټولنو ترمنځ د اقتصادي او ټولنیزې قانونمندۍ له مخې ډېر توپیر او تفاوت موجود و، تېمورشاه یو مطلق العنان پاچا و، د فیوډالیزم د له منځه وړلو لپاره د فرانسې انقلاب بریالی شو،

دغه انقلاب لکه څنګه چې پر ټوله نړۍ يې اغېزه وکړه همدا راز افغانستان هم ترې بې تاثيره پاتې نه شو.

په هغه وخت کې افغانستان د ځانګړي ارزښت له مخې د ځينو پرمختلليو هېوادونو پام ځانته راوګرځاوه، روسيې او فرانسې په ګډه (۷۰) زره کسيز پوځ ترتيب کړ، بيا يې د زمانشاه دربار ته يو استازی واستاوه، دواړه دې نظر ته رسېدلي وو چې د افغانستان له لارې برياليتوب ترلاسه کړي او د سند له لارې پر هند ورودانګي، خو څنګه چې په خپله زمانشاه د (۵۰) زرو په شاوخوا کې پوځ درلود، ځکه يې د ناپليون غوښتنه ونه منله.

انګليس له فرانسې او روس نه وېره نه درلوده، خو له شازمان څخه يې وېره ځکه درلوده چې د احمدشاه بابا په زمانه کې يې د افغانانو د ننګ او جنګ توره او مېړانه ليدلې وه، نو ځکه يې له يوې خوا قاجاريان او له بلې خوا سکان د هغه پر وړاندې لمسول. د انګرېزانو د همدې مخالفت په نتيجه کې زمانشاه ماتې وخوړه او شامحمود د پرديو او فتح خان په مرسته پاچا شو. د زمانشاه تر ماتې وروسته رنجيت سنګ د پنجاب د استقلال اعلان وکړ او د شلو کالو په موده کې يې اټک کلا، ملتان، کشمير، ډېره غازي خان، ډېره اسمعيل خان او پېښور يو په بل پسې لاندې کړل. تر دې وروسته بيا مشهد او نيشاپور قاجاريانو ونيو د افغان حکمران ميرزا نادر د کورنۍ (۳۸) غړي يې پرته له يوه ماشومه ووژل.

له دې ناوړو حالاتو سره بيا هم پښتانه که له يوې خوا توره په لاس د دښمن پر وړاندې جنګېدل، خو له بلې خوا به عوامي سندرې په دېرو و هوجرو کې د قومي ننګ، پښتونولۍ، تورې او مېړانې په

خاطر د اسلام لپاره د قربانۍ په جذبه ویل کېدلې. ددې تر څنګ د ختیزې کمپنۍ (شرق الهند) اهداف هم خلکو ته څرګندېدل، دا ځکه چې دغه کمپنۍ اوس یوازې یوه تجارتي او اقتصادي کمپنۍ نه، بلکې یوه سیاسي او نظامي کمپنۍ هم وه.

دې کمپنۍ پر پښتنو هر اړخیزه اغېزه وکړه، هم له سیاسي پلوه او هم له اقتصادي پلوه. دغه دواړه عناصرو د خلکو د عامه شعور د بیدارولو لپاره بې تاثیره نه وو.

نامتو مستشرق ((ډار مستېټر)) لیکي: (( پښتو چاربیتې د پښتو یو لیکلی تاریخ دی، چې د دوی د جنګونو او غزاګانو کړه وړه په کې خوندي شوي دي.))

پر حماسي او رزمي چاربیتو سربېره نیمکۍ او لنډۍ هم په دغه دور کې د ولسي پاخون لپاره ویل شوې دي او ددې چاربیتو ډېره برخه مشهور فرانسوي ((ډارمستېټر)) په خپل کتاب (( د پښتونخوا د شعر هار و بهار)) کې راټوله کړې ده. په دغه ملي سندرو کې یوازې د ننګیالیو ستاینه نه ده شوې، بلکې د هغو کسانو غندنه هم شوې چې د پښتنو د دښمنانو ترڅنګ درېدلي دي.

مګر ددغو سندرو روح حماسي رنګ لري او یو ټاکلی زمان په ګوته کوي.

پښتنو که له یوې خوا توره چلوله، نو له بلې خوا یې قلم هم چلاوه او د ځوانانو د احساساتو او جذباتو د یادولو لپاره یې چاربیتې غږولې او کښلې، زه دلته یوه چاربیته د بېلګې په توګه راوړم:

قاصـــده پادشــاه راغـــی یوســفزی ولړزېـــدو
پـــه نیـــت د غـــزا لاړو پـــه نوښـــار ورژېـــدو

قاصـده پادشـاه راغـی رالېږلـی عظـيم خـان
د اولـه يـې جرگـه کـړل ملايـان او ملکيـان...

د پښتنو پـه سياسي سياليو او اتلوليـو کې د ولسي ادب اتلولي د هېرولـو نـه ده، نـو ځکـه زمـوږ د تـاريخ پـه زړه کـې دغـه حماسې، قربانۍ او اتلولۍ نه هېرېدونکې او نه پناه کېدونکې دي. د بېلگې په توگه د هغه وخت يو شعر لولو:

پــه وطــن قربــاني ورکــړه زمــا وروره
رنـگ پـه وينـو پنځـه سـوه ځوانـان گـوره
چـې يـې ځـه قربـاني ورکـړه پـه ميـدان کـې
ننگيـالي پښـتانه هسـې وي هـر کـوره
غـل مـې تـل د ژونـدون مـرگ وي کـه پـوهېږي
که پښتون يې ځان خلاص کړه لـه دې پېغـوره
پـه دښـمن چـې د ځـان وينـه تويـه نـه کـړې
واکـداري د وطــن مــه غــواړه ای وروره
خپلــواکي همــېش پــه تــوره حاصــلېږي
جنـت هـم د تېـغ د سـيوري لانـدې گـوره
کــه پــه عــيش او راحــت ازادي غــواړې
شــرمنده او خــالي لاس بــه ځــې لــه کــوره.

پـه پښـتو لرغـوني، منځنـۍ او اوسنۍ ادبي دورو کـې پـه لسـگونو داسې سياسي، اجتماعي او نورې پوځي پېښې ليـدلای شو چې هم يې پر ادبياتو مستقيم تاثير کړی دی او هم يې زموږ پـه ادبيـاتو کـې انعکاس موندلی دی.

# په پښتو لرغونو ادبیاتو کې حکایت



حکایت د نړۍ د اکثرو ژبو په ادبیاتو کې مطرح دی، خو د فارسي ژبې د کلاسیکو ادبیاتو په بهیر کې په دې ژبه کې زیات ښکاره کېږي، چې د لنډې کیسې، داستان په مانا دی. حکایت د مظومې یا منثورې کیسې له ډلې شمېرل کېږي، هغه څه چې په حکایت کې وي ممکن هغه واقعیت ولري او یا هم له واقعیت څخه خبرې وکړي. یا دا چې خیالي یا ناواقعي وي. یانې هر څه چې بیانوي خیالي وي هېڅ واقعیت ونه لري. د نړۍ کابو هر ولس ځانته خپل نکلونه او حکایات لري او خلک هم نسبت نورو ادبي اثارو ته د حکایاتو له اورېدو او لوستو سره ډېره مینه ښیي.

زموږ په ولس کې هم له ډېرې پخوا زمانې دغه نکلونه موجود دي، چې په کلیو او بانډو کې یې خلک د تفریح د یوې وسیلې په توګه له ویلو او اورېدلو څخه خوند اخلي، اما د پښتو په تحریري (لیکنیو) ادبیاتو کې موږ حکایتي منظوم اثار په لسمه هجري پېړۍ کې مومو. په دغو حکایتي اثارو کې تر ټولو پخوانی اثر د زرغونې پښتو بوستان دی، دغه اثر له فارسي څخه پښتو ته راژباړل شوی، چې زه یې د حکایت یوه نمونه دلته راوړم:

اوربېدلي مې قيصه ده　　　　چې له شاتو هم خوږه ده
په پښتو کې نظم شوی حکايتي اثر د دوست محمد کاکړ (غرغښت نامه) ده، د حکايت نمونه يې داده:
له نېکانو روايت دی　　　　هسې توګه حکايت دی
نورمحمد کاکړ راوي دی　　　　چې يې فيض تل جاري دی

دلته به ددې حکايتونو د شاعرانو د ژوند او بيا د حکايتونو پوره برخه تاسو ته وړاندې کړو.
محمد هوتک په پټه خزانه کې وايي: ((زرغونه د ملا دين محمد کاکړ لور وه، په پنجوايي کې اوسېده او له پلاره يې وکا تحصيل د علومو او د فصاحت احکام يې زده کړل، د فصحاوو اشعار يې ولوستل. زرغونه په حباله د سعدالله خان نورزي وه، چې توريالي زامن يې درلودل او ټول د علم او هنر خاوندان وو، ماته هسې نقل وکا زما پلار چې زرغونې د شيخ مصلح الدين سعدي رحمة الله عليه کتاب د بوستان ټول په پښتو شعر نظم کا او نوم يې و ((بوستان د پښتو)) چې دا کتاب يې پر (۹۰۳هـ.ق) کال پايته ورساوه او ټول نکات عارفانه او نصايح حکيمانه يې په پښتو کړل، سربېره پر دې زرغونې نور اشعار او غزلونه هم وويل او په زمره د فصحاوو يې شهرت وکا، هسې چې موزونانو د روزګار به يې اشعار لوستل او د پښتو په بوستان يې سير کا او ګلونه د پند او نصيحت به يې ټولول. هسې وايي: چې زرغونه کمالداره ښځه وه، خط يې خورا ښه و او کاتبانو به يې له حسن خط، اقسام د خط زده کول. زما پلار هسې وويل: چې په سنه (۱۱۰۲) هجري ما د

زرغوني په خط ((بوستان د پښتو)) وليد ، چې خپل اشعار يې په خپل ښه خط هسې کښلي وو ، چې مغلرې يې خط ته عاجزې کا او دغه حکايت له هغه کتابه زما پلار په ياد و چې زه يې په خزانه کې کاږم:

حکايت له بوستانه د پښتو

اورېدلي مې قيصه ده    چې له شاتو هم خوږه ده
د اختر په ورځ سهار    بايزيد چې و رويدار
له حمامه راوتلی    په کوڅه کې تېرېدلی
ايرې خاورې چا له بامه    راچپه کړلې ناپامه
مخ او سر يې سو ککړ    په ايرو په خاورو خړ
بايزيد په شکر کښو سو    د خپل مخ په پاکېدو سو
چې زه وړيم د بل اور    چې په اور کې سم نسکور
له ايرو به څه بد وړمه    يا به لړ شکوه کومه
هو پوهانو ځان ايرې کړ    له لويني يې ځان پرې کړ
ځوک چې ځان ته ګوري تل    خدای ته نه سي کړای کتل
لويي تل په ګفتار نه ده    لو خبره په کار نه ده
تواضع به دې سر لوړ کا    تکبر به دې تل ځوړ کا.

د پښتو ژبې بل حکايت ويونکی شاعر ملا پيرمحمد دی. په پښتو ادبي تذکره کې دده ذکر داسې کېږي: ((ملا پيرمحمد هوتک د ملا سرور مغفور زوی دی چې ملا سرور له ميا فقيرالله صاحب څخه زده کړه کړې ده او ملا پيرمحمد له خپله پلاره فيض ومونده. د عليين مکان حاجي ميرخان سره په جنګو کې ملګری و ، چې د شاه

ظل الله ورور شاه محمود ادام الله دولتهم اصفهان ته ولاړ، ملا پیرمحمد هم یې هلته وغوښت او له انفاس میمون یې استفاده کا او خلک د خدای شریعت او امام اعظم صاحب مذهب ته رابولي، نقل کا: چې میاجي صاحب له روافضو سره مباحثې کا او په دلایلو علمي دوی ملامت کا چې لکه علمای روم چې په اصفهان کې دي هم د ملا پیرمحمد صاحب عزت کا او «پیر افغان» یې لقب کا، میاجي صاحب له علم اخلاق کې یو کتاب دی چې «القرایض فی رد الروافض» یې نوم دی په افضل الطرایق کې یې دا حکایت کښلی دی چې زه یې له هغه کتابه دلته ثبت کاندم چې په دې کتاب کې یادګار وي.»

حکایت

شیخ متي چې خلیلي و / دی له آر لوی ولي و
یوه ورځ روان پر لار و / لوی ښبتن په استغفار و
کړه ده ذکر د غفار / یو شپه نه و وزګار
پر دې لار وې تیرې ګټې / لارې مځکې وې په بټې
ډېرې شپې راغلې رویدار / چې یې صافه کړله لار
یو دهقان به ابیاري کړه / شپه په شپه به یې خواري کړه
ده به لید په توره شپه / شیخ متي په زیار اخته
له راحته په بېزار و / ټوله شپه به هم بیدار و
یوه شپه راتېر ملیار سو / شیخ متي ته په ګفتار سو
ای د خدای رویداره څه کړې / دومره زور زحمت پر څه کړې؟
ته بادار یې د ولیانو / ته قدوه د صالحانو
ستا د خاورې سره زر دي / د هر چا کجل البصر دي

په شپو شپو يې ته بېخواب | پــــه زحمــــت پــــه اضــــطراب
پـــا کـــوې د لارې گـــټې | پـــه دې خـــاورو څـــه دي گټـــې؟
داســـې ووې شـــيخ مـــتي | د مـــــولا پـــــه عشـــــق پتـــــي
چـــې خـــدمـت د خـــلق الله | يـــو گـــړی پـــه يـــوه ســـاه
تـــر هـــر څـــه بـهـتر دی وروره | زده کـــــړه دا خبـــــره گـــــوره!
ولـــې پـــاتـــه لـــه تـــا نور دي | شـــپې او ورځـــې دې پـــه کـــور دي
څـه جـهاد کړه پر تا فرض دی | دا هــم ســتا د غــاړې قــرض دی
يـــوه ورځ جـــهاد افـــضل | تـــر کلـــو کلـــو لمانځـــل
څوک چې تل لمونځ و روژه کا | پــه جهــاد بــه يــې پــوره کــا
لـومړی شرط د دين همدا دی | بيـــا خـــدمت د خلـــق الله دی
لـه تـا پـاتـه دواړه دي نـــه | ځـــان خبـــر کـــړه ښـــه لـــه دينـــه
تـوره واخـله مـجاهد شـــه | د لـوی خـدای د ديـن قاصـد شـه
د خدای نور پر جهان خپور کړه | دا خـدمت يـې پـه ځـان پـور کـړه
چې دې بـشپړ عبادت شي | ځـان دې خـلاص لـه مصيبت شـي
چې له خوبه ويښ کاکړ سو | د غـــزا پـــر خـــوا نـــومړ ســـو
زغره خول يـې اراسته کړل | د غـــزا غشـــي تېـــره کـــړل
هـرات خواتـه په تلو تلو سو | د ســلطان غيــاث لــه ملــو ســو
وبکـړه هـوري جـهادونـه | د ســلطان مــل شــو پــه ملونــه
څـو هوري تـــر دنيا تـېرسو | د غازيـانو پـه تـول شـمېر سـو
چـې يې هلته هم وفات سو | ښـخ پــه خــاورو د هــرات ســو
مېړه هسې ژوندون کاندي | مــري د خـداى پــه رضـا بانـدې.

د پښتو ادبياتو مشهورې او مهمې ادبي تذکرې پټې خزانې ليکوال محمد هوتک وايي: ((د بابرخان زوی و، چې د کاکړ بابا د زيارت لپاره په کال (۹۱۲) هجري ولاړ هرات ته او بيا چې راغی ړوب ته په کال (۹۲۹) هجري يې يو کتاب په شعر نظم کړ، چې نوم يې دی (غرغښت نامه) دا کتاب چې ما وليدی، شيرين بيتونه په مثنوي لري او د غرغښت بابا قدس الله سره الکريم حکايات دي او له رښتينو خلقو يې روايات راجمع کړي دي. دغه کتاب زما پلار په توبه کې ميندلی و او زموږ کهول کې مو کوچنيو او ژړيو په سبق لوست.))

دوست محمد عليه الرحمه په خپل کتاب کې کښلي: چې زما پلار بابرخان هم يو کتاب په شعر کښلی و، چې نوم يې و ((تذکره غرغښت)) هغه وخت چې بابرخان وفات شو او زه پر کور نه وم، نو هغه کتاب ورک شوی دی او چا ضايع کړی، زه چې راغلم، د خپل پلار په ماتم هسې ويرجن شوم، لکه چې کتاب ورک و، ما خو د هغه کتاب خبرې اورېدلې او په وارو وارو ويلې او هم مې يو څه له هغو څخه په ياد وې، نو ما پر خدای توکل وکا او هغه قيصې او روايات مې بيا په شعر وويل، خدای تعالی دې زما د پلار سعې مشکوره کا:

حکايت له غرغښت نامې څخه

لــــه نېکـــانو روايـــت دی    هســـې توګـــه حکايـــت دی
نورمحمـــد کـــاکړ راوي دی    چې يې فـيض تـل جـاري دی
د نيکونـو لـه خـولې وايــې    چې منښـت يـې راتـه ښـايي
چــې کــاکړ نيکــه زاهــد و    لـوی څښتـن لـه تـل عابـد و
تــل تــر تــل يــې عبــادت کـا    پـر دې ليـار يـې رياضـت کـا
شپې يې روڼې په لمانځووې    پـــه ژړا و پـــه نـــارو وې
نه يې خوب نه يې خوراک و    عبـادت يـې ژونـدو ژواک و
چې بـه کېناست پـه لمانځـنه    يابـــه کېـــوت پـــه ســـتاينه
ورځ يــې ټولــه پــه قعــده وه    شـپه يـې هـم يـوه سـجده وه
تــل يــې ســير د لاهــوت کــا    بـد يـوه ګولـه يـې قـوت کـا
غـرق بـه تـل پـه ذکـرالله و    هـــر ســـبا او هـــر بېګـــاه و
يــوه شــپه يــې عبــادت کــا    پــر ګنــاه يــې نــدامت کــا
سترګې پټې سوې لـه خوبـه    پـه شـپو شـپو يـې و ويښـتوبه
هسې خـوب يـې ولـيـد ګرانـه    چـې غرغښـت ښـيي پنهانـه
وايــــې ای کــــاکړه زويــــه    لـه تـا خـوښ يمـه نېکخويـه
ســـتا قـــدم زمـــا پـــر لار دی    ماســـوا کـــې دې قـــرار دی
شـــپه و ورځ دې ده لمانځنـــه    د څښتـــن عبـــادت کړنـــه.

دغـه راز د پښتـو لرغـوني ادبي او بيـا تـر هغـې وروسـته پـه منځنۍ ادبي دوره کې نور حکايتونه هم شته چې مـا يـې هغـو مشـهورو تـه اشاره وکړه.

# په پښتو لرغونو ادبیاتو کې نږه پښتو کلمې



په پښتو لرغونو ادبیاتو کې داسې سوچه پښتو کلمې شته چې ځینې یې د وخت په تېرېدو سره له استعمال غورځېدلي، خو ځینې یې لاهم په همغه بڼه او شکل تر اوسه کارول کېږي، زه دلته یوازې د همدغو نږه یا سوچه پښتو کلمو یادونه کوم:

| ګڼه | کلمې | مانا |
|---|---|---|
| ۱ | من | اراده، عزم، نیت |
| ۲ | میرڅمن | دښمن، غلیم |
| ۳ | ژوبله | جنګ، یو بل ژوبلول |
| ۴ | یرغالم | یرغل کوم، هجوم کوم |
| ۵ | ماتېدونو | ماتې خوړونکیو، شکست خوړلیو |
| ۶ | خول | د جنګي جامو خولۍ، اوسپنیزه خولۍ |
| ۷ | نمنځ | احترام، تعظیم، ستاینه، درناوی |
| ۸ | ویاړ | افتخار، فخر |
| ۹ | ویاړنه | فخریه |
| ۱۰ | سو | سومان |
| ۱۱ | لتاړ | برهم، خراب، اخته |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۲ | اوجاړ | خراب، ویجاړ، ړنګ |
| ۱۳ | شپول | احاطه |
| ۱۴ | اودوم | علاج، چاره، درملنه |
| ۱۵ | پېژندوی | پېژندل شوی، شناسا ، اوخار |
| ۱۲ | لوني | وروي، خپرېږي، ویشتل کېږي |
| ۱۷ | دښن | دښمن، غلیم |
| ۱۸ | پلن | پلی، پیاده |
| ۱۹ | رپي | رپېږي، رېږدي |
| ۲۰ | زړن | زړور، شجاع |
| ۲۱ | مخسور | سرخرويي، بریالیتوب |
| ۲۲ | کول | خاندان، نسل |
| ۲۳ | لور | پېرزوینه، رواداري، مهرباني |
| ۲۴ | بامم | روزم، تربیه کوم، پالم |
| ۲۵ | ودنه | وده ورکول، روزنه، نشو نما ورکول |
| ۲۲ | ټال | ځنګ ، ځنګېدنه |
| ۲۷ | بولي | يادوي، ګڼي |
| ۲۸ | دریځ | د درېدوځای، منبر |
| ۲۹ | ستایوال | ستایونکی، مداح |
| ۳۰ | ژبور | سخنوران، ژبغړاندي، تېز ژبي |
| ۳۱ | ننلی | زبون، محزون، غمجن |
| ۳۲ | خړو | مجازاً د بدو په مانا |
| ۳۳ | سوني | دروغ |

| | | |
|---|---|---|
| ۳۴ | وبولي | ووايي |
| ۳۵ | تېرون | تجاوز، ظلم، زياتی، تعرض |
| ۳۶ | پرتم | شوکت، مهابت، دبدبه |
| ۳۷ | پاړکي | د شعر ټوټې، سرودونه |
| ۳۸ | ترپلل | غورځېدل، تېښتنه کول |
| ۳۹ | ګروهه | اعتقاد، عقيده |
| ۴۰ | وکوراوه | باطل کړ |
| ۴۱ | زيارنه | کوښښ، زيار، زحمت |
| ۴۲ | وتوراوه | تور وړپوري کړ، تومتي کړ |
| ۴۳ | ګوښې | يوازې، وروسته |
| ۴۴ | اړه | د اړول له ريښې څخه، تبديل |
| ۴۵ | کهاله | خاندان، کورنۍ |
| ۴۶ | رغا | د رغولو په مانا |
| ۴۷ | تورن | تهمت زده، تهمتي |
| ۴۸ | کروړ | ټينګ، محکم، کلک |
| ۴۹ | مه غږه | مه اوره، مه منه |
| ۵۰ | دروهوي | غولوي، دوکه کوي |
| ۵۱ | ناورين | غم، ماتم، مصيبت |
| ۵۲ | سادين | شديارہ کړې ځمکه، اړول شوې ځمکه |
| ۵۳ | نول | پرېشاني،غم |
| ۵۴ | تاخون | ځيګرخوني، د زړه غم، د زړه نول |
| ۵۵ | شهۍ | معشوقه، محبوبه |

| | | |
|---|---|---|
| ۵۶ | پېر | نوبت، دور، گردش، حالت |
| ۵۷ | اغلې | ښکلې، ښايسته، ګلالۍ، منلې، ډولي |
| ۵۸ | اوربل | کورنۍ، مسکن، ځای |
| ۵۹ | کړاوون | وريتول، کبابول، کړه ول |
| ۶۰ | کوکار | فرياد، چيغه، کړيکه، کريږه |
| ۶۱ | زمولوي | پژمرده کوي، مړاوي کوي |
| ۶۲ | اوکوب | شان او شوکت |
| ۶۳ | سکڼي | غوځوي، بياتي کوي |
| ۶۴ | ژوبلور | جنګي، سپاهي، عسکر |
| ۶۵ | ځغلا | تېښته، منډه |
| ۶۶ | ويرژلی | غمجن، ويرغاړی |
| ۶۷ | کراړ | سخت، کلک، مضبوط |
| ۶۸ | ناتار | تاراج، تاړاک |
| ۶۹ | شنار | شوم، نامبارک، خرابي |
| ۷۰ | ترار | ناکراره، وارخطا، ترهور |
| ۷۱ | ټپونه | زخمونه |
| ۷۲ | زګېروی | د ناروغ فرياد، نالښت |
| ۷۳ | مراندې | د خېمې تنابونه |
| ۷۴ | ټکه | صاعقه، تندر، اسماني افت |
| ۷۵ | پلاز | تخت |
| ۷۶ | سما | اصلاح، انصاف، سمونه |
| ۷۷ | ټيکنه | عدالت |

| | | |
|---|---|---|
| ۷۸ | اوخار | ظاهر او ښکاره، څرګند ، معروف |
| ۷۹ | ببړۍ | زولنې |
| ۸۰ | چړتون | قاش یا د تورې پوښ |
| ۸۱ | ساندې | ویر ، ماتم، په مړي پسې ژړا |
| ۸۲ | زرغا | سرسبزي، زرغون، سمسور، غوړېدلی |
| ۸۳ | لاښ | د غره کمر، پاڼ |
| ۸۴ | جوپه | قافله، ډله |
| ۸۵ | تون | ځای |
| ۸۶ | جاندم | جهنم، دوزخ |
| ۸۷ | ټبر | قوم، خاندان |
| ۸۸ | سوراړ | وچه او توره دښته |
| ۸۹ | ویرمن | غمجن |
| ۹۰ | نیلی | آس |
| ۹۱ | لونل | شیندل، پاشل، خپاره کول |
| ۹۲ | جاجي | فکر کوي، سوچ کوي |
| ۹۳ | رامشت | ساز او سرود |
| ۹۴ | بربڼ | لوړ باغ، بر باغ |
| ۹۵ | چندي | شاعر ، ناظم |
| ۹۶ | پیودی | نظم کوي، ځېلوي، ځلوي |
| ۹۷ | اشلکونه | اشعار ، منظوم کلام، شعرونه، نظمونه |
| ۹۸ | وړنګن | وړانګې لرونکی |
| ۹۹ | شڼ | مست |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰۰ | سهان | ځمکه، ځای، هېواد |
| ۱۰۱ | شهابونه | ځلانده ستوري |
| ۱۰۲ | تېرون | د تېرېدل له مصدر څخه تېرېدنه، عبور |
| ۱۰۳ | پرتم | دبدبه، شان، شوکت |
| ۱۰۴ | ایلایي | اطاعت، متابعت |
| ۱۰۵ | ایړ | کښتۍ، د کښتیو یا سمندري پوځ یوه ډله چې د یوه تن تابع وي، کتار |
| ۱۰۶ | سال | میده شګه، سرمه رېګ |
| ۱۰۷ | ختې | البسه، جامې، کالي |
| ۱۰۸ | بټ بېدیا | تود بیابان، سوځنده دښته، میره |
| ۱۰۹ | څنډونه | څنډې، غاړې، افقونه |
| ۱۱۰ | برېځر | ضحی، څاښت، غرمه |
| ۱۱۱ | برمل | ماسپښین، برمهال |
| ۱۱۲ | لرمل | مازیګر، لرمهال |
| ۱۱۳ | سرمل | ماښام، تیاره مهال |
| ۱۱۴ | ورمېږ | مغزی، څټ |
| ۱۱۵ | بمبڼ | د هندوانو پیر، پنډت، برهمن |
| ۱۱۶ | بودتون | بتکده، د بتانو ځای، بتتون |
| ۱۱۷ | نمزدک | مزګټ، مسجد، جومات |
| ۱۱۸ | نست | نابود، نشت |
| ۱۱۹ | زېرمه | ذخیره |
| ۱۲۰ | پاسوال | ساتونکی، محافظ |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۲۱ | پلور | خرخول، قیمت |
| ۱۲۲ | ځری | قاصد ، استازی |
| ۱۲۳ | پنځ | خلقت، پیدا ښت، زیاتېدل |
| ۱۲۴ | سورې | کړیکې، چیغې، نارې |
| ۱۲۵ | باړې | د ګټې غوښتنه، مزد ، اجوره |
| ۱۲۶ | میرڅي | دښمني |
| ۱۲۷ | سود | اطمینان، تسلي، ډاډ |
| ۱۲۸ | سوب | حاضر |
| ۱۲۹ | سوان | سهولت او رعایت |
| ۱۳۰ | نېز | سېلاب، لوی سېلاب |
| ۱۳۱ | اپوټه | پرېشان، پرمخ، لاڵهاند ، ځپلی، سرچپه |
| ۱۳۲ | څورنګ | زخمي، ژوبل، وهلی شوی، ټپي |
| ۱۳۳ | مواسه | محافظ، نګهداره، ساتندویه |
| ۱۳۴ | څرخ | ننوتل، څرخېدل، جګېدل |
| ۱۳۵ | ربل | رواداري، پېرزوینه، لورېینه |
| ۱۳۶ | ښهانه | خوبي، نېکي، ښېګڼه |
| ۱۳۷ | نومړ | نامزد ، نوموړی |
| ۱۳۸ | ملونه | د مل جمع، مله، ملګري |
| ۱۳۹ | بولله | قصیده |
| ۱۴۰ | مکېز | ناز |
| ۱۴۱ | ایواد | اوسنی چې موږ ورته هېواد وایو |
| ۱۴۲ | یون | تګ، حرکت، پرمختګ |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۴۳ | مټ | بازو |
| ۱۴۴ | ستر | لوی، واکمن، مختار |
| ۱۴۵ | ټاټوبی | قرارگاه، کلی، کور |
| ۱۴۶ | کټاره | نېزه |
| ۱۴۷ | کوکې | د ژړا نارې |
| ۱۴۸ | پېلوځې | د اور بلولو خاشې |
| ۱۴۹ | ملوکه | محبوبه |
| ۱۵۰ | هسک | اسمان |
| ۱۵۱ | سټه | بېخ |
| ۱۵۲ | سوبمن | فاتح |
| ۱۵۳ | لوینه | تکبر، لویوالی |
| ۱۵۴ | گواښل | منع کول، وېرول |

## اخځونه


۱- د پښتو ادبیاتو تاریخ، پوهاند عبدالحی حبیبي، بېلابېل مخونه.

۲- د پښتو ادبیاتو تاریخ، لرغونې او منځنۍ دوره، سرمحقق زلمی هېوادمل، بېلابېل مخونه

۳- د پښتو لرغوني متون تدریسي چپتر، د پوهندوی محمداجان حقپال اثر.

# د پټې خزانې پېژندنه



پټه خزانه د هوتکي پاچا اعليحضرت شاه حسين هوتک د پېر نامتو ليکوال محمد هوتک د داود خان هوتک زوی هغه تذکره ده چې په (۱۱۴۱-۱۱۴۲هـ.ق) کلونو کې ليکل شوې او د پنځوسو پښتنو شاعرانو او ليکوالو ژوندليکونه يې د تاريخ د خاورو په زړه کې ساتلي دي.

دغه اثر پر (۱۳۲۲ل) کال لوی استاد علامه پوهاند عبدالحی حبيبي وموند او وروسته يې بيا له پارسي ژباړې سره خپور کړ د پټې خزانې له برکته د پښتو ادبياتو تاريخ ډېرې ورکې خو نامتو څېرې رابرسېره شوې. دا اثر دا زباتوي چې پښتو ژبه لرغوني ادبيات لري، خو د وخت ناخوالو، پېښو او جګړو ورڅخه ډېر څه خوړلي دي، که څه هم د پټې خزانې تر خپرېدو کلونه وروسته يو شمېر پښتو دښمنو او پرديپالو عناصرو پر دغه کتاب بې مانا او بې منطقه نيوکې هم وکړې او ځينو خو لا دا کاذبه دعوه هم کړه چې دغه کتاب ګواکې (جعلي) دی.

علامه حبيبي د محمدهوتک د پټې خزانې پر رابرسېره کولو سره د پښتو ادبياتو په تاريخ کې د يوې داسې څېرې په توګه وپېژندل شو،

چې د پښتو ژبې لرغونی تاریخ یې راژوندی کړ او ټولو پښتنو د لوی استاد عبدالحی حبیبي دغه هڅه ډېره وستایله. د پټې خزانې تر خپرېدو پورې داسې ګومان کېده چې پښتو ادب له بایزید روښان، خوشال بابا او رحمان بابا څخه راپیلېږي، په داسې حال کې چې پټې خزانې ثابته کړه پښتو ادب ډېر پخوانی تاریخ لري. د شلمې پېړۍ له پیله چې د پښتو ژبې او ادب د پرمختګ لپاره یو ملي غورځنګ راپیل شو او یو شمېر فاضلو استادانو ددغې ژبې د ادب د تاریخ تیاره ګوټونه ورونېول، دې مسئلې د ګاونډیو فرهنګونو یو شمېر متعصبو کړیو ته خوند ور نه کړ، د هغوی په نظر پښتو د غرو د خلکو یوه وحشي ژبه ده او که د فرهنګ نړېدلی ځلی یې ودان شي، نو پښتانه به مدني ژوند ته متوجه شي او بلاخره به یې ملي شعور لوړ شي، چې په پای کې به سیاسي واک هم ترلاسه کړي. ددې پروسې د مخنیوي لپاره ایرانیانو او پنجابیانو په یو شمېر دسیسو جوړولو پیل وکړ چې یوه یې هم د پټې خزانې د جعلي والي ډنډوره وه، ، له بده مرغه یو شمېر پښتانه لیکوال هم یا مخامخ یا په ناسیده ډول د دغو ډنډورو ښکار شول، خو له دې هر څه سره سره (پټه خزانه) د ځینو متعصبو او ناروغو کړیو که بهرني وي او که کورني په بابولالو نه شي کېدی چې جعلي وبلل شي. دا هم اړینه ده وویل شي چې پټه خزانه، د افغانستان پښتون قام، پښتو ادب او کولتور به تلپاتې وي او هېڅوک به یې د پرمختګ او ودې مخنیوی ونه کړای شي.

د کتاب نوم:

ددې کتاب په باب راغلي: ((د دې کتاب نوم دی پټه خزانه ځکه چې دلته هغه احوالونه راغلي دي چې پټ وو او نه وو ښکاره.))
دا کتاب یا اثر درې برخې یا درې خزانې لري:
دویمه خزانه د محمدهوتک د معاصرو شاعرانو د احوال په باره کې ده چې د هغو احوال د محمد هوتک په زمانه کې هر چاته یا لږ تر لږه هغو خلکو ته د چا لپاره چې دا کتاب لیکل شوی، معلوم وو، د کتاب په لومړۍ برخه یا لومړۍ خزانه کې یې د (۲۲) شاعرانو احوال راغلی دی او د هغوی بیت (فرد) سندره، نارې، څلوریزه، شعر، ویارنه، سانده، بولله (قصیده)، غزل هغه ټول اصناف یې لیکلي. په دوی کې اسمعیل، خربښون، شیخ متي، شیخ بوستان بړیځ، علي سرور لودي، حمید لودي، عیسی مشوانی، سلطان بهلول لودي، خوشال بابا او رحمان بابا شامل دي.
د کتاب دریمه حصه (دریمه خزانه) کې د مېرمنو ذکر راغلی دی، یوه مهمه خبره دا هم ده چې د محمدهوتک په زمانه کې هره قلمي نسخه پټه خزانه وه، ځکه چې هغه وخت چاپخونې نه وې د اکثرو کتابونو یوه یا څو محدودې نسخې موجودې وې.

## د محمد هوتک د پټې خزانې د نثر بېلګه:

حمد و ثنا هغه خدای(ج) ته چې انسان یې په ژبه او بیان لوړ کا او عزت یې ورکا له نورو حیواناتو په نطق او وینا سره او خپل کلام پاک کې نازل کا په افصح بیان سره چې هغه ابلغ دي له کلامه د کولو بلغاوو او فصحاوو.

ستاینه او سپاس دی هغه خاوند سره چې بې له ده نشته بل خاوند او نه بل بادار د وګړیو ښښتن دی دی چې انسانان په خوږو خبرو پالي او د هرې بلیغې وینا ملهم دی.
درود نا محدود پر هغه پیغمبر، علیه الصلواته و السلام چې موږ ته یې راوښووله سمه لار.
بیت:

دی رهبر د کایناتو تر ده جار سم
دی نامور د مخلوقاتو تر ده جار سم

پټه خزانه له یوې خوا ادبي اهمیت لري، خو له بلې خوا تاریخي اهمیت هم لري، ځکه چې په دغه اثر کې یو شمېر پېښې او حوادث داسې دي چې هغه د افغانستان د تاریخ په باب ځانګړی تاریخي اهمیت لري. د علمي او تاریخي تحقیقاتو په برخه کې دا هم باید په ګوته کړو چې پټه خزانه هم د تاریخي مطالعاتو او هم د تحقیقاتو په برخه کې ډېره مهمه ونډه لري.
محمد هوتک د پټې خزانې په قید یو ادبي علمي او تاریخي کتاب ولیکه چې په پښتو ادبیاتو کې ساری نه لري، دا کتاب راتلونکي نسل ته د ډېر ښه ماخذ او سند حیثیت لري په یوه ځغلنده نظر ویلای شم که چېرې دغه ادبي او تاریخي شهکار په بله ژبه کې وای نو اوس به یې نړیوال شهرت درلود، خو له بده مرغه چې د پټې خزانې اهمیت، ارزښت او ماهیت لااوس زموږ له ډېرو خلکو پټ دی او ډېرو لا ددې کتاب له ګټو ګټه نه ده پورته کړې.

# د امیر کروړ د شعر ویيپانګه



امیر کروړ د امیر پولاد سوري زوی دی. امیر پولاد د ملک شنسب له زامنو څخه و، چې په غور کې یې پاچاهي کوله. امیر کروړ پر (۱۳۹هـ- ۷۵۶م) د غور په مندیش کې پاچا شو. دی یو تکړه، غښتلی، کلک او محکم سړی و، په یوه تن به له سلو تنو سره جنګېده، نو ځکه کروړ او جهان پهلوان بلل کېده.

پټه خزانه د تاریخ سوري په حواله لیکي: ((چې دا امیران له پېړیو څخه په غور کې وو او د هغه (سور) اولاده ده چې د (سهاک) له پښتنه و.)) امیر کروړ د پښتو یو زبردست شاعر دی. وایي، چې دی یو عادل، ضابط سړی او د ښې وینا خاوند و او هر کله به یې شعرونه ویل، هغه وخت چې په جنګونو کې یې ډېرې فتحې وکړې، نو یو زبردست شعر یې ووایه، چې ((ویاړنه)) یې بولي.دا شعر په دې ډول دی:

زه یم زمری په دې نړۍ له ما اتل نسته
پر هند و سند و پر تخار او په کابل نسته
بل په زابل نسته
له ما اتل نسته

غشی د من مې ځي برېښنا پر میرڅمنو باندې
پـه ژوبــله یـونـم یـرغالـم پر تښتېدونو باندې
پر ماتېدونو باندې
لـه مـا اتــل نسته
زما د بریو پر خول تاوېږي هسک په نمنځ په ویاړ
د اس له سو مې مځکه رېږدي غرونه کاندم لتاړ
کړم ایوادونه اوجاړ
لـه مـا اتل نسته
زما د تورې تر شپول لاندې دي هرات و جروم
غرج و بامیان و تخـار بـولي نوم زما په ادوم
زه پېژندوی یم په روم
له ما اتل نسته
پر مروه زما غشي لوني ډاري دښن راڅخه
د هریـرود پــر څنډو ځـم تښتي پلن راڅخه
رپي زړن راڅخه
له ما اتل نسته
خـپلـو وګــړو لــره لــور پـېرزوینه کــوم
دوی په ډاډینه ښه بامم ښه یې روزنه کوم
تل یې ودنه کوم
له ما اتل نسته
پر لویو غرو مې وینا درومي نه په ځنډو په ټال
نړۍ زما ده نوم مـې بـولي پــر دریـځ ستایوال
پـه ورځـو شپـو مـیاشتـو کال له ما اتل نسته

دا شعر د پښتو يو ډېر قيمتي، پوخ او متين شعر دی. د پښتونولۍ د زړورتيا او شجاعت اصلي خيالات په کې ښکاره او څرګند دي. وزن يې هم ملي او د پښتو له خالصو اوزانو څخه دی.

د امير کروړ د شعر له پوخوالي او متانت څخه ثابتېږي، چې پښتو به تر اسلام دمخه هم ښه پوخ شعر او ادب درلود، مګر تر څو پورې چې بله پخوانۍ نمونه نه وي پيداشوې، نو دا شعر د پښتو لومړی شعر او امير کروړ د پښتو لومړی شاعر ګڼل کېږي. شيخ کته په خپل کتاب (لرغوني پښتانه) کې ليکلي دي، چې امير کروړ په (۱۵۴هـ) کې مړ شوی دی.

په دې شعر کې د پښتو ډېر پخواني لغات راغلي دي، لکه:

اتل- نابغه او پهلوان

من- اراده، عزم، نيت

ميرڅمن- دښمن، غليم

ژوبله- جنګ، يو بل ژوبلول

يونم- حرکت کوم، ځم

يرغالم- يرغل کوم، هجوم کوم

اودوم- علاج، درملنه، چاره

دښن- دښمن

پلن- پياده، پلی

زړن- زړور، شجاع

لور- پېرزوينه، رواداري، مهرباني

بامم- روزم، تربيه کوم، پالم

دریځ- د درېدو ځای، منبر
ستایوال- ستایونکی، مداح
ماتېدونو- ماتې خوړونکیو، شکست خوړلیو
خول- د جنګي جامو خولۍ، اوسپنیزه خولۍ
نمنځ- احترام، تعظیم، ستاینه، درناوی
ویاړ- افتخار
ویاړنه- فخریه
سو- سومان
لتاړ- برهم، خراب، اخته
اوجاړ- خراب، ویجاړ، ړنګ
شپول- احاطه
جروم- د جرم جمع، ګرمسېر، تراوسه پورې هم د افغانستان سهیلي خواوو ته ویل کېږي، چې د کندهار سهیل لویدیځ او د هغه له شګلنځي نه پیل بیا تر سیستان او چخانسور پورې رسېږي.
غرج- غرجستان، چې د غور او هرات له شمال نه پیل تر آمو پورې او په لویدیځ کې تر مرغاب او ماورالنهر پورې رسېږي او په ختیځ کې له بلخ سره نښلي.
پېژندوی- پېژندل شوی، شناسا، اوڅار
لوني- اوري، خپرېږي، ویشتل کېږي
رپي- رېږدي، رپېږي
مخسور- سرخرويي، بریالیتوب
کول- کهول، کورنۍ، خاندان، نسل
ودنه- وده ورکول، روزنه، نشو نما ورکول

ټال- ځنډ، وخت
بولي- یادوي، ګڼي.
سوبه- فتحه، فتح
بری- کامیابي
بادار- ښاغلی
لوړاوی- لوړ، جګ
ډاډینه- اطمینان
هسک – اسمان
زرنج- د نیمروز مرکز دی.

# د پښتو ژبې شعري فورمونه



دلته هغه ډول شعري فورمونو ته اشاره کوو چې له عربي ژبې څخه پښتو ته راغلي دي او یا هم اوس په پښتو او عربي دواړو کې مشترک ګڼل کېږي.

**۱ - غزل**: د ښځو له خبرو نه خوند اخیستل او یا هم له ښځو سره مخامخ خبرو کولو ته غزل وایي. له عربي ژبې څخه پښتو ادب ته د راغلو (۱۳) جوړښتونو څخه یو غوره فورم هم دی. غزل مطلع لري یانې د سر بیت یې مقفی او د دویم هر بیت مسره یې قافیه لري او د مطلعې قافیه تعقیبوي.

غزل دوه ډوله خبرې کوي، ډېرې داسې غزلې راغلي چې لومړي بیتونه یې د مستۍ او خوشالۍ سترګک وهي، خو د منځ بیتونه یې د ویر نارې وهي، د غزل بیتونه له (۵-۱۵) پورې وي.

د عربي (۱۳) شعري جوړښتونه په دې نومونو یادېږي، غزل، مستزاد، مثلث، مربع، مخمس، رباعي، قطعه، قصیده، مثنوي، مسدس، ترجیح بند، ترکیب بند، معشر او...

**بشپړ ازاد شعر**: په دې شکل کې یوه ټاکلې موضوع انځورېږي هر څومره چې زیات لیکل کېږي یا کم، قید نشته ورته خو شرط دادی چې وزن باید ولري.

**۲ - مثنوي**(دوه ییز): دغه جوړښت په خپل منځ کې ګډه قافیه لري، وزن او څپې یې برابر دي، ډېرې اوږدې موضوعګانې په کې نغښتل کېږي، د مومن خان او شېرینی، یوسف خان او... داستانونه هم په همدې فورم کې نظم شوي دي.

**۳ - مثلث**(درې ییز): هر بیت یې (۳) مسرې لري د لومړي بیت درېواړه مسرې یوه قافیه، یو وزن لري او د نورو بندونو هر لومړي بیتونه په خپل منځ کې قافیه لري او د درېیمې مسرې قافیه یې له مطلعې سره یوشان وي.

**۴ - رباعي**: په سپین مخ کې د زنې په منځ شین خال وار له واره د سترګو ځیر ورکش کوي، رباعي هم همداسې تل جذابه وي، له عربي ژبې څخه پښتو ادب ته راغلې او په پښتو کې ورته څلوریزه ویل کېږي. ددې فورم څلورواړو مسرو د څپو شمېر سره مساوي وي. د څلوریزې لومړی بیت مقفی وي، درېیمه مسره یې قافیه نه لري، د څلورمې مسرې قافیه د مطلع قافیه تعقیبوي، د غزل په شان یې ردیف اختیاري وي.

**۵ - قطعه**: دا شکل هم له عربی څخه راغلی، د څلوریزې په شان څلور مسرې لري توپیر یې یوازې دا دی چې په رباعي کې لومړی بیت مقفی وي یانې دواړه مسرې سره خپلو کې قافیه لري او یو ډول قافیه تعقیبوي او د درېیم بیت دویمه مسره ورسره قافیه کې ګډه وي، خو په قطعه کې د لومړي بیت لومړۍ مسره او د دویم بیت وروستۍ مسره سره یوه قافیه لري او دواړه لومړۍ مسرې قافیه نه لري.

**۶- قصیده**(بولله): د قصد کولو مانا لري او همدارنګه د قصد له مصدره جوړه شوې، مانا يې استقامت، اتصال، سموالی، برابري او سپېڅلتوب ده، د بيتونو شمېره يې له(**۱۵**) څخه کم نه وي او تر دوه سوه هم زيات بيتونه لري. د غزل په څېر د سر لومړی بيت يې مقفی او د نورو بيتونو دويمه مسره يې د مطلعې قافيه تعقيبوي، پخوا قصيدو درې برخې درلودې، ګريز، حسن تعليل او دعايه. هره قصيده چې دا درې برخې ولري په تول او وزن پوره قصيده بلل کېږي. په پښتو کې لومړی قصيده شيخ اسعد سوري ليکلې ده.

**۷- مستزاد**: دا شکل د رباعي، غزل يا قصيدې پر هره مسره باندې چې يوه لنډه مسره ورزياته شي مستزاد ګڼل کېږي او لويه مسره د مانا په لحاظ کوچنۍ مسرې ته اړتيا نه لري، ځکه چې ټوله مانا په لومړۍ مسره کې بشپړه وي.

**۸- مخمس**(پنځه ييز): په دغه شعري جوړښت کې هر بند پنځه مسرې لري، د لومړي بند پنځه واړه مسرې يوه قافيه لري، د نورو بندونو څلور مسرې خپل منځ کې يوه قافيه تعقيبوي، خو پنځمه مسره بايد د لومړي بند قافيه تعقيب کړي.

**۹- مسدس**(شپږيز): د شعر دا فورم شپږ مسرې لري، د سر لومړی بند يې ټول تال يو شان قافيه لري د نورو بندونو پنځه مسرې په خپل منځ کې هم قافيه او هره شپږمه مسره يې په قافيه کې د لومړي بند د مسرو د قافيې تابع ده او سېلابونه يې مساوي وي.

**۱۰- مسبع**(اوه ييز): له نوم څخه يې معلومېږي چې اوه مسرې لري، د لومړي بند ټولې مسرې يې په قافيه کې يو شان وي او د

نورو بندونو شپږ مسرۍ يې يو ډول قافيه لري، خو د پای مسره يې د لومړي بند د مسرو د قافيې تابع وي.

**۱۱ - مثمن**(اته ييز): هر بند يې اته مسرۍ لري، اته واړه مسرۍ يې په خپل منځ کې يو ډول قافيې لري رديف په کې په خپله خوښه دی، د نورو بندونو اتمه مسره يې د لومړي بند قافيه ګوري، خو نور بندونه يې په خپل منځ کې يوه قافيه لري.

**۱۲ - معشر**(لسيز): دا جوړښت لس مسرۍ لري، د لومړي بند لس واړه مسرۍ يې په خپل منځ کې مقفی وي، د نورو بندونو(۹) مسرۍ يې په خپلو منځو کې هم قافيه وي او لسمه مسره يې د لومړي بند مسرو له قافيو سره يوشان وي، ټولې مسرۍ يې يو واحد وزن تعقيبوي.

**۱۳ - ترجيح بند**: دا هغه نظم دی چې لومړی څو بيتونه وويل شي بيا ورپسې يو مقفی بيت ورلوېږي او په دې ډول يو بند جوړوي. همدا ډول بيا بل بند پيلېږي او بيا ورپسې همدا مقفی بيت تکرارېږي. په ترجيح بند کې د هر بند لومړی بيت مقفی وي او د نورو بيتونو دويمې مسرۍ يې قافيه لري او لومړۍ مسره يې بې قافيې وي، د بندونو د بيتونو شمېر يې سره مساوي وي.

**۱۴ - ترکيب بند**: ترکيب بند دی چې څو مقفی مسرۍ سره يو بند جوړوي بيا وروسته يو بل مقفی بيت ورلوېږي چې ددغه وروستي بيت قافيه د لومړي بند له قافيو سره يوشان وي همدا شان وروسته نور بندونه راځي چې هر بند ځانته قافيه لري او په پای کې چې کوم مقفی بيت راځي د هغه قافيه هم خپلواکه وي او د لومړي بند د

وروستي بيت سره قافيه کې يوشان وي او نه يې هم قافيه د خپل بند تابع وي، خو د ځېو شمېر يې باید تر پایه توپیر ونه لري.

**۱۵ - ټول قافیز نظم**: دا هغه ډول شعري چوکاټ دی چې هره مسره يې قافيه ولري او ټول مسرې يې يوه قافيه تعقيبوي. کوم فورمونه چې له عربي ژبې څخه پښتو ته راغلي دغه فورم په کې نه ښکاري، شاید چې دغه فورم په عربي کې نه وي.

## اخځونه

۱ - د پښتو شعر هندسي جوړښت، د پوهندوی محمد اسمعیل یون اثر، بېلابېل مخونه.

۲ - یو شمېر بېلابېلې وېبپاڼې.

# په پښتو لرغوني ادب کې ویاړنه



هره ژبه او ادبیات ځانته تاریخ لري، نو پښتو هم یوه لرغونې ژبه ده او اوږد تاریخ لري، چې زیاتو شاعرانو او ادیبانو په کې خپلې خوږې ملغلرې پېیلي، هر ډول نظم او نثر یې په کې ویلی او لیکلی دی او د خپل زړه او قلم تنده یې په کې ماته کړې ده. ما د دوی له لیکنو او ویلو څخه تاسو ته د ویاړنې په باب یو څه معلومات راټول کړي چې په لاندې ډول دي:

## ویاړنه:

ویاړنه د پښتو نظم له مانیزو (معنوي) ډولونو څخه ده. ویاړ د ویاړل له مصدر څخه دی چې د افتخار او فخر کولو په مانا دی. ویاړنه هغه ادبي کلام دی چې شاعر د خپل ولس، خلکو، وطن او ژبې د سرلوړي، پرمختګ او لوړوالي په برخه کې ویلی وي او یا دا چې شاعر داسې شیان، الفاظ، موضوعات او کلمات په خپل کلام کې بیان کړي چې وویاړي او افتخار پرې وکړي، نو په پښتو لرغوني ادب کې ویاړنه همغه د پښتو لومړنی شعر دی، یانې د امیر کروړ سوري غوري شعر دی چې د اسلامي دورې تر لومړیو کلونو (۱۳۹هـ.ق) څخه وروسته ویل شوی دی. کله چې د عباسي دعوت

په جنګونو کې امير کروړ سوري ډېرې سوبې وکړې نو همدا ویاړنه يې وويله چې پټې خزانې تر موږ پورې رارسولې ده. پټې خزانې دا متن د شيخ کته متي زي له لرغوني پښتانه نومي کتاب څخه اخيستی چې د هغه ماخذ محمدهوتک د محمدبن علي البستي کتاب (تاريخ سوري) ښودلی دی، خو د تاريخ سوري ماخذ معلوم نه دی. په هر صورت تاريخ سوري چې پر (۷۵۰هـ.ق) کال په خپلو پاڼو کې ځای ورکړی دی، کېدی شي په شفاهي ډول د خلکو په منځ کې خور راغلی وي او د راويانو حافظو تر محمدبن علي البستي پورې رارسولی وي، چې دا عنعنه تراوسه پورې په موږ کې موجوده ده او د پښتو ډېر اشعار په کليو او بانډو کې په پېړيو پېړيو سينه په سينه انتقال شوي او انتقالېږي.
استاد حبيبي دې ته يو مستند متن ويلی دی، وايي: ((چې د انتقال او ضبط روش يې د شرقي څېړنو له معمولو روشونو سره سل په سلو کې موافق دی.)) دا وياړنه د خپل زمان له روحيې سره برابره ايجاد شوې ده، ددې وياړنې شکلي جوړښت نه د شرق له دېواني شعري ډولونو لکه قصيده، غزل، ترکيب بند، ترجيع بند، مخمس او نورو سره يوشان والی لري او نه سل په سلو کې د پښتو شاعرۍ له خپلو ملي ډولونو سره لکه چاربيته، بدله، بګتۍ، لوبو او کسرونو يوشان والی لري، نو ځکه استاد حبيب الله رفيع دغه ډول سندرې د پښتو لرغونې سندرې بللي دي او وايي: (( دا ډول سندرې د زړو اريايي سندرو او د پښتو د ولسي سندرو ترمنځ د اتصال يوه کړۍ ده.)) خو استاد محمد صديق روهي وايي: (( دا وياړنه د اوستا، زاميادیشت، مهريشت او د ريګويدا له ځينو سندرو سره

پرتله کېدی شي.)) همدارنګه په دې سندره کې داسې لغات او ترکیبونه شته چې هغه یوازې د پښتو ژبې دي او د نورو ژبو لکه عربي او پارسي تر تاثیر لاندې نه دي، دا چې دا ویاړنه څه دپاسه دولس نیم سوه کاله مخکې ویل شوې ده، نو ځینې هغه لغات په کې دي چې په عامه پښتو کې اوس متروک دي او امکان شته چې د پښتو په ځینو غرنیو لهجو کې لاتراوسه موجود وي او دا ویاړنه خپله رواني ژبه لري چې بېلګه یې شته او له دې ویاړنې څخه د علامه حبیبي په وینا د امیر کروړ مینه او لېوالتیا له خپل ټبر سره څرګندېږي، نو زه د دې ویاړنې یو څو بیتونه د نمونې په ډول له پټې خزانې څخه ستاسو مخ ته ږدم:

زه یم زمری پر دې نړۍ له ما اتل نشته
په هند و سند و پر تخار او په کابل نشته
بل په زابل نشته
له ما اتل نشته
غشي د من مې ځي برېښنا پر میرځمنو باندې
پر ژوبله یونم یرغالم پر تښتېدونو باندې
پر ماتېدونو باندې
لـه مـا اتـل نـشـته
زما د بریو پر خول تاوېږي هسک په نمنځ په ویاړ
د اس له سو مې مځکه رېږدي غرونه کاندم لتاړ
کړم ایوادونه اوجاړ
لـه مـا اتـل نـشـته

تـر دې ویـاړنې وروسـته پـه پښـتو ادب کـې بلـه ویاړنـه د ملکیـار غرشـین ده چې پـر (۵۷۱هـ.ق) کـال کله چې سـلطان شـهاب الـدین غـوري پـر ملتـان حملـه کـړې وه، نـو دغـه ویاړنـه هـم زمـوږ د ادبـي مورخـانو پـه اثـارو کـې د هغـه وخـت ویاړنـه ګڼـل شـوې ده، چـې دا ویاړنـه د اسـلام د خپرېـدو او اسـلامي فتوحـاتو پـه ملاتـړ کـې ویـل شـوې ده. د اسـلامي فتوحـاتو سـتاینه یـې کـړې ده او د اسـلامي لښکرو د هڅولو، یادولو او د دوی د روحیې د لوړولـو هڅـه پـه کـې شوې ده او د کروړ د ویاړنې غوندې د پښتو پـه لرغونـو سـندرو کـې راځي. د ملکیار غرشین دا ویاړنـه د پښـتنو قومونـو د حماسـیاتو او رزم رنګ لري، د هغو سندرو له ډلې څخه ده چې پښتانه پښـتنو به د جګړې پر میدان ویلې او مقصد یـې د زلمـو د احساسـاتو تـاوده ساتل وو، چې ښه جنګ وکړي. دا ویاړنه د پښتو سوچه لغـات لـري. همدارنګه لکه نور ګڼ اشعار یو تکرارېدونکی غبرګون لـري چـې د هر بند په اخر کې ویـل کېـږي او دا د پښـتو یـو ځانګړی خاصـیت دی چې په نورو ژبو کې نه شته. په دې ویاړنه کې شاعر ځان یو مبلغ راپېژني چې دده وینا پر اورېدونکو باندې اغېزه وکړي او د سندرې مقصد حاصل شي او دا ویاړنه د کـروړ تـر ویـاړنې وروسـته لـومړنۍ جنګي اثر دی. دا سندره د سلیمان ماکو په تذکره کې راغلې ده. زه غواړم ددې سندرې یوه برخه راوړم:

ښـتن مو مل دی　　اوس مو یرغل دی　　ایواد د بل دی

غـازیـانو ګـورئ

ښـتن مو مل دی

توري تېرې کړئ　　دښـن مو پرې کړئ　　منګولې سرې کړئ

څـه لـه بــه تښـتو
ښتـن مو مـل دی
که ټینګ کړو زړونه پــر بــري يــونــه چې زمري يونه
اسلام راڅخه دی
ښتـن مو مل دی
غازيانو راسئ تـول شاوخوا سئ د شهاب په ملا سئ
ښتـن مو مل دی

د ملکيار بابا تر ويـاړنې وروسـته زمـوږ په لرغـوني پښتو ادب کې بله د هوتک بابا هغه سندره ده چې کله چنګېزي يرغلګرو پر سور غره يرغل وکړ، نو د هوتک بابا ډېر خپلوان په کې مړه شول نو ده دا سندره په لوړ اواز وويله او پر غشو يې د مغولو ټټرونه څيـرې کړل، همدارنګه دا سندره چې غښتليو مېړو اورېدله په جنګ تويېدل تـر څو چې سور غر يې د مغولو په وينو رنګ کړ او ټول يې پوپنـاه کـړل. همدارنګه باباهوتک لـومړی سړی دی چې د مغولـو پـه مقابـل کـې يـې دا وياړنـه پـه خونـد ويلـې ده. هوتـک بابـا تـه د وخـت د ټولـو شـاعرانو پېشـوا ويـل کېـږي. ددې ويـاړنې ژبـه خـوږه خـو ډېـره زاړه لغـات نـه لـري او د شعر شـکل پـه کـې حماسي او سـاده دی. لـه دې ويـاړنې څخـه د شـاعر او د هغـه وخـت پښـتنو وطنـي احسـاس او د مينـې د سـاتنې تـاوده احساسـات ښـکاري، چـې دغـه افکـار هـم د مغولي دورې د پښتو شعر ځانګړنې دي او تر (۱۰۰۰هـ.ق) پورې په پښتو شعر کې خوندي شوې دي. دا وياړنه په پټه خزانه کې راغلې ده او د پټې خزانې مولف محمد هوتک له خپل پلار څخه نکل کړې ده چې زه به يې څو بيتونه په دې ځای کې راوړم:

آ د مرغـــــــــې غښـــــــتليو راســــــئ
پــــر ننــــګ ولاړ د پښــــتونخوا ســــئ
تــــورې تېــــرې غشــــي تــــر مــــلا ســــئ
پــــر کلــــي کــــور بانــــدې مغــــل راغــــی

زمــــــا د زلمــــــو وينــــــې بهېــــــږي
ځمکــــې او غرونــــه پــــه ســــره کېــــږي
ميرڅــــــــی ځغلــــــــي او ترهېــــــــږي
پــــر کلــــي کــــور بانــــدې مغــــل راغــــی

زلمــــو پــــر ننــــګ ځانونــــه مــــړه کــــړئ
دښــــن پــــه غشــــيو مــــو پييــــه کــــړئ
پــــر پښــــتونخوا ځانونــــه مــــړه کــــړئ
پــــر کلــــي کــــور بانــــدې مغــــل راغــــی.

دا وې د پښتو په لرغوني ادب کې ويارنې چې ما بيان کړې، کېدی شي چې نورې هم موجودې وي. دا هم څرګنده ده تر دې دورې راوروسته په منځنۍ او همدارنګه په معاصرو دورو کې هم زموږ زياتو شاعرانو ويارنې ويلي دي. لکه خوشال بابا، د هغه د کورنۍ شاعرانو او نورو، خو ما يوازې د لرغونې دورې ويارنو ته اشاره وکړه چې ګران استاد پوهندوی محمد اسمعيل يون راته د کورنۍ دندې په توګه راسپارلې وه.

## اخځونه

۱- هوتک محمد ، پټه خزانه، ۱۳۸۹ل کال، مومند خپرندویه ټولنه.
۲- حبیبي عبدالحی، د پښتو ادبیاتو تاریخ، ۱۳۸۴ل کال.
۳- هېوادمل زلمی، د پښتو ادبیاتو تاریخ لرغوني او منځنۍ دوره، ۱۳۷۹ل کال.
۴- ارزومند محبوب شاه، د پښتو نظم کلاسیک ژانرونه، ۱۳۸۹ل کال، ګودر خپرندویه ټولنه.

# د پښتو ادب د لرغونې دورې پیل او پای

## لرغونې دوره:



پخوانۍ دوره چې په هغې کې قبیلوي نظام مسلط ښکاري تر شپاړسمې میلادي پېړۍ پورې دوام کوي. د تحریري اسنادو له مخې په ادبي تاریخ کې دغه دوره له امیر کروړ پیلېږي او د بایزید روښان تر ظهور او پاڅون پورې رسېږي. په شپاړسمه میلادي پېړۍ کې د پښتونخوا په ختیزه برخه کې د هند مغلي سلطنت په زمانه کې فیوډالي تولیدي مناسبات منځته راځي او په ادبیاتو کې هم بدلون لیدل کېږي. پخوانۍ دوره د ټولنیزې ارواپوهنې او فرهنګي عنعنې له پلوه د ریګویدا او اوستا له سندرو او ګاڅونو سره ورته والی لري، د ځینو ادبپوهانو په عقیده د ریګویدا او اوستا د سندرو او کاڅونو او د پښتو د لرغونو سندرو موضوعګانې او قالبونه سره ورته دي، د پخوانې دورې عمده موضوعګانې د نمانځنې سندرې، ویاړنې، ویرنې، مینه، بېلتون او اخلاقي ښوونې دي چې په هغو کې سپېڅلي تخیلات او لفظي صنایع نه لیدل کېږي. د غوریانو د واکمنۍ په دوره کې د قصیدې جوړونه یو نوی پړاو ګڼل کېږي، ځکه چې په دغو قصیدو کې د شپنو شعر سره فاصله منځته راغلې ده، که څه

هم قصيدې له درباري ادب سره نږدېوالی لري، خو په هغو کې د کوچيانو سندرو روحيه هم ساتل شوې ده. د پښتو قبيلو مشران او واکمنان د يووالي او قبيله يي قدرت د سمبولونو په توګه ستايل شوي دي، که دغه قصيدې د هغه وخت له عربي او فارسي قصيدو سره پرتله شي، نو د هغوی ترمنځ د قالب او محتوا له پلوه جوت توپير ليدل کېږي، د پښتو واکمنان د قومي يووالي د سمبولونو او خواخوږو دوستانو په توګه ستايل شوي دي، شاعر نه د صلې او انعام د اخيستلو لپاره شعرونه وايي او نه په ستاينه کې له اغراق نه کار اخلي په داسې حال کې چې د فارسي ژبې شعر د عربي شعر د وزن پيروي کوي، د پښتو شعر د لرغونو آريايانو د سندرو وزن ساتي، تراوسه پورې پښتو شعر همدغه خصوصيت ساتلی دی، يانې د شعر وزن د څپې او د هجاوو د شمېر پر اساس ټاکل کېږي.

د امير کروړ شعر چې لرغونې دورې پورې اړه لري يو قديم شعر دی، چې له پټې خزانې څخه موږ ته لاسته راغلی دی.

د امير کروړ شعر چې وايي:

زه يم زمری پر دې نړۍ له ما اتل نسته

پر هندو سندو پر تخار او پر کابل نسته

دا د پښتو زوړ شعر دی چې د دويمې هجري پېړۍ له لومړۍ برخې څخه راپاتې دی، له ظاهري پلوه يانې د ژبې، ادا، لغاتو او کلماتو له مخې مخصوص رنګ او زموږ د اوسنۍ ژبې له محاوروي جريان سره توپير لري. ډېر داسې لغات په کې راغلي چې اوس متروک او مهجور دي او په عمومي محاوره کې نه استعمالېږي. ددې شعر له لساني پلټنې څخه سړی دا نتيجه اخيستلای شي چې په دغه

لومړنۍ دوره یانې په هجري دویمې پېړۍ کې پښتو ژبه په غور کې د نورو ژبو له اختلاطه سوچه وه، په دغه شعر کې یو عربي او فارسي لغت هم نه شته. د روښانیانو له تحریک سره سم د پښتو ادبیاتو دویمه دوره پیلېږي، پر پښتو ژبه ګڼ شمېر مذهبي تاثیرات او د عربي ژبې ژبنۍ اغېزې لیدل کېږي.

## اخځونه

د پښتو ادبیاتو تاریخ لرغوني او منځنۍ دوره، دویم ټوک، د سرمحقق زلمي هېوادمل اثر.
د پښتو ادبیاتو تاریخ، دویم او لومړی ټوک، د عبدالحی حبیبي اثر.

# د پښتو لرغونو ادبیاتو فزیکي جغرافیه



کله چې سړی د موجودو او لاسته راغلو پښتو ادبي اثارو پخواني اسناد مطالعه کوي، نو ښکاري چې دغه لومړني اثار په ځینو داسې مرکزونو کې ایجاد شوي دي، چې هلته د پښتنو خپل محلي حکومتونه او قبیله یي نظامونه وو او پښتانه هلته د خپل ملي هویت او سیاسي اقتدار خاوندان وو.

په دغو مرکزونو کې لرغونی مرکز او د پښتنو پخوانی ټاټوبی غور دی، بل مرکز یې د کسي غره لمنې دي او دریم یې هم ملتان دی، خو مخکې تر دې چې په دغو دریو مرکزونو کې د پښتو پر ایجادي ادبیاتو خبرې وکړو، بهتره به وي دا خبره له یاده ونه باسو چې د دویمې هجري پېړۍ شاوخوا په غزني کې د لویکانو شاهي کورنۍ موجوده وه چې تر ګردېز او زابلستان پورې سیمې یې په ولکه کې وې او د منطقې له سیمه ییزو شاهي کورنیو سره یې روابط هم درلودل. د غزني د لویکانو د کورنۍ د یوه لویک یو پښتو بیت موږ ته رارسېدلی دی.

**غور**: غور د افغانستان یوه لرغوني او تاریخي سیمه ده چې د پاچاهیو سلسلې په کې تېرې شوي او ددې سیمې پاچاهانو د اسلام

د مقدس دين د خورولو په چارو کې هم لويه برخه درلودلې ده، نو لومړی لاسته راغلی شعر د غور په مند پش کې و، دغه د غور سوري شاهي کورنۍ په تاريخونو کې د شنسبانيانو په نامه هم مشهوره ده او دا ځکه چې ددې کورنۍ يو مشر نيکه شنسب (شن اسپ) نومېده، چې د پلار نوم يې خرنک و، دا شنسب د حضرت علي(رض) په زمانه کې مسلمان شوی او د غور پاچا منل شوی دی.
د شنسب زوی امير پولاد و، چې د خپلو پلرونو نوم يې بيا راژوندی کړ، د امير پولاد د پاچاهۍ مرکز د غور په مند پش کې و. کله چې دی وفات شو نو پاچاهي يې زامنو ته ورسېده، امير کروړ د امير پولاد سوري زوی چې پر (۱۳۹هـ.ق) کال د غور په منديش کې پاچا شو، د امير کروړ کوم شعر چې پټې خزانې راوړی دی هغه دادی:

زه يم زمری پر دې نړۍ له ما اتل نشته
پر هندو سندو پر تخار او په کابل نشته
بل په زابل نشته
لـه مـا اتـل نشته

**د کسي غر**: د پښتنو په لرغونو استوګنځايونو کې يوه ډېره مشهوره او تاريخي سيمه د سليمان د غرونو لمنې دي. ددې غرونو لمنې د شپږ سوو کيلو مترو په شاوخوا کې اوږدوالی لري. د سليمان غر په لمنه کې شيخ بېټنی، شيخ اسمعيل او خرښبون د اسلامي عصر د درېيمې او څلورمې پېړۍ په شاوخوا کې د کسي په غره کې اوسېدلي دي او بېټ نيکه به دکسي په غره کې تل د الله(ج) ثنا او صفات ويل، د ورځې به روژه و او د شپې به يې د الله(ج) عبادت کاوه او دا مناجات يې زموږ لاسته راغلي دي:

لویـــه خدایـــه لویـــه خدایـــه
ســـتا پـــه مینـــه پـــه هرځایـــه
غـــــر ولاړ دی درنـــــاوي کـــــې
تږولـــــه ژوي پـــــه زاري کـــــې
دلتـــــه دي د غـــــرو لمنـــــې
زمـــوږ کېـــږدۍ دي پـــه کـــې پلنـــې
دا وګـــړي ډېـــر کـــړې خدایـــه
لویـــه خدایـــه، لویـــه خدایـــه.

**ملتان**: د مورخینو او د تاریخي کتابونو له لیکنو معلومېږي، چې د لومړیو دورو اسلامي پېړیو په شاوخوا کې پښتانه په کافي تعداد د سلیمان د غرو له لمنو او د پښتونخوا لـه سیمو د سند او پنجاب سیمو تـه ورغلـي او مېشـت شـوي وو، پـه هندوسـتان کـې لـودي کورنۍ په څلورمې او پینځمې پېړۍ کې حکومت کړی دی. پـه دې کورنۍ کې تاریخونو د دوو تره زامنو (شیخ رضی لـودي) او (نصر لودي) دوه پارکي خوندي کړي دي.

(۱) د الحاد په لور دې ترپلل ګروه دې زموږ وکوراوه
(۲) د الحاد په تور تورن شوم زه لرغون خو ملحد نه یم

د دې ترڅنګ پـه لرغـونې دورې کـې د پښـتو ادب نـورې ورې ورې حوزې هم شته خو ما په لنډیز سره دې لویو حوزو ته اشاره وکړه.

# د لنډيو لرغونتوب



داسې ولسي او ملي بڼ چې په هغه کې زرګونو زرګونو مختلفو باغوانانو د خپلو سليقو له مخې رنګارنګه ګلان، لکه مرسل، ګلاب، نرګس، پتوني، انتري، فرشي، ملکي شب، فلاکس، نوري شبو، ژېړ ګل، جريبن، رامبېل، چامبېل او نور يې کېنولي او کرلي دي، چې هر يو يې خاصه ښکلا، رنګ او بوی لري، خلک ورڅخه خوند اخلي، د هر رنګ او بوی څخه په خپله اندازه لذت وړي او ورڅخه متاثره کېږي. ددې ولسي او ملي باغ ګلان همدا زموږه لنډۍ دي چې هر شاعر په خپله خوښه او سليقه پښتون قام ته بې له کومې توقع او امتياز څخه د سوغات په توګه ښنلي او هديه کړي دي.

لنډۍ د پښتو د ولسي ادب او فولکلور اساس او تهداب تشکيلوي او داسې فولکلوريک، ساده، روان او ښکلی شعر دی چې د قيمتي ډبرو کان ته پاتې کېږي. داسې کان چې د سرو زرو، لاجوردو او نورو ډېرو قيمتي منرالونو څخه ډک دی چې په امېلونو، غاړکيو، پېزوانونو، د ګوتو په غميو، په تومانچو، ټوپکو او توروکې، ځان په خاصو رنګونو، مفهومونو، ځلاوو او ښکلاوو کې

راښيي، لکه عشقي، حماسي، اجتماعي، اصلاحي، انتقادي او نور.
دا د ګران هېواد د اديبانو، ليکوالانو، شاعرانو او نورو دنده ده چې دا کانونه ولټوي، پيدا يې کړي، وه يې څېړي، تفحص او اکتشاف يې کړي او بيا يې د ولس د ګټې اخيستنې لپاره استخراج کړي، تر څو چې خپل رسالت يې د اوسني او راتلونکي نسل لپاره سرته رسولې وي.
تر کومه ځايه چې معلومه ده لنډۍ له دوو بندونو (دوه ويشت سېلابونو) څخه جوړه ده چې لومړی بند يې نهه (۹) سېلابه او دويم بند يې ديارلس(۱۳) سېلابه لري. د هېواد په بېلابېلو برخو کې لنډۍ په مسرۍ، ټپې، ټيکۍ او نورو نومونو هم يادوي چې بېلابېل تعريفونه ورکول کېږي، لکه:
**لنډۍ:** د يوه وړوکي لنډه مار نوم دی چې سترګې يې له رڼا سره حساسيت لري، نو ځکه د شپې له مخې راوځي او ډېر زهرجن دی، زهر يې پر بدن باندې داسې اثر کوي چې نور د خلاصېدو توان او مجال يې نه وي، نو لنډۍ هم په همدې دوو لنډو بندونو کې ډېر لوي مفهوم او مضمون ځايوي چې اغېز يې خورا زيات دی، د همدې تاثير له مخې يې لنډۍ بولي.
**مسره:** مسره د يوې تېرې تورې نوم دی چې په مصر کې جوړېدله او د پخوا وختو په جګړو کې خورا موثره وسله وه چې پښتنو ورڅخه زياته استفاده کوله، د تاثير له مخې لنډۍ ته مسره هم وايي.

ټپه: ټپه له ټپ (زخم) څخه اخیستل شوې ده، څنګه چې ټپ پر انسان اثر کوي همداسې لنډۍ هم پر اورېدونکي اغېز کوي، نو ځکه لنډۍ ته ټپه هم ویل کېږي.

د لنډۍ شروع، شمېر او شاعر معلوم نه دی، مګر په ټول ولس پورې مربوط شعر دی. د پښتو ګرامر لیکوال لیکي چې: «ټول په دې په یوه خوله دي چې د پښتو لنډۍ، سروکي،... د ویدي سندرو پیل دی خو څوک په هغې پسې نه دي ګرځېدلي.» ویل کېږي چې لنډۍ له ویدي سندرو سره پیل شوي دي چې لږ تر لږه څلورنیم یا پینځه زره کلونو ته یې عمر رسېږي.

سپوږمیه سر وهه راخېږه

یار مې د ګلو لو کوي ګوتې رېبینه

دا هغه زړه لنډۍ ده چې عمر یې زرګونو کلونو ته رسېږي. ښاغلي حبیب الله رفیع د یوه بهرني څېړونکي (جون زانولسونیو) له خولې د پورتنۍ لنډۍ په هکله وایي چې: «دا د هغه وخت لنډۍ ده چې اریایان به د شپې له خوا د (سوما) د بوټي د لو کولو لپاره غره ته تلل او بیا به انتظار وو تر څو د څوارلسمې سپوږمۍ (د څوارلسمې شپې سپوږمۍ) راوخېږي او دوی د سوما بوټي لو کړي، ځکه که دا په لمر کې لو شوی وای شیره یې خرابېدله، نو دوی به د سپوږمۍ د شپې انتظار ویست او ټول به راټول وو بیا به یې ددې بوټي لو کاوه او له هغه به یې شیره ایستله، له هغه به یې مشروب جوړول چې دوی ته ډېر مقدس وو او له هغو به یې استفاده کوله. دا لنډۍ یا تر څوارلسم (د څوارلسمې شپې) وړاندې ویل شوې یا په داسې ځای

کې ویل شوي چې غرونه لوړ دي او سپوږمۍ ژر نه راخېږي یا هر څه چې دي د مینې له خوا دا لنډۍ ورته ویل شوې ده.)) نوموړی دوام ورکوي چې:

مازیګری دی ښېرې مه کړه
ته به د ناز ښېرې کوې رښتیا به شینه

دا د لمر پالنې د وخت لنډۍ ده، کله به چې لمر لویده نو په دې وخت کې به لمرپالونکو عبادت کاوه دوی باور درلود چې په دې وخت کې هره دوعا قبلېږي، نو پر همدې اساس ګوري چې مینه (معشوقه) ښېرې کوي او هلته مازیګر دی، نو وایي چې: مازیګری دی ښېری مه کړه، ته به د ناز ښېرې کوې رښتیا به شینه. دا دواړه زړې لنډۍ دي مګر یقیناً کلمې یې بدلې شوې دي، ځکه د هغه وخت د کلمو په استعمالولو سره اوس څوک پوهېدی نه شي، نو د وخت په بدلېدو سره کلمات هم اوسني حالت ته رارسېدلي دي، خو یوازې فکر او مطلب یې تر دې دمه رالېږد بدلي دي.))

په لنډه توګه ویلای شو چې د لنډیو شاعر معلوم نه دی، مګر د شاعرانو له زړونو نه راوتي دي او د خلکو د پراخو پرګنو پر زړونو یې چنګ وهلی دی. له یوې سینې نه بلې سینې ته او له یوه نسل څخه بل نسل ته یې انتقال کړی دی، لنډۍ ژوندۍ دي او د تل لپاره به ژوندۍ پاتې شي، ځکه دا د ولس شعر دی او په ولس پورې اړه لري او همدا ولس یې، تر څو چې دا نړۍ نړۍ ده د تل لپاره ژوندۍ ساتي.

لکه چې معلومه ده د لنډۍ اساسي موضوع انسان او د هغه چاپېریال دی او هر څه چې په انسان پورې اړه لري د ټولو

خصوصیاتو سره یې په ساده، روانه، ښایسته او ظریفانه بڼه بیانوي، پر همدې اساس د حقیقتونو او خیالونو د مینې او محبت د عشق او وفا د دیدنونو او وصلت د حماسو، ننګ، غیرت، مېړانې، زړورتیا او ځان تېرېدنې همدارنګه د بې غیرتۍ، پېغور، موزیتوب، غم، غماز، هجران د سختیو او محرومیتونو د هیلو او نا هیلیو د وفا او بې وفایۍ د باور او بې باوریو د توبو او تشبهاتو، لنډه دا چې د ژوندانه له ټولو برخو څخه بحث کوي او هغه څه چې د انسان په محیط او ماحول کې قرار لري او راڅرګند پېږي، هغه هم ورڅخه پټ نه پاتې کېږي لکه غرونه، سیندونه، سېلابونه، باغونه، ګل، بلبل، سپوږمۍ، باد، باران، تندر، ستوري او اسمان او په خاصه توګه ګودر، مازیګر، چنارونه او نور.
په لنډیو کې ښځو ته ځانګړی او مهم ځای ورکړل شوی دی او همدا یې وجه ده چې د ښځو په وجود کې زلفې، وربل، باڼه، وروځې، مړاوې او تورې سترګې، شونډې، اننګې، زنه، غاړه، قد، موسکا، په ناز کتل او تلل، خالونه، ټیک، پېزوان، چارګل... زیات ستایل کېږي او له بلې خوا نرینه چې د سکې بل مخ دی، هم په خاصو الفاظو ستایل او رټل کېږي. که نرینه پښتونولي او افغاني ارزښتونو ته په درنه سترګه وګوري او عمل پرې وکړي، نو هغه ستایل کېږي، لکه:

جانان مې سر په وطن کېښود
په تار د زلفو به کفن ورته ګنډمه
نن په خیبر د زلمو جنګ دی
خوشاله پاڅه چې مغول راغلي دینه

د اکبر خان غازي په توره
وطن رڼا شو دښمنان په ماتې ځینه
دا هره مور به زامن راوړي
د احمدشاه په شان به لړ لړ پیداشینه
د توریالي اکبر له برمه
ځوانان د ننګ توري وهي سر ورکوینه
د هندوستان پیرنګی ژاړي
که ژېړ ایوب په دنیا و کونډې به شونه

او چا چې پښتونولی ته شا کړې ده، هغه رټل شوي او رټل کېږي، لکه جنګ څخه تېښته، موزیتوب.

عالمه راشئ مخ راتور کړئ
ما د بې ننګو یاري کړه وشرمېدمه
جانان له جنګه په شا راغی
په پرونی ورکړې خوله ښپېمانه شومه
موزي په مینه څه پوهېږي
په نس یې مور کړه تر سهار کوي خوبونه
خدایه بې ننګه اولاد ورک کړې
چې ننګ ناموس د مور او پلار بربادوینه

سره له دې چې د لنډیو عمر معلوم نه دی مګر له ځینو لنډیو څخه د لنډۍ عصر او زمان (نه دقیق تاریخ) چې په محیط او ماحول کې له خاصو پېښو او تغیراتو سره تړاو لري، معلومېدی شي، لکه:

د مومن خان چیغه شوه پورته
د شیرینو شرط به په سرباندې ګټمه
چې رامدادخان دې وویشتلو
نامرده نه کړې پښتانه داسې کارونه
مومن په جګه غونډۍ کېږدی
چې بوره مور یې هر سهار زیارت کوینه

په پورتنیو لنډیو کې د مومن خان، رامداد خان له یادولو څخه د لنډیو عصر یا زمان معلومېدی شي، خو دقیق تاریخ یې نه.

# په پښتو لرغوني ادب کې سیاسي څېرې

## ۱- امیر کروړ د جهان پهلوان:



امیر کروړ سوري چې په جهان پهلوان یې شهرت موندلی دی، د دویمې هجري قمري پېړۍ د اولې دورې شاعر دی. امیر کروړ د امیر پولاد سوري زوی دی او امیر پولاد په غور کې د ملک شنسب له زامنو څخه و، چې غور کې یې پاچاهي کوله.

امیر کروړ پر (**۱۳۹**هـ.ق) د غور په مندیش کې پاچا شو، دی یو تکړه، غښتلی، کلک او مضبوط سړی و، په یو تن به له سلو تنو سره جنګېده، نو ځکه کروړ او جهان پهلوان بلل کېده او د پښتو ژبې یو تکړه او زبردست شاعر تېر شوی دی.

امیر کروړ پر (**۱۵۴**هـ.ق) کال د فوشنج په جنګ کې وفات شوی دی.

## ۲- نصر لودي:

نصر لودي د شیخ حمید لودي زوی، د لودیانو دویم حکمران و، د (**۳۹۰**هـ.ق) په شاوخوا کې یې حکومت کاوه، دی تر حمید وروسته

د هغه پرځای کېناست چې په ملتان کې دده واکمني د سند تر غاړو او د سليمان تر غره پورې رسېده او د پښتو ژبې شاعر هم و.

## ۳- شيخ رضی:

شيخ رضی د شيخ حميد لودي وراره دی چې شيخ حميد څخه وروسته د (۳۸۰هـ.ق) په شاوخوا کې حکمران او په اخبارالودي کې د حميد لودي په وينا د پښتو ژبې له شاعرانو څخه و، چې د حميد لودي په وخت کې يې د افغانانو په غرو (سليمان غره) کې د اسلام تبليغ کاوه.

## ۴- سلطان شهاب الدين غوري:

سلطان شهاب الدين د خپل ورور سلطان غياث الدين تر مړينې وروسته پاچا شو او دی د خپل ورور په وخت کې د لښکر مشر و او د غياث الدين د وخت ډېرې کاميابۍ او برې د هغه په وسيله ترلاسه شوي وو. دده په زمانه کې د غوريانو پاچاهي د شمال له خوا تر خوارزم او ماورالنهر او په هند کې د هند په لويو برخو کې جاري وه. دا لوی پاچا پر (۶۰۲هـ.ق) کال د اباسين په غاړه د هند د اړو دوړو کرارولو لپاره هغې خواته روان شوی و، د يوه ناپېژندل شوي سړي له خوا ووژل شو.

## ۵- سلطان محمود غزنوي:

د سبکتګين تر مړينې (۳۸۹-۴۲۱هـ) وروسته د هغه له وصيت سره سم اسمعيل د سبکتګين کوچنی زوی پر تخت کېناست. په دې وخت کې محمود د خراسان حاکم و. کله چې سلطان محمود د خپل پلار له مرګه او د ورور له پاچاهۍ خبر شو، له اسمعيل څخه يې

وغوښتل چې له حکومت څخه لاس واخلي او دغه چارې ده ته وسپارې، خو اسمعیل مخالفت وکړ په نتیجه کې د لړ اخ و ډب څخه وروسته اسمعیل د غزني په شاوخوا کې ماتې وکړه او غزنې د محمود لاس ته ورغی.
محمود پر (۹۹۸م) کال د غزنې پر تخت کېناست، محمود د سیستان علاقه ونیوله او د بغداد د خلافت له خوا په رسمیت وپېژندل شو او د یمین الدوله لقب ورکړل شو. سلطان محمود غزنوي (۱۷) ځلې پر هندوستان یرغل کړی دی او د سلطان محمود لویه جګړه د سومنات جګړه ده، چې پر (۴۱۲هـ) کل پېښه شوې ده.

## ۲ - سلطان بهلول لودي:

سلطان د ملک کالاشا هوخېل لودي زوی دی پر (۸۱۴هـ.ق) کال د ملتان په کمانګرانو کې دنیا ته راغی، د ځوانۍ په وخت کې سپاهي و، بیا ملک شو، سوداګرۍ ته یې مخه کړه او د خپل لیاقت، مهارت او بهادرۍ په وجه د ډیلي پاچاهۍ ته ورسېده. ډیلی، پاني پت، دیبالپور، لاهور، هانې، حصار، جونپور، بهرایچ، ناګور او د ملتان تر څنډو پورې هندي ځمکې ټولې د ده په پاچاهۍ کې شاملې وې. د تاریخ داودي له وینا سره سم سلطان بهلول لودي پر (۸۵۰هـ.ق) کال د ربیع الاول د میاشتې پر اوولسمه نېټه په هندوستان کې پاچا شو او تر (۴۴) کاله پاچاهۍ وروسته پر (۸۹۴هـ.ق) کال د هندوستان د عالیګړ د ضلعې د جلالي په قصبه کې وفات شو. سلطان بهلول لودي د هندوستان عادل او عالم پاچا و چې په دربار کې به یې شاعران او عالمان پالل او خپله هم د پښتو ژبې شاعر و.

## ۷- شیخ اسعد سوري:

په پټه خزانه کې راغلي دي: ((شیخ کته په لرغوني پښتانه کې له تاریخ سوري هسې نقل کا چې اسعد سوري په غور کې اوسېده او هلته سوري خاندان په پاچاهۍ کې ډېر عزتمند و، شیخ اسعد د محمد زوی و چې پر (۴۲۵هـ.ق) کال په بغنین کې وفات شو، شیخ اسعد سوري ډېر ښه اشعار ویل، نقل کا چې سلطان محمود غزنوي پر غور باندې د امیر محمد سوري سره جګړه وکړه او په اهنګرانو کې یې محصور کا په دې وخت شیخ اسعد هم د اهنګرانو په کوټ کې و هغه وخت چې سلطان محمود امیر محمد سوري ونیو او بندي یې غزني ته بوت، نو امیر محمد سوري چې خورا زړور او عادل او ضابط امیر و، له غیرته په بند کې مړ شو او شیخ اسعد چې دوست و د امیر محمد سوري پر مرګ یې ساندې وویلې.))

پر پورتنیو سیاسي او فرهنګي شخصیتونو سربېره ګڼ شمېر نور سیاسي شخصیتونه هم په لرغوني دوره کې تېر شوي چې په مستقیم ډول یې پر پښتو ژبې او ادب خپل خپل تاثیرات پرې ایښي دي، خو ما یې هغه ډېر مشهور او مطرح کسان د بېلګې په توګه دلته معرفي کړل.

# په لرغوني ادبي دوره کې قطعه



قطعه په هغو فورمونو کې شمېرلی شو، چې له عربي ژبې څخه په دریمه هجري پېړۍ کې پښتو ته راغلی او په پښتو شاعرۍ کې اوډل شوې ده.

قطعه لکه د څلوریزې (رباعي) په څېر څلور مسرې لري، خو له رباعي سره يې توپير دادی، چې په رباعي کې لومړی بيت مقفی وي، يانې دواړه مسرې يې قافيه لرونکې وي او د يو شان قافيې پیروي کوي او د دويم بيت دويمه مسره ورسره هم قافيه وي. په قطعه کې د لومړي بيت لومړۍ مسره او د دويم بيت لومړۍ مسره له قافيې څخه ازادې وي او د دواړو بيتونو دويمې مسرې په خپل منځ کې يوشان قافيه جوړوي، خو بل پلو ځينې کسان بيا دا دوه بېلابېل فورمونه يو له بل سره مغالطه کوي، قطعې ته څلوريزه او څلوريزې ته قطعه وايي. دوی په دې کې تېروتنه کوي چې دواړه يوشان دي، د دواړو مسرو شمېر يو برابر دی، خو د رباعي يا څلوريزې دواړه بيتونه ضرور مقفی وي يانې د سر دواړه مسرې يې يوشان قافيه لري، خو د قطعې لومړی بيت بيا يو شان قافيه نه لري، البته د لومړي بيت دويمه مسره او د

دويم بيت دويمه مسره په قافيه کې يو شان دي. همدارنګه د اهنګ له پلوه هم دواړه شعري فورمونه توپير لري.

قطعه په دوه ډوله ده:

۱ - هغه قطعه چې رديف نه لري

۲ - هغه قطعه چې رديف لري

دا چې موضوع پر لرغونې دوره څرخېږي، نو غواړم چې دلته د لرغونې دورې ځينې قطعې يا پارکي ستاسو په چوپړ کې وړاندې کړم او خپل بحث به هم ورباندې وکړم.

د اسلامي عصر په درېيمه او څلورمه پېړۍ کې د دې سيمې د دوو شاعرانو پارکي چې له پښتو تذکرو څخه لاسته راغلي دي، چې يو يې شيخ اسمعيل دی چې د ده دوه پارکي زموږ په لاس کې دي يو يې په تذکرة الاولیا او بل يې په پټې خزانې کې خوندي دی.

د شيخ اسمعيل هغه دوه پارکي دادي:

| | |
|---|---|
| تښته وکړه له ابليسه | چې ابليس لعين ښکاره سي |
| هلته ورکه پلوشه سي | تول نړۍ توره تياره سي |
| سړی وران سي له ابليسه | غوڅ د پس په کتاره سي |
| که هر چا ابليس خرڅ کړ | نو يې هلته ننداره سي |
| که سړی ابليس ته پړ سو | نو پر کور د وير ناره سي |

که څه هم دا پارکی د وزن له پلوه کومه ستونزه نه لري، خو د قطعې اصلي جوړښت سره يو څه توپير لري. د دويم بيت لومړۍ مسره بايد د لومړي بيت د دويمې مسرې له قافيې سره يو شان نه وای، يوازنۍ ستونزه په کې همدا ده چې له قطعې اصلي جوړښت سره مطابقت نه لري.

سلیمان ماکو په تذکرة الاولیا کې د بختیار یو پاړکی خوندي کړی چې دلته یې تاسو ته وړاندې کوم:

ویـــر مـــې زړه ســـوری کـــړ
راتـــــــه وګـــــــوره ملــــــوکې
پـــه بېلتـــون کـــې دې وباســـم
لـــه خوږمنـــه زړګـــی کـــوکې

×××

د بېلتـــون اورونـــه بـــل دي
هـــر ګـــړی مـــې زړګـــی ســـوځي
لېـــونی یمـــــه د مینـــــې
ســـــوځم زه لکـــــه پلـــوځې

×××

غوړېـــــدلی دې اوربــــــل دی
اور زمـــا پـــه زړګـــی بـــل دی
زه بختیـــار خـــاورې ایـــرې ســـوم
پـــه اوری ســـوی مـــې ګوګـــل دی
راتـــــه ګـــــوره ملــــــوکې
راتـــــه وګـــــوره ملــــــوکې

دلته ددې شعر لومړي دوه بندونه قطعې ته ورته دي، که له ټول شعر پرته یې په مستقل ډول ولولې، نو د قطعې شکل درکوي.
د کسې د غره په لمنو کې د پښتو د لومړنیو شاعرانو ایجاد شوي پاړکي د خپلو جوړښتي خصوصیاتو له مخې د پښتو لرغونو سندرو په جمله کې راځي، خو د شیخ بختیار پاړکی یا سندره چې عشقي سندره ګڼل کېږي، د سر لومړی او دویم بند یې د قطعې خصوصیات لري، ځکه چې د هر بند دویمه او څلورمه مسره یې په خپل منځ کې همقافیه دي.

# په لرغوني ادب کې د مثنوي ارزونه



په دې لیکنه کې د مثنوي له ارزونې څخه زموږ موخه د هغې د ارزښت معلومول دي. یانې د مثنوي ښه اړخونه او نیمګړتیاوې څېړو. لومړی باید پر مثنوي پوه شو چې مثنوي څه ته وايي.

**مثنوي:** هغه شعري فورم دی، چې له عربي څخه پښتو ته راغلی دی، هر بیت یې ځانته ځانګړې قافیه لري، یانې دوه مسرې په خپل منځ کې سره هم قافیه وي او ردیف په هر بیت کې اختیاري دی. کېدی شي چې ځینې بیتونه ردیفونه ولري او ځینې یې ونه لري، د هر بیت د مسرو شمېر یې په خپل منځ کې سره مساوي دي، خو د ټولو بیتونو د مسرو د څپو شمېر یې د یو یا دوه څپو په شمېر توپیر او بدلون موندلای شي. البته تر اکبر زمینداوري دمخه مثنوي ته ورته شعرونه وو، خو بشپړه مثنوي اکبرزمینداوري لیکلې ده.

دلته یې د مثنوي څو بیتونه را اخلو:

زه عاشـق یـم یـار هـم نیـز
نـور څـه نـه لـرو تمیـز

یــو پــر بلــه عاشـــقان یـــو
پـه خپـل عشـق کـې صـادقان یـو
یــو پــر بــل پســې رنځــور یــو
چــې نــږدې نــه یــو مهجــور یــو
عشــق کــه ښــه دی کــه بــلا دی
پیـــــدا کړی زمــــوږ مــــولا دی

په پورتنیو بیتونو کې اول بیت ردیف نه لري او دوه نور یې لري. په لرغوني ادب کې د مثنوي ځینې ځانګړنې دادي.
۱- زاړه ویونه لري ۲- زړه پانګه په کې پاتې ده.
۳- پښتو یې سوچه ده ۴- د پردیو ژبو اغېز په کې کم دی یا هېڅ نه شته. ۵- ویاړنه او افتخار په کې موجود دی. ۶- عشق او دوستۍ په کې ښکاري. ۷- تولنیزه مینه او محبت په کې لیدل کېږي.
تر اکبر زمینداور وروسته زرغون خان نورزي مثنوي لیکلې:
ساقي راشه پیاله راکړه مرور یار مې پخلا کړه
د نورو بېلګو په توګه د بابوجان بابي او د بي بي نېکبختې مثنوي هم یادولای شو.
د بابوجان بابي مثنوي:
عشق یو هسې توریالی دی چې په هر ځای یې بری دی
عشق اور هسې سوزان دی چې سوځلی یې جهان دی

د بي بي نېکبختې مثنوي:

په زړه ښاد شي ای مومنه　　په ظاهر په باطن سپینه
ظاهر زهد په اخلاص کړه　　په زړه ټینګ شه له یقینه

## اخځونه


۱- خوشال په خپل ایډیال، محمد اسمعیل یون.
۲- پټه خزانه، محمد هوتک، دویم چاپ.

# د هند لودي واکمنان او پښتو لرغونی ادب



لودي قبیله د پښتنو د مشهورو اونومیالیو قبیلو له جملې څخه ده چې دهند په ملتان یا ختیزه پښتونخوا کې یې استوګنه کوله. دنوموړې کورنۍ دنسب په هکله تاریخ پوهانو مختلفې نظریې ورکړې دي، دځینو تاریخ پوهانو په اند لودي کورنۍ دمتوزي پښتنو له جملې څخه ده اومتو بي بي دبیټ نیکه لوراودشاحسین مېرمن وه. متوبي بي دوه زامن درلودل چې دابراهیم اوغلجي په نومونویادېدل چې تر دې وروسته بیا په لودیانو باندې مشهورشول.

دلودي کورنی نورې څانګې له سیاڼي، نیازي، پرانګي، لواڼي، دوتاڼي، سوري اومروتو څخه عبارت دي.ددې کورنی لومړنی پاچا سلطان حمید لودي نومیده چې د(۳۷۰ه ق) په شاوخوا کې دلاهور اوپنجاب دراجا له خواقدرت ته ورسېدچې دواک سیمه یې دملتان شمال لورته دپښتونخواځینې سیمې ترلغمانه پورې اوپه سهیل کې دپنجاب یوشمېرسیمې وې چې پلازمېنه یې ملتان و. سلطان حمیدلودي چې یوزړوراوپښتون سړی و

اودهمدې زړورتیا اوپښتونولی له امله یې له راجا سره پر جیپال باندې د لویدیځ له لورې دبریدونو مخنیوی کاوه.
سلطان حمید لودي په داسې وخت کې واک ته ورسېد چې په پښتونخوا کې دغزنوي کورنی پاچاهان د واک پر ګدۍ ناست وو اوڅوځلې په جګړو کې هم ورسره ښکېل شوي دي. مګرکله چې سبکتګین دواک چارې په لاس کې واخیستې نوحمید لودي ورسره سوله وکړه.
تر سلطان حمید لودي وروسته دده زوی نصر پاچا شو کله چې نصرمړشونوپر ځای یې داود قدرت ته ورسېد ،چې په دې وخت سلطان محمود غزنوي په غزني کې پاچاهي کوله چې له داودسره یې په (۳۹۵_۳۹۶هـ ق) کې جګړه وکړه اوپه(۴۰۱هـ ق) کې یې داود ونیوا اوغزني ته یې راوست اوبندي یې کړ چې هلته وفات شو.
دې سره دلودیانودپاچاهي لمن ټوله شوه.مګر په (۸۵۵هـ ق) یانې څلورنیمې پېړۍ وروسته لودیان یوځل بیا په هند کې قدرت ته ورسیدل.ابوالمظفربهلول شاه یوځل بیاد لودي کورنی نوم راژوندي کړ اودپښتنوحکومت یې په هندکې جوړ کړ، دده تر مړینې وروسته سلطان سکندرلودي اوبیا سلطان ابراهیم لودي پر هند باندې حکومتونه کړي دي.
لودي کورنی نه یوازې یوه شاهي کورنی وه بلکې دپښتوادب پرمختګ لپاره یې هم دقدروړخدمتونه کړي دي.که څه هم داکورنۍ له خپل ټاټوبي یانې پښتونخوا څخه لرې اوسېدله،

خوبیاهم دوی پښتني فرهنګ، ژبه، دود او دستورهېرنه کړل، ددې کورنۍ ځینوشاهانودشاهي تاج ترڅنګ دادب تاج هم پر سر ایښی و، خپله یې هم شعرونه ویل اوپه دربارکې به یې ادبي مشاعرې او غونډې جوړولې.

ددې لپاره چې دلودي کورنۍ له دې شخصیتونوسره بلدتیا پیداکړو نوددغوشاعرانولنډه پېژندنه(بیوګرافي)او دشعرنمونې تاسې ته وړاندې کوو.

## الف: شیخ رضی لودي اونصرلودي:

دلودي کورنۍ دمشهوروشاعرانوله جملې څخه دي، شیخ رضی دحمید وراره اونصرییې زوی و، چې ددوی له جملې څخه نصرلودي دخپل پلار تر مړینې وروسته پاچاهۍ ته هم رسېدلی دی.

دشیخ رضی احوال پټې خزانې په لاندې ډول ذکر کړي دي ((پوه سه پدی چې کامران خان ابن سدوخان په ښهرصفا کې په سنه (۱۰۳۸) هجری کې یوکتاب وکېښ چې (کلید کامراني) نومېږی په دې کتاب کې کامران له کتابه دشیخ احمد بن سعید الودي چې په سنه (۶۸۶) هجري کښلی دی او نوم یې (اعلام الوزی فی اخبارلودی) دی هسی نقل کا: چې شیخ رضی لودي دشیخ حمید لودي وراره وه، شیخ رضی یو کلک اومعتقد مسلمان و له همدی امله دی داسلام ددین دخپرولولپاره پښتونخوا ته ولاړ، دوه کاله یې هلته تېرکړه اوډېرخلک یې داسلام په سپېڅلي دین باندې مشرف کړل نصرلودي چې کله دخپل پلارله

مړینې څخه وروسته په تخت کېناست نو موړی د ملاحده له استازو سره اړیکې ټینګې کړې او د هغوی سره به کېناست او بلاخره له دوی څخه یې د اسماعیلیې فرقې عقاید زده کړل او ملحد شو.

شیخ رضی چې کله له دې پېښې څخه خبر شو نو له پښتونخوا څخه یې نصرلودي ته دا لاندې پارکی راولېږه:

دالحاد په لوردې ترپل
ګروه دې زمونږ وکوراوه
مونږ رونلې په زیارنه
تا په توروتوراوه
لرغونوولې ګروهېدلې
چې دې ګوښې اړاوه
هغه ګروه دی اوس اړه کړه
چې پلرو دې رڼاوه
لودي ستا په نامه سپک شو
که هرڅو مودرناوه
نصره نه موې له کهاله
لودي نه یې په کاوه
زمونږ رغا ده ستاله ګروهه
د ورځ لوی په رغاوه.

کله چی نصرلودي داخبرې واورېدې نوله دې خبری څخه یې انکار وکړ چې ګڼې دی ملحد شوی دی نودشیخ په ځواب کې یې دالاندې پاړکې وویل.

دالحادپه تورتورن سوم زه لرغون خوملحد نه یم
زما دښنه هسې توررا کړي که ملحد یم د دښنه یم
له اسلامه نه ترپلمه تورانوڅخه په ترپله
ی م
ګروه مې هغه لرغونی ده اوس هم کروړ په لرغونه یم
داسلام په هسک به ځلم وتورانوته تیاره یم
دلودي ځوی سنتي یم دحمید له لوړ کهاله یم
تورانی دښمن چې وایي زه له ګروه په اړه یم
دای تورتاسې دروهوي زه مومن ستاسې په تله
ی م
ددښنو ویناوې مغږه زه لودي یمه څوزه یم.

که چیری مونږ دنصرلودي اوشیخ رضي لودې اشعاروته متوجه شو نودااشعاردشکل له مخې دغزل بڼه لري البته هغه غزلونه دي چې مطلع نه لري. دمحتوا له مخې دینې بڼه لري همدارنګه یو څه قافیوي نیمګړتیاوې هم لري یوه بله ځانګړتیا یی داده چې د عربي اوفارسي ژبې له اغېزې څخه خالي ده، د( سنتي، مومن اوالحاد) یو څو کلمې په کې عربي دي اونورټول سوچه پښتو لغاتونه دي چې ځینې یې اوس له منځه تللي دي.

ب : سلطان بهلول لودي :

کله چې پر (۴۰۱ هـ. ق) کال د سلطان محمود غزنوي له خوا د لودي کورنۍ پاچاهي له منځه یووړل شوه، نو تر(۴۵۰) کلونو پورې دلودیانونوم په هند کې کم اوریدل کېده. مګرد سلطان بهلول لودي په راتلو سره دلودي کورنۍ نوم یوځل بیا راژوندی شو. دپښتو ژبې باوري سرچینه پټه خزانه دبهلول لودي په هکله لیکي:((په مخزن افغاني کې نعمت الله هسې کښلي دي چې ملک بهلول دملک کالازوی و په هندوستان کې یې دسلطنت لوا هسکه کړه اودغه ملک له لودي طایفې څخه و له ډېرې زمانې دې لودي ټبر سلطنت کاپه هند کې ملک بهلول په سرهند د اسلام خان تر وفات راهیسې استقلال وموند او تر جنګو په وروسته یې پر ډهلي خطبه او سکه ووهله پانی پت او لاهور او هانسي او حصار او ناګور یې د ملتان تر څنډو پورې ونیول او د هندوانو د راجګانو سره سخت جنګونه وکړل او اته دېرش کاله یې په هندوستان سلطنت وکا)).

بهلول لودي اصلا شاهوخېل دی دده مور اوپلار دملتان په کمانګران سیمه کې اوسېدل پر (۸۱۴هـ ق) کال د بهلول په مور باندې کوټه راړنګه شوه چې موریې مړه شوه اودی دمور له مرګ څخه ژوندی پیدا شو.

په(۸۲۱)ه ق کال کې د بهلول تره سلام خان، چې د سرهند حاکم و د بهلول له پلار څخه پرته چې د ملتان د دوروالې د سیمې حاکم و نور ټول وروڼه سرهند ته وروغوښتل.
کله چې د بهلول پلار د نیازیو سره په یوه جګړه کې ووژل شو نو سلام خان بهلول هم سرهند ته وروغوښت او هلته یې له خپل تره سره د ژوند شپې اوورځې سبا کولې، بهلول په کوچنیتوب کې هم هوښیار، پوه اوځیرک و له همدې امله دده تره هم ډېره پاملرنه کوله او په خورا مینه یې را لوی کړ.
کله چې سلام خان وفات شو نو ملک بهلول په (۸۵۵ه ق) کال کې پاچاهي ته ورسېد، ده لومړی په هند کې خواره واره پښتانه سره یوموټی کړل او د خپلو پښتنو وروڼو په مرسته یې په هند کې یې ډېر فتوحات وکړل بلاخره په (۸۹۴ه ق) کال کې یې له دې فاني نړۍ څخه سترګې پټې کړې.
سلطان بهلول لودي د پښتو ژبې یو تکړه شاعرهم و، له ادیبانو او شاعرانو سره یې زیاته مینه درلوده، دده په دربار کې به هر وخت ادبي مشاعرې اوغونډې جوړېدې.
دده دربار یو مشهورشاعر اوادیب چې خلیل خان نیازی نومېده سلطان ته په یوه څلوریزه کې داسې خطاب کوي.
خړې وربځې ژاړي له پاسه کوی‌له غر کا بېلتون له لاسه
یه هغه لوني ګوهرپه خول ستا دامرحبا کا ستا زمور مواسه
ددې څلوریزې په ځواب کې سلطان بهلول دا لاندې څلوریزه ورته وویله.

ملک بـه زرغـون کړم پـه ورکړه راسـه      ګوره وربخـې د داد لـه پاسه
خـول مــې دعــدل پــه درو روڼ دی      جهـان بـه زېب مومي زما لـه لاسه
دسلطان بهلول لودي همدغـه یـوه څلوریـزه پټې خزانـي تـر مـونږ پورې رارسولې ده اودده نور اثار په واک کې نه لرو.
ج:علي سرورلودی:
اوس هـم دلـودي کـورنۍ یـوبـل ادیب،شـاعر اوصـوفي تاسې تـه درپېژنو:
نوموړی شیـخ هم دشاهوخېلو لـه ټبر څخـه دی او د(۹۶۰)هـ ق کـال پـه شا او خوا کې یې ژوند کا وه.شیـخ علي سرور یـو لـوی شیـخ او روحاني شخصیت و دتدریس حلقـه یې هم درلـوده اوزیـات مریدان یې وو.
نوموړی شیـخ شـاعر هـم وچې دیـني اوعرفـاني شـعرونه بـه یـې ویـل، مونږ دلته دده یو شعر تاسو ته وړاندې کوو.

## غزل

محبـت پیـالــه مــې نــوش کــړه پــه مجــاز کــې
دحـــق نـــور ویـــنم پـــه ســـترګو دایـــاز کـــې
درســـت وطـــن راتـــه دریـــاب شـــو بـــې دیـدنـــه
دید مې نـه شې مګر خدای مې سبب ساز کې
کــه زه مــړ شــم هــم لــه ګــوره کــړم ســر پورتــه

ناګهـــان چـــې مـــې دلبـــر پورتـــه اواز کـــې
کــه مــې ســرغوخ درقىــب پــه تېــره تېـغ شــي
هــم بــه ځــم کــه دلبـر غوښــت پــه مهــر ونــاز کـې
زه وىـــار مــــداماً ناســـــت ىـولــــه بلــــه
پرغمـــاز دى بـــارى كـــانې دغـــم ســـازكې
ګـــران بېلتـــون بـــه دهغـــو مىنـــو وىنـــه
چـې تـل ناسـت وي پـه خلـوت كـې سـره راز كـې
اې (ســـروره) غمـــازان ســـوه بـــې حســـابه
پــاک الله دې صـورت تــش بـې مغـزه پىـاز كـې.

# په پښتو لرغوني ادب کې عشقي روحيه



له استاد څخه په مننې چې موږ ته يې دا وخت راکړ، تر څو د خپلې ژبې د لرغونتوب په اړه معلومات ترلاسه کړو، په دې برخه کې څېړنه وکړو، په راتلونکي کې د دې جوګه شو، چې خپلې ژبې ته خدمت وکړو او خپله ژبه د نورو پرمختللو ژبو په کتار کې ځای کړو. کوم معلومات چې ما د دې موضوع په اړه وړاندې کړي، کېدی شي هغه ډېر کم، املايي او انشايي غلطۍ هم له ځان سره ولري، خو زه د دغو نيمګړتياوو ښښنه غواړم.

د پښتو د لرغونو ادبياتو په لاسته راغلو نمونو کې موږ د شپږمې هجري پېړۍ په دوران کې ځينې داسې نمونې هم ترلاسه کوو، چې په هغو کې يوه سپېڅلې خو سوځنده مينه انګازې کوي.

د دغسې اورنيو عشقي احساساتو لرونکې ادبي نمونې موږ ته يوه د سليمان ماکو له تذکرة الاوليا او بله له پټې خزانې څخه ترلاسه شوې دي، چې په لاندې ډول به پرې خبرې وکړو.

له دغسې سندرو څخه يوه سندره د شيخ تيمن کاکړ ده، دا سړی د سلطان علاوالدين حسين سام معاصرو او د (۵۵۰هـ.ق) کال شاوخوا يې د ژوند زمانه وه. دی په ږوب او د پخواني غور د کجران

په سیمو کې اوسېدلی دی. دده یوه سندره د پټې خزانې مولف رانقل کړې ده چې دلته یې وړاندې کوم.

ګهیځ رڼا د لمر خپره سوه
زما پر کور د ویر ناره سوه
د بېلتون ورځ توره تیاره سوه
ړغ سو ناڅاپه چې بېلتون راغی
زړه مې له دې ویرنې شین دی
په ژړا ژاړم څه ناورین دی
زرغون په اوښو مې سادین دی
په نول نولېږم چې تا خون راغی
نه به بیا یم نه به بیا راسي
نه به تیاره شپه زما رڼا سي
نه به شهۍ راته پخلا سي
بېلېږي پېر یې اوس د یون راغی
د ښتن پار دی هېر مې نه کړې
اغلیه مخ چې په یا نه کړې
اور بل دې پرېښووئ واته کړې
پر ما د بل اور کړاوون راغی.

دغه سندرې د هغو بدلو ابتدایي شکلونو ته پاتې کېږي چې په کندهار او ددې سیمې په شاوخوا سیمو کې په خاص شور او جذبه او ځانګړې غاړه ویل کېږي او په دې سیمو کې یې سپرې بدلې بولي.

د شیخ تیمن په دې بدله کې یوه مینه او یوه سپېڅلې پښتني مینه ښکاره کېږي او په خورا پرېولو الفاظو کې یې خپله مینه بیان کړې ده، لوستل یې اوس هم پر لوستونکي او اورېدونکي خاص اغېز ښندي.

د پښتو بله عشقي سندره چې تر موږ رارسېدلې ده هغه د قطب الدین بختیار کاکي خوندوره زړه سندره ده. قطب الدین د احمد زوی د موسی لمسی دی، کورنۍ یې له بختیارانو څخه سند ته تللې او د سند په اوچ کې اوسېدلې ده. بختیاران د پښتنو یوه ستانه قبیله ده، چې د پښتنو د انسابو په کتابونو کې یې یادونه شوې ده او کورنۍ یې اوس هم په کندهار او د سلیمان د غره په لمنو کې اوسي. قطب الدین پر (۵۸۰هـ.ق) کال زېږېدلی دی، د اسلامي معارفو او عرفان لوی مراتب یې ګټلي وو او په هندوستان کې شهرت ته رسېدلی و. په مرات الافاغنه کې یې قطب الدین بختیار د (قطب افغان) په لقب ستایلی دی.

د قطب الدین بختیار د مړینې کال (۶۳۳-۶۳۴هـ.ق) د ربیع الاول څلورم ښودل شوی دی. د قطب الدین بختیار کاکي یوه د مینې سندره سلیمان ماکو په تذکرة الاولیا کې راوړې ده چې دلته یې را اخلو:

ویر مې زړه سوری سوری کړ — راته وګوره ملوکې
په بېلتون کې دې وباسم — له خوږمنه زړګي کوکې
راته وګوره ملوکې
راته وګوره ملوکې

د بېلتون اورونه بل دي هر ګړۍ مې زړګی سوځي
لېونی یمه د مينې سوځم زه لکه پېلوځي
راته وګوره ملوکې
راته وګوره ملوکې
غورولی دې اوربل دی اور زما په زړګي بل دی
زه بختيار خاورې ايرې سوم په اور سوی مې ګوګل دی
راته وګوره ملوکې
راته وګوره ملوکې

د بختيار دا سندره که څه هم ډېره ساده ده، خو د استاد الفت خبره يو موثر شعر او ښه نغمه ده او له يوه خوږمن زړه څخه راوتلې ده.

**د پښتو د زړو عشقي سندرو ځانګړنې:** د عشق او محبت د دغو دوو زړو ترلاسه شويو پښتو سندرو له مطالعې څخه دا دواړه سندرو ته دغه لاندې خصوصيات ټاکلای شو:

۱- د عشق او محبت دغه دوه سندرې چې شاعران يې په شپږمې پېړۍ کې اوسېدلي او د يوې شاعر حتی د اوومې پېړۍ د لومړۍ نيمايي ډېر کلونه هم ژوندی و، د خپلو شکلي خصوصياتو له پلوه يوه سندره د پښتو بدلې لومړنی شکل دی، د بدلې دغه ابتدايي بڼه موږ ته دا خبره هم رابښيي چې زموږ د ولسي شعر د معمولو ژانرونو، لکه بدلې او د چاربيتې د شکل زړی همدا وخت زرغون شوی دی، خو د قطب الدين بختيار کاکي سندره خپل لرغوني شکلي خصوصيات لري او موږ يې په خپلو لرغونو سندرو کې حسابوو.

۲- د دغو دواړو سندرو ژبه ډېره ساده او روانه ده، خو ځينې داسې لغات په کې راغلي چې د پښتو په ځينو لهجو کې ښايي موجود وي، خو په عامه پښتو کې نه شته.

۳- په دواړو سندرو کې عشق او مينه بيان شوې ده، دا مينه سوځنده ده، ښايي ځينې خلک يې د يوه معشوق مينه وبولي او ځينې بيا په دې عقيده دي چې په دې سندرو کې د الهي سوځندې مينې انګازې خورې دي، په هر صورت د دواړو ډوله مينې احساس ځنې کېدی شي.

# د امیر کروړ او ملکیار هوتک د شعرونو تاریخي ارزښت



**الف- امیر کروړ:** امیر کروړ و د امیر پولاد سوري زوی دی چې پر (۱۳۹هـ.ق) کال د غور په مندېش کې د واک پر ګدۍ کېناست. امیر کروړ یو تکړه او پهلوان ځوان و چې په یوازې ځان یې له څو تنو سره جګړه کوله، امیرکروړ د خپل واک په موده کې خیسار، کمران، برکوشک، بالشتان او همدارنګه د غور کلاوې د خپل سلطنت تر سیوري لاندې راوستلې. نوموړی د ابو مسلم خراساني خورا کلک ملګری و او په هغه جګړه کې هم ورسره مل و چې له ابوالعباس سفاح او بني امیه سره یې وکړې، امیر هم خپل لښکر د جنګ لپاره ورولېږه په پایله کې د بني امیه کورنۍ ماتې وخوړه او عباسیان بریالي شول، عباسیانو سره یې په نورو جنګونو کې هم همکاري کړې ده.

امیر کروړ واک ته په رسېدو سره د خپل قوم (سوریانو) نوم بیا راژوندی کړ، د خپل قوم لپاره یې هم خدمت وکړ، ده د خپل واک په وخت کې دوه مرکزونه درلودل، چې په ژمي به په مندېش کې او

په اوړي کې به په زميندا ور کې مېشت و او هلته يې د ژوند شپې او ورځې تېرولې.
امير کروړ د دې ترڅنګ چې يو تکړه جنګيالی و د پښتو ژبې په شعر کې هم مخکښ و او پښتو اشعار به يې ويل. د پټې خزانې مولف د لرغوني پښتانه چې د شيخ کته تاليف دی د امير کروړ د شعر نمونه تر موږه رارسولې ده چې دلته يې تاسې ته وړاندې کوم.

زه يم زمری پر دې نړۍ له ما اتل نشته
پر هند و سند و پر تخار او په کابل نشته
بل پر زابل نشته
له ما اتل نشته
غشی د من مې ځي برېښنا پر ميرخمنو باندې
پر ژوبله يونم يرغالم په تښتېدونو باندې
پر ماتېدونو باندې
له ما اتل نشته
زما د بريو پر خول تاوېږي هسک په نمنځ په وياړ
د اس له سو مې مځکه رېږدي غرونه کاندم لتاړ
کړم ايوادونه اوجاړ
له ما اتل نشته
زما د تورې تر شپول لاندې دی هرات و جروم
غرج و باميان و تخار بولي نوم زما په ادوم
زه پېژندوی يم په روم
له ما اتل نشته

پر مروه زما غشي لوني ډاري دښن راځخه
د هـریـرود پـر څنډو ځم تښتي پلن راځخه
رېږي زړن راځخه
له ما اتـل نسته

د زرنج سوبه مې د توري په مخ سورو کړه
په باداری مې لوړاوی د کول د سور کـړه
ستسر مې تربور وکړه
لــه مــا اتـــل نســـته

خـپلو وګـړو لـره لـور پـېرزوینه کــوم
دوی په ډاډینه ښه بامم ښه يې روزنه کوم
تل يې ودنه کوم
له ما اتل نسته

پر لویو غرو مې وینا درومي نه په ځنډو په ټال
نړۍ زما ده نوم مـې بـولي پـر دریغ ستایوال
په ورځو شپو میاشتو کال
لــه مـــا اتـــل نـــستــه

د امیر کروړ پورتنی شعر د پښتو لومړنی لاسته راغلی شعر دی چې تر دې دمخه موږ بل شعر په لاس کې نه لرو، البتـه لـه دې څخـه بـه وړانـدې نـور اشـعار هـم موجـود وو، خـو زمـوږ تـر ګوتـو نـه دي رارسېدلي، له دې امله دا لومړنی شعر بلل کېږي.

دا شعر د فخر کولو او ویاړ ښه لري او نومورې د خپل ځواک، شان و شوکت، مېړانې او خپل قوم ته د خدمت اظهار په کې کړی دی او دا د ده د جنګیالیتوب ښکارندویي کوي.

د شکل او جوړښت له مخې نه د پښتو د ملي نظمونو لکه لنډۍ، چاربیته، بګتۍ... په ډول دی او نه هم له عروضي نظمونو لکه غزل، قصیدې... سره سرخوري نو له همدې امله زموږ پوهانو لکه استاد حبیب الله رفیع دا شعر د پښتو د لرغونو سندرو په جمله کې حساب کړی دی. ددې شعر یوه بله ښېګڼه داده چې ټول لغتونه یې سوچه پښتو دي او د نورو ژبو لغات په کې نه دي کارول شوي، په داسې حال کې چې زموږ په زیاتره لرغونو منظومو او منثورو اثارو کې د عربي او پارسي لغات تر سترګو کېږي، خو بیا هم په دې شعر کې داسې لغات کارول شوي دي چې په اوسنۍ پښتو کې بېخي نه شته او یا هم ډېر کم تر سترګو کېږي چې هغوی هم خپله اصلي بڼه له لاسه ورکړې ده. د امیر کروړ پر دې شعر څه باندې دولس نیم سوه کاله تېرېږي او له تاریخي پلوه دا شعر پښتو ادب ته ډېر زیات ارزښت لري.

**ب- ملکیار هوتک:** ملکیار هوتک د بابا هوتک زوی او د پارو لمسی دی چې پر (**۷۱۵**هـ.ق) کال زېږېدلی دی، دده پلار په هغه وخت کې د خپل قوم مشر و، نوموړی یو تکړه، زړور او جنګیالی پښتون و. څرنګه چې مغولو جنګیالیو د پښتنو پر سیمو باندې زیات یرغلونه کړي وو، د دوی پر سیمه یې هم یرغل کړی و او د دوی ترمنځ سخت جنګونه هم پېښ شوي وو، ګڼ شمېر پښتانه او مغول په دې جنګونو کې ووژل شول.

کله چې بابا هوتک پر (۷۴۰هـ.ق) کال وفات شو له دې امله چې دی د پلار مشر زوی و، نو د قوم مشرتابه او مسولیت د ملکیار پر غاړه شو. په دغه وخت کې ملکیار (۲۵) کلن زلمی و، ده هم د خپل پلار غوندې د قوم مشري په ښه توګه وکړه، دی یو پیاوړی، باغیرته او واکمن ځوان و، همدارنګه دی یو هېوادپال سړی و. په خپله سیمه یانې سیوری کې یې د کورونو، کارېزونو او نور رغونیز کارونو کې خپل رول ترسره کړ. کله چې مغول له دې کارونو څخه خبر شول، د هغوی وحشي لښکرې دې سیمې ته راغلې او د دې ځای ټوله ابادي یې ویجاړه کړه او دوی هم مرغې او ړوب ته په تللو اړ شول، تر څه مودې وروسته یې له خپلې سیمې څخه مغول بېرته وشړل او مېشت شول.

ملکیار د رزم ترڅنګ د بزم خاوند هم و، د پښتو ژبې یو تکړه شاعر تېر شوی، ډېر خواږه اشعار یې ویلي چې اکثرو یې غنایي او عشقي بڼه درلوده، دده د شعر نمونه په لاندې ډول ده:

ترنک بهېږي ترنک بهېږي غاړې تر غاړې
زما زړګی خو خپل لالی غواړي
که روده روده د ترنک روده خاوند دی وچ کا
چې زړګی مومي زما خپله سوده
که نېز دی نېز دی نېز د بېلتون دی زړه نېزه وړی
په ویر ژړلی په غم زبون دی
که اور دی اور دی په زړه یې اور دی دا اور به وچ کا
د ویر نېزونه بل ډېر په زور دی
نمنځه یوسه سپینې سپوږمیه ورته وایه

چې ترنک ټال کړم ستا له خولګيه
که خړو خړو اوبو سوان کړئ بېل ملکيار دی
پاتې له يار دی سوب يې جانان دی.

که د ملکيار هوتک پورتنۍ سندرې ته په ځير سره وګورو، نو دا سندره تقريباً عشقي بڼه لري. شاعر د خپلې مينې اظهار په ډېره ښه توګه کړی دی او د شکل له مخې هم د پښتو د لرغونو سندرو له جملې څخه دی، په دې سندره کې شاعر د زمانې او همدارنګه د طبيعت له ناخوالو څخه سر ټکولی دی، چې دده او معشوقې او وصال پر وړاندې خنډ ګرځېدلی دی، چې د ترنک سيند يې د بېلګې په ډول ويلای شو.
د ملکيار هوتک دا سندره په ډېر خلاص زړه ويل شوې ده، ژبه يې ډېره ساده او روانه ده او د هر لوستونکي لپاره زړه راښکونکې ده. همدارنګه د هنريت خيال هم په کې ساتل شوی دی، نوموړې سندره د هماغه وخت د شرايطو، دود او دستور او همدا ډول د پښتني افکارو نماينده ګي کوي او په ډېر لوړ ذوق سره بيان شوې ده.
د يادولو وړ ده چې د ملکيار هوتک پورتنۍ سندره د پښتو د لرغوني ادب د لړۍ وروستۍ کړۍ ده، چې تر موږ رارسېدلې ده او عشقي يا غنايي مسايلو ته په کې اشاره شوې ده.

# د پښتو ادبیاتو په لرغوني دوره کې نثر



په دې دوره کې نثر لکه څنګه چې باید وای دومره په لاس نه لرو، دا ددې مانا نه لري چې پښتو به په نثر کې اثار نه درلودل، بلکې دا ویلای شو چې پښتو یوه لرغوني ژبه ده، لکه څنګه چې یې په نظم کې ډول ډول اثار درلودلې دي، دغه رنګه به یې په نثر کې هم اثار درلودل او پښتو نثر هم تاریخي ریښې لري، ولې هغه به هم لکه د پښتو نور اثار چې د زمانې ناوړو سېلابونو له ځان سره وړي دي، نثر به هم په دې سېلابونو کې ورک شوی وي. دغه وجه ده چې تر (۲۰۰هـ) څخه دمخه موږ هېڅ کوم کتاب نه لرو، یوازې د هاشم زید السرواني (۲۲۳-۲۹۷هـ) د سالو وږمه کتاب چې په نثر یې لیکلی دی او د هغه هم یوازې نوم راپاتې دی چې دا کتاب د عربي ژبې د شعرونو د فصاحت او بلاغت په بیان کې په پښتو نثر لیکل شوی دی.

د مغولو تر تاړاک (۲۰۰هـ) دمخه د پښتو ژبې ادبي مرکزونه غور، هلمند، ارغنداب او د ترنک ورشوګانې وې، څرنګه چې دغه مرکزونه د مغولو خونخوارو لښکرو وران کړل او د مدنیت یوه ښېلګه یې هم پرېنښوده، نو ښایي چې د پښتو کتابونه او اثار هم

ورسره تباه شوي وي، يو پوخ دليل شته چې تر (۲۰۰هـ) دمخه هم د پښتو نثر موجود و او د پوخوالي او متانت درجې ته رسېدلی و، ځکه د (۲۰۰هـ) په شاوخوا کې چې د نثر کومه نمونه موجوده ده هغه ډېره پخه، متينه او خوږه ده، د يوې ژبې نثر چې دې درجې ته رارسېږي، طبعاً يې بايد لومړني پړاوونه تېر کړي وي چې د کوچنيوالي له مرحلې څخه د پوخوالي درجې ته رارسېدلی وي. د مغولو چپاوونو، نه يوازې دا چې پخواني اثار يې له منځه يوړل، بلکې راوروسته دورو اثار يې هم په خپلو سېلابونو کې لاهو کړل. دغه وجه ده چې تر (۲۰۰هـ) څخه وروسته هم د کلونو کلونو په بهير کې موږ د نثر کوم پوره اثر په لاس کې نه لرو، يوازې د سليمان ماکو د (تذکرة الاولیا) چې ټولې څلور پاڼې دي يا اته مخه او ډک اووه مخه کېږي د هلمند د ناوې د ادم خان په کلي کې د زړو کتابونو د پلټلو پر مهال د لوی استاد پوهاند علامه عبدالحی حبيبي ګوتو ته ورغلې چې دا اووه مخونه هم له کلتوري، تاريخي، ادبي، عرفاني او ژبني پلوه د زيات ارزښت وړ دي، چې لومړی دا پر دوو برخو وېشلای شو:

الف- د سليمان ماکو خپله ليکنه چې په نثر ده او د شاعرانو ژوند ليک په کې راغلی دی.

ب- په تذکرة الاولیا کې د شاعرانو راغلی کلام چې په نظم دی.

سليمان ماکو د پښتو پخوانی مورخ او نثر ليکونکی دی. دده دغه تذکره د پښتو مشاهيرو او ادبي رجالو يو مفصل تاريخ دی، چې دی د هر سړي احوال بيانوي. د هغه علمي او روحاني مقام ښيي او بيا يې د شعرونو بېلګې او څه ويناوې رانقلوي. دا نثر د پښتو

پخوانیو شاعرانو په احوال او اثارو کې زمونږ یو پخوانی تاریخي او پوخ ماخذ دی، چې دی د هغو د ژوندانه احوال، اخلاق، کورني او هم ادبي موقعیت ښیي، نو ویلای شو چې دا د تصوف کتاب نه دی، بلکې د شعر او ادب یو قیمتي تذکره ده.

د سلیمان ماکو نثر ته که په تحلیلي نظر وکتل شي، نو په هغه ادبي چاپېریال کې چې دا نثر رامنځته شوی دی، حتمي به د دغو شرایطو تابع و.

۱- د پښتو ژبې خپل اثر چې سلیمان ماکو پښتون و او د پښتو ژبې ویونکی و، نو طبیعي ده چې دغه عامل به دده د نثر لیکنه کې موجود وو د هغو د لیکلو سبک به هم پر ده د روند اثر درلود.

۲- په پارسي ژبه کې چې کوم ادبي حرکت موجود و او د سلیمان چاپېریال یې نیولی او ضرور به یې دده پر نثر هم اثر کړی وي.

۳- په دغه وخت کې عربي ادب او ژبې هم پوره او بشپړ اثر کړی و، پخپله پارسي نثر هم په لومړیو وختو کې تر دغو اغېزو لاندې وده وکړه (۵۰۰هـ) په شاوخوا کې چې کوم پارسي منثور کتابونه ولیکل شول د عربي ژبې اغېز په کې څرګند دی، ځکه چې پښتانه هم له عربي ثقافت سره د دغې زمانې په بهیر کې اړیکي لري، نو پر پښتو هم د عربي اثر شوی دی.

په لفظي لحاظ د سلیمان ماکو نثر خوږ، ساده، روان او له ځانګړي اهنګه ډک دی، په خاصو ځایونو کې یې سجع کارولې چې نثر ته یې زیاته ښکلا وربښلې ده او له عمومي محاورې څخه لرې نه ده، جملې یې لنډې دي، مقصد لنډ بیانوي او په معنوي لحاظ د اسلام او مذهب تاثیر په کې ښکاري. په دې دوره کې نور داسې کتابونه نه

لرو چې هغه هم په نثر کې ليکل شوي وي، خو يوازې نومونه او ځينې محتويات يې د ځينو تذکرو په حواله لاسته راغلي دي.
د سليمان ماکو تذکره له ژبني پلوه د درېو ژبو له لغتونو څخه جوړه ده: الف- پښتو، ب- عربي او ج- فارسي. دا نثر د ګرامر له پلوه سره توپير لري او همدا ډول ځينې متروکې او ورکې کلمې هم لري.
تر دې نثر وروسته نور نثرونه چې دي، هغه په (۷۵۰هـ) کې تاريخ سوري هغه کتاب دی چې د پټې خزانې مولف يې د شيخ کټه د لرغوني پښتانه په حواله نوم اخلي او دا کتاب د شيخ کټه په لاس کې و او په لرغوني پښتانه کې يې ډېر مواد له دغه کتابه رانقل کړي وو، ددې کتاب ليکوال محمد بن علي البستي دی چې په بُست کې اوسېده.
پټه خزانه داسې څرګندوي چې دا کتاب په پښتو ليکل شوی او په هغه کې يې د سوريانو د کورنۍ حال او احوال بيان کړي. د هغو کورنيو، سياسي او ادبي شخصيتونو همدارنګه د تاريخي او سياسي پېښو د پېژندنې تر څنګ يې ادبي رنګ هم درلود، ددې خبرو ښه ثبوت د (تاريخ سوري) هغه محتويات دي چې موږ ته په دوو واسطه لاسته راغلي دي.
الف- شيخ کټه ((لرغوني پښتانه)) کې له تاريخ سوري څخه مواد اخيستي دي.
ب- د پټې خزانې مولف ((محمدهوتک)) له ((لرغوني پښتانه)) څخه په خپل کتاب کې ځينې مواد را اخيستي دي، هغه اثار دادي:
۱- د امير کروړ احوال او دده وياړنه.
۲- د اسعد سوري احوال او قصيده يې.

۳- د ښکارندوی غوري احوال او قصيده يې.

تر تاريخ سوري څخه راوروسته د پښتو نثر بل کتاب چې ((اعلام الوزی فی اخبارلودی)) نومېږي او پر (۶۸۲هـ) کال احمد لودي ليکلی دی، ددې کتاب پته هم نه شته او دا کتاب هم د لودي پاچاهانو د احوال او اشعارو يوه ټولګه ده چې تر يولسمې هجري پېړۍ پورې لاموجود و، تر دې راوروسته د (۷۵۰هـ) په شاخوا کې د يوه بل تاريخ د نامه څرک لګېږي دا کتاب (لرغوني پښتانه) نومېږي چې شيخ کته متي زي ليکلی دی او اوس هغه ورک دی خو داسې څرګندېږي چې دا کتاب تر (۱۱۴۲هـ) پورې د پټې خزانې د مولف محمد بن داود سره و ځکه چې محمد هوتک ددې کتاب ډېره يادونه کړې ده او د شاعرانو ډېر احوال يې له دې کتاب څخه راوړي دي او دا د پټې خزانې لوی ماخذ دی.

دا کتاب په نثر او نظم کې د پښتنو پوهانو، شاعرانو او جنګياليو مهمه ذخيره ده چې نثر يې ښه پوخ، خوږ او روان دی.

د شيخ ملي دفتر هم په دې دوره کې د نثر هغه کتاب دی چې د (۸۳۰هـ) په شاوخوا کې ليکل شوی دی، چې په دې کتاب کې د يوسفزو د يون او فتوحاتو احوال، د پېښور او سوات په سيمو کې د دغه ولس تاريخي پېښې او د ځمکو د وېشلو د قانون بيان په کې ليکل شوی و.

(د پښتنو تاريخ) هم هغه منثور تاريخي او قانوني اثر و چې کجوخان رانيزي پر (۹۰۰هـ) کال د دفتر د تکميل لپاره ليکلی و، دا کتاب هم اوس په لاس کې نه لرو.

# اخځونه

۱- حبیبي عبدالحی، د پښتو ادبیاتو تاریخ، لومړی او دویم ټوک، دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۴ل کال.
۲- هوتک محمد، پټه خزانه، مومند خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۹ل کال.
۳- زیور ډاکتر زیورالدین، د پښتو ادبیاتو تاریخ، لرغوني دوره، مومند خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۹ل کال.
۴- یون محمد اسمعیل مقاله (( د تذکرة الاولیا ځانګړتیا او لرغوتیا)).

# د لرغونې او منځنۍ دورې د ادبیاتو ترمنځ توپیرونه



د پښتو لرغوني ادبیات زموږ ګران هېواد په څو مهمو مرکزونو (غور، ملتان او د کسي غر) کې لږ او ډېر لاسته راغلي. دا درې هغه مرکزونه دي چې پښتنو په کې خپل محلي حکومتونه کړي او یا یې د خپلې قبیلې تر نظام لاندې ژوند کړی دی، د پښتونخوا او د افغانستان په نورو سیمو کې پښتانه خواره وو او د سند او پنجاب تر لمنو رسېدلي وو.

د پنجاب په یوه خورا لرغوني ښار ملتان کې یې حکومت هم جوړ کړی و. په دې مرکزونو کې چې کوم ادبیات منځته راغلي دي هغه ادبیات دا لاندې خصوصیات لري:

۱- د اسلام په لومړیو پېړیو کې د پښتو ایجاد شوي ادبیات د خپل شکل او جوړښت له مخې له زړو اریایي ادبیاتو سره نږدېوالی لري او د پښتو خپل شعري اوزان دي چې د اسلام د لومړیو څلورو پېړیو په دوران کې په دغو مرکزونو کې ایجاد شوي. پښتو اشعار به په خپلو دغو لرغونو ملي اوزانو کې ویل کېدل.

۲- په دغو سندرو کې ډېر پېچلي موضوعات نه، بلکې د هغه زمان د پښتنو موقف ته پاملرنه د مناظرې، جنګي او حربي کارنامو ويار، له خپل قوم او کورنۍ سره مينه ددې سندرو اساسي موضوع ده او د اسلامي اساساتو حمايت په دغو سندرو کې شامل دی.

د پښتو ادبياتو لومړۍ دوره له دويمې دورې سره کامل توپير لري، په هر لحاظ په دې دوره کې پښتو ادبيات د افغانستان او پښتونخوا او هند په سيمو کې له ځينو ملي، مذهبي او پښتني احساساتو سره په ارتباط کې ايجاد ېږي.

د منطقې مسلط فرهنګي او ادبي جريان پر پښتو ادبياتو خپل پوره اغېز کوي او د همدغو جرياناتو په پيروۍ کې خپل ځانګړې سبکونه پيدا کوي او ځانته خپل خاص اوربېدونکي او پيروان مومي.

ددې دورې ځانګړې توپير په دې کې هم دی چې ددې دورې ځينې بشپړ اثار په لاس کې لرو او د لومړۍ دورې ځينې اثار له موږ سره شته، خو يو شمېر زيات يې زموږ په لاس کې نه شته، يا ورک شوي او يا د وخت په تېرېدو سره له منځه تللي دي. د هرې دورې د شاعرانو سبک توپير کوي، د لومړۍ دورې د شاعرانو سبک د دويمې دورې د شاعرانو له سبک سره ډېر توپير لري.

د لسمې هجري پېړۍ په دوران کې بايزيد روښان د خاصو سياسي، اجتماعي، فرهنګي شرايطو او تمايلاتو تر اغېزې لاندې يو عرفاني حرکت پيل کړ. د پيرۍ او مريدۍ سلسله يې جاري کړه او خپل مبادي او لارښوونه يې په ډېرو ښکلو الفاظو کې په پښتو، پارسي،

عربي او هندي اثارو کې تنظیم کړه، نو دغه مهال د نظم او نثر یوه غټه زېرمه په پښتو کې پیدا شوه.
۳- د اسلام د مقدس دین د لومړیو پېړیو پاړکي لکه چې د شکل او جوړښت له پلوه خپله ملي بڼه لري، د نورو ژبو د شاعرۍ اغېزې پر دې شعرونو زیاتې نه لیدل کېږي او د نورو ژبو اثرات په کې کم لیدل کېږي. هغه یو نیم د عربي ژبې او نورو ګاونډیو ژبو لغتونه په کې شتون لري، دا ډول اخیستنې د پاک اسلام د دین راتګ او له نورو ژبو سره د ګاونډیتوب له امله یا د راشې درشې له امله یو طبیعي عمل دی.
۴- په دغو مرکزونو کې ایجاد شوي اشعار ساده او هنري رنګیني دومره نه لري، ویناوالو یې سیده د خپل مطلب پر ویلو پیل کړی دی او د هنري رنګینیو خیال یې نه دی ساتلی.
دویم- د کسي غر: دا هم یوه لرغونې سیمه ده چې پښتانه له ډېرې پخوا زمانې څخه هلته مېشت دي او دې غر ته اکثره خلک د سلیمان غر هم وایي، چې په پوره اندازه پښتانه هلته اوسېږي.
څنګه چې د کسي په غره کې پښتانه اوسېدل نو هماغسې د خپلې ټولنې له شرایطو سره سم برابر ادبیات یې هم درلودل. هغه ادبي اثار ددې غره د خلکو په منځ کې او د ټولو لرو او برو پښتنو په منځ کې په شفاهي او تحریري بڼه تر اوسه هم شتون لري او په لسګونو پښتانه شاعران په دې غره کې زېږېدلي او روزل شوي دي، چې له هغې جملې څخه یو هم شیخ بیټني بابا دی چې تر ټولو معلوم او پخوانی کس دی چې د کسي د غره په لمنه کې روزل شوی او د ژوند دوره یې د درېیمې هجري پېړۍ په شاوخوا اټکل کېدی شي.

دریېیم- غـور: غـور زمـوږ د ګران هېـواد افغانسـتان یـوه لرغـونې او تـاریخي سـیمه ده چې د پاچاهیو سلسـلې پـه کې تېـرې شـوي او د پښتنو په لرغونو استوګنځایونو کې یـوه هـم د غـور سیمه ده چې د پښتنو قبیلو په منځ کې د غوریانو یا غوریاخېلو په نامه یاد یږي.

دې قبیلې هم د پښتو لرغونو ادبیاتو پـه برخـه کې زیارونـه ایسـتلي دي او له هغه وخت سره سم یې خپل ادبیات درلودل او پښتـو تـه یـې خدمت کاوه، شفاهي او تحریري ادبیـات دواړه یـې درلـودل. لـه دې جملې څخه یو هم امیر کروړ دی چې د پـر پخـوانی شـاعر دی د هغـه یو شعر لاسته راغلی دی چې ویاړنه یې بـولي، ښـه روان شعـر دی او سوچه پښتو لغتونه یې کارولي دي.

# په پښتو لرغونو ادبياتو کې جغرافيايي نومونه



دا چې هر هېواد لرغوني جغرافيايي نومونه لري، نو زموږ هېواد افغانستان چې پنځه زره کلن تاريخ لري، ډېر لرغوني جغرافيايي نومونه لري. زه دلته د ځينو هغو مشهورو سيمو نومونه اخلم چې د پښتو د لرغونو ادبياتو د نظم او نثر په بېلګو کې يې يادونه شوې ده:

**۱- بالشتان**: د جنوبي غور مشهور ښار و، چې ځينو مورخينو والشتان هم ليکلی دی.

**۲- مندېش**: د غزنويانو او غوريانو په وخت کې منديش مشهور ښار و، چې بيهقي او ګرديزي او جوزجاني يې هم نوم اخلي.

**۳- د خيسار کلا**: دا کلا په غزنوي او غوري دورو کې د مغولو تر تاړاکه مشهوره وه، اوس قيصار په ممبي پورې اړه لري.

**۴- تمران**: د تيموري قبيلې ځای دی چې د غور شرق خواته پروت و.

**۵- برکوشک**: ياني دغه لوړه ماڼۍ وه چې فيروزکوه کې پرته وه.

**۶- پوشنج**: د ياقوت په قول له هراته لس فرسخه لرې يو ښار و.

**۷- غرجستان**: غرجستان چې د غور او هرات له شمال نه پیل تر امو پورې او په لویدیځ کې تر مرغابه او مروالرود پورې رسېږي او په ختیځ کې له بلخ سره نښلي.
**۸- قصدار**: په اوسني بلوچستان کې یو ښار دی چې اوس یې خخدار بولي.
**۹- هلمند**: په اوستا کې د هلمند یادونه د هنرمند په نوم شوې دا سیمه تر میلاد (۳۰۰۰) کاله وړاندې تاریخ لري چې د بست ښار یې مهم دفاعي ښار و.
**۱۰- پکتیکا**: دا هم یو لرغونی جغرافیایي نوم دی، ځکه د یونان یو مشهور تاریخ لیکونکي هیروډوټ (**۴۸۴- ۴۲۵**ق.م) هم په خپله مشهوره **جغرافیه** کې د پښتنو ذکر کوي، دی د پښتنو هېواد (پکتیکا) په نامه یادوي او په پکتیکا کې د سلیمان غر، د جرکني غر او د ګومل سیند، د سه ګاني غونډۍ تاریخي ځایونه دي چې زه به د ګومل د سیند په باره کې لږ څه **معلومات** درکړم.
**۱۱- ګومل سیند**: ګومل سیند د پکتیکا ولایت د جنوب خواته د سلیمان له غره سره مستقیم تېر شوی چې ان تر جنوبي وزیرستان پورې امتداد لري، دایمي اوبه نه لري، خو د بارانونو په موسم کې په کې اوبه ډېرې وي.
د ډیورنډ کرښه هم یو ځل د یو څو هئیتونو له خوا څو ځله لاسلیک شوه د ګومل او کرمې د سیندونو ترمنځ خو دا مسئله حل نه شوه ځکه چې یو طرفه ښه یې لرله.

۱۲- غـور: دا یـو تـاریخي ولایـت دی، دا ولایـت ډېـرې دفـاعي کلاګانې لري تر ټولو مشـهوره کـلا یې د قیصر کـلا ده چې سلطان علاوالدین اباده کړې وه او بل د (مینار) جام دی.

۱۳- هرات: هرات د هېواد له شمال غربي ولایتونو څخه دی چې ډېر تاریخي ولایت دی. سکندر مقدوني د هرات ښار د ((اتاکان)) یا ((ارتکایا)) په نوم یاد کړی دی. پر دې خاوره یونانیانو، کوشانیانو، یفتلیانو، ساسانیانو او تیموریانو واکمنۍ ترسره کړې دي.

۱۴- بخدي (بلـخ): د پخواني اریایـانو مرکز و چې بـل نـوم یـې د بیرغونو ښار و چې دا هم یو لرغونی ښارګوټی و.

۱۵- سور غر: دا غر ډېر مشهور غر دی چې د کلات شمال شرقي خواتـه واقـع دی. کلـه چـې بـه پـه هغـه وخـت کـې هـر ځـل مغولـو د ارغنداو پر غـاړو لـوټ کـاوه اتغـر، بـولان او کـلات بـه یـې تـالاکـول باباهوتک خپل قومونه راټول کړل او په سره غره یې حمله وکړه، په دې جګړه کې مغول تالاشول. د بابا هوتک په یوه جنګ کې چې پښتانه د مغولو په مقابل کې لږ څه کمزوري شول، نو ده د ځوانانو د احساساتو د راپارولو لپاره دا لاندې سندره وویله:

پـــر ســـور غـــر بـــل راتـــه نـــن اور دی
وګړیـــــه جـــــوړ راتـــــه پېغـــــور دی
پـــر کلـــي کـــور بانـــدې مغـــل راغـــی
هـــم پـــه غزنـــي هـــم پـــه کابـــل راغـــی
غښـــتلیو تنـــګ کـــړئ دا مـــو وار دی
مغـــــل راغلـــــی پـــــه تلـــــوار دی

پــــه پښـــــتونخوا کـــــې یـــــې ناتـــــار دی
پـــــر کلـــــي کـــــور بانـــــدې مغـــــل راغـــــی

**۱۶ - مهمند**: دغه کلی اوس هم په دې نامه یادېږي، په کندهار کې دی.

**۱۷ - قصرنارنج**: دا قصر په کندهار کی دی.

**۱۸ - لغمان**: د دې ولایت پخوانی نوم (لمپاکا) و چې بطلیموس یاد کړی او بیا د وخت په تېرېدو سره لقمان او بیا لغمان شو.

**۱۹ - بامیان**: دا ولایت هم لرغونی دی چې د بودا مجسمې هم په دې ولایت کې دي.

**۲۰ - دیبل**: د عربو سمندرګي پر غاړه یو ښار و چې اوسنۍ کراچۍ ته نږدې دی.

## اخځونه


۱ - پټه خزانه، دویم چاپ، ۱۳۳۹ل کال.

۲ - افغانستان پېژندنه، اورنګزیب ارشاد ، ۱۳۸۴ل کال.

# په پښتو لرغونې شاعرۍ کې رزمي روحيه



که موږ پښتو ادبياتو ته نظر وکړو، څه په لرغونې دوره کې، څه په منځنۍ دوره کې او څه هم په اوسنۍ دوره کې، ټولو کې رزمي روحيه ليدل کېږي، ددې يو مهم علت دادی چې پښتانه همېشه او يا يې زيات وخت له جنګونو سره مخامخ شوي، جګړې پرې تپل شوي او جګړو ته يې ځواب ويلی دی. نو په دې خاطر رزمي روحيې پر پښتو ادبياتو په مستقيم او نا مستقيم ډول اغېز کړی دی.
تصادفي نه ده چې پښتو لومړنی لاسته راغلی شعر هم فوق العاده رزمي روحيه لري.

د پښتو د ادبي تاريخ يوې مهمې منبعې پټې خزانې په حواله امير کروړ د امير پولاد سوري زوی و، چې پر (۱۳۹هـ.ق) کال د غور په منديش کې پاچا شو.

امير کروړ د غور کلاوې، بالشتان، خيسار، تمران، برکوشک او نورې ونيولې. دده پاچاهي دوه مرکزه درلودل، امير کروړ ډېر غښتلی پهلوان و چې په يوازې ځان به له سلو تنو سره جنګېده. دده د عباسي دعوت په جنګونو کې هم ګډون درلود او ډېرې برياوې يې ترلاسه کړې وې.

امیر کروړ عادل پاچا و او پر دې سربېره ده په پښتو اشعار هم ویل.
امیر کروړ پر (۱۵۴هـ.ق) کال د پوشنج په جګړو کې مړ شو او پرځای یې دده زوی امیر ناصر پاچا شو.
د امیر کروړ کوم شعر چې پټې خزانې راوړی دی دادی:

زه یـــم زمری پر دې نړۍ له ما اتل نسته
پر هند و سند و پر تخار او په کابل نسته
بل په زابل نسته
له مـا اتـل نسته
غشی د من مې ځي برېښنا پر میرخمنو باندې
پــر ژوبــله یــونم یــرغالم پر تښتېدونو باندې
پر ماتېدونو باندې
له مـا اتــل نـسته
زما د بریو پر خول تاوېږي هسک په نمنځ په ویاړ
د اس له سو مې مځکه رېږدي غرونه کاندم لتاړ
کړم ایوادونه اوجاړ
له ما اتـل نــسته
زما د توري تر شپول لاندې دي هرات و جروم
غرج و بامیان و تخار بولي نوم زما په ادوم
زه پېژندوی یم په روم
لـــه مـا اتــل نـــسته
پر مروه زما غشي لوني ډاري دښن راځخه
د هـریرود پــر څنډو څـم تښتي پلن راځخه
رېږي زړن راځخه
له ما اتل نسته

د زرنج سوبه مې د تورې په مخسور و کړه
په باداری مې لوړاوی د کول د سورو کړه
ستر مې تربور وکړه
لــه مـا اتــل نــسته
خــپلو وګــړو لـــره لور پــېرزوینه کـــوم
دوی په ډاډ ینه ښه بامم ښه یې روزنه کوم
تل یې ودنه کوم
له ما اتـل نستــه
پر لویو غرو مې وینا درومي نه په ځنډو په تال
نړۍ زما ده نوم مـې بـولي پــر دریـځ ستایوال
پـه ورځو شپو میاشتو کال
لـــــه مـــــا اتـــــل نستـه

دا لـوړ شـعر د پښـتو تـر ټولو پخوانی لاسته راغلی شعر دی چې د اسلامي عصر په دویمه پېړۍ کې د غور یوه پښتون پاچا امیر کـروړ سـوري ویلـی دی. تـر دې شـعره بـل پخوانی شعر لاتـر اوسـه نـه دی ترلاسه شوی، امکان لري په راتلونکي کې د امیر کروړ تر شعر ډېر پخواني پښتو اشعار کشف شي.
د امیر کروړ د شعر ژبه لاتر اوسه خپله رواني لري، سره لـه دې چې ځینې لغات یې په عامه پښتو کې نه استعمالېږي، خو بیا هم دا ژبه ډېره سخته او نا اشنا نه ده او کېدی شي چې ځینې لوستونکي دا

پوښتنه وکړي چې په دې څه دپاسه دوولس نیم سوو کلونو کې په پښتو کې ډېر زیات ژبنی تحول نه دی راغلی؟
د امیر کروړ پورتني شعر ته په کتو سره ویلای شو، چې پښتو لومړنی لاسته راغلی شعر هم په رزمي روحیه پیل شوی دی.
د اوومې پېړۍ د دویمې لسیزې په دوران کې (۶۱۷هـ.ق) د چنګېز د تالانګرو لښکرو حملې د افغانستان پر ځینو ښارونو او اسلامي فرهنګي مرکزونو پیل شوې، د دغو تباه کارو لښکرو د جنګونو خونریزیو او تالان په نتیجه کې ښارونه پر کنډوالو بدل شول، انسانان ووژل شول او فرهنګي مرکزونه خراب شول، عالمان، شاعران او د فرهنګ لوی شخصیتونه یا ووژل شول او یا د خپلو ټاټوبو پرېښودلو ته اړ شول، کتابتونونه او کتابونه له منځه لاړل.
دغه وخت زموږ په هېواد کې د غزنویانو او غوریانو شاهي کورنیو اقتدار ختم شوی و، پر شمالي برخو یې خوارزم شاهانو حکومت کاوه، پر سیستان او شاوخوا سیمو د نیمروز محلي حکمرانان مسلط وو، په هرات کې آل کرت کورنۍ حکومت درلود او د افغانستان په شرقي برخو کې ځینې داسې کسان حاکمان وو چې پخوا غوریانو ګومارلي وو. چنګېز اودده اولادې د اوومې پېړۍ په جریان کې زموږ د هېواد پر بېلابېلو برخو حاکمیت درلود او په ډېره بې رحمۍ یې ددې هېواد بېوزلي ولسونه وژل.
د چنګېز، دده د اولادې او پاتې شونو، د لښکرو پر وړاندې د مقاومت موضوع د پښتو په لرغونو ادبیاتو کې منعکس شوې ده.
محمد هوتک په پټه خزانه کې د بابا هوتک یوه داسې سندره راوړې ده چې د مغولو د تالانګرو لښکرو پر وړاندې د افغانستان د

یوې سیمې د پښتنو د مقاومت څرګونه ځینې ایستل کېږي، هغه سندره داده:

پـــر ســـور غربـــل راتـــه نـــن اور دی
وګړیـــه جـــوړ راتـــه پېغـــور دی
پـر کلـي کـور بانـدې مغـول راغـی
هـم پـه غزنـي هـم پـر کابـل راغـی
غښـــتلیو ننـــګ کـړئ دا مـــو وار دی
مغـــل راغلـــی پـــه تلـــوار دی
پـــه پښـــتونخوا کـــې یـــې ناتـــار دی
پـر کلـي کـور بانـدې مغـل راغـی
آ دمرغـــــې غښـــــتلیو راســــئ
پـــر ننـــګ ولاړ د پښـــتونخوا ســـئ
تـــورې تېـــرې غشـــي تـــر مـــلا ســـئ
پـر کلـي کـور بانـدې مغـل راغـی
زلمـــو پـــه غشـــیو کـــړئ وارونـــه
د تېـــــرو تـــــورو ګوزارونـــــه
ور وړانـــدې کـــړئ خپـــل ټټرونـــه
پـر کلـي کـور بانـدې مغـل راغـی
زمـــا د زلمـــو وینـــې بهېـــږي
ځمکـــې او غرونـــه پـــه ســـره کېـــږي
میرخـــــی ځغلـــــي او ترهېـــــږي
پـر کلـي کـور بانـدې مغـل راغـی

پښتـــــتنو هلـــــئ پـــــه غـــــره جنـــــګ دی
ســـــور غـــــر پـــــه وینـــــو د دوی رنـــــګ دی
مهـــــال د تـــــوري دی د ننـــــګ دی
پـــــر کلـــــي کـــــور بانـــــدې مغـــــل راغـــــی
زلمـــــو پـــــر ننـــــګ ځانونـــــه مـــــړه کـــــړئ
دښـــــن پـــــه غشـــــیو مـــــو پییـــــه کـــــړئ
د پښتـــــتونخوا ځمکـــــې ســـــاته کـــــړئ
پـــــر کلـــــي کـــــور بانـــــدې مغـــــل راغـــــی.

د پټې خزانې له بیان سره سم هر کله به د مغولو لښکرو د ارغنداو پر غاړو لوټ کاوه د اتغر او بولان سیمې به یې تالاکولې، نو ددې سندرې ویونکي باباهوتک خپل خلک راټول کړل او سره غره ته نږدې یې له مغولو سره جنګونه وکړل، په دې جګړه کې د پښتنو قوت لږ و او غلیم ډېر و، خو کله چې باباهوتک په لوړ اواز دا سندره وویله، نو زلمي به په جګړه کې تود ېدل او سوبه د پښتنو په نصیب شوه. دا سندره د خپل شکلي جوړښت له پلوه زموږ ادبپوهانو د پښتو په لرغونو سندرو کې حساب کړې ده، د مضمون له پلوه یې محتوی رزمي ده چې د پردو لښکرو او تالانګرو په مقابل کې له وطن نه د دفاع مفکوره په کې منعکس شوې ده او خلک یې د پردو د تسلط پر وړاندې مقاومت ته رابللي دي.

رزمي روحیه له پښتو لرغونو ادبیاتو څخه همداسې منځنۍ او معاصرې دورې ته راغځېدلې ده، د روښانیانو د تحریک په

ادبیاتو کې د مذهبي روحیې ترڅنګ رزمي هم لیدل کېږي، خوشال او د هغه پیروان خو بېخي د بزم او رزم شاعران دي او په معاصره دوره کې بیا د انګرېزي یرغل پر وړاندې مونږ د رزمي ادبیاتو ډېرې بېلګې لرو، خو څرنګه چې زما موضوع په پښتو لرغوني شاعرۍ کې رزمي روحیه وه، نو ځکه مې په لنډیز سره یو دوو بېلګو ته اشاره وکړه.

# د پښتو لرغوني نظم قافيه يي څرنګوالی



د پښتو ادبياتو په لرغونې دوره کې د نثر په انډول د نظم برخه درنه ده، نظم هغه کلام دی چې وزن ولري، قافيه هم د نظم يو رکن دی، خو اساسي رکن يې نه دی، له قافيې پرته يو نظم جوړېدلای شي، خو له وزن پرته د نظم جوړېدنه ممکنه نه ده، نو ځکه ويلای شو چې وزن د نظم اساسي عنصر دی او قافيه يې فرعي، خو اکثره نظمونه قافيه لري، ځينې يې رديفونه لري خو ځينې يې نه لري، بيا تر رديفه قافيه په نظمونو کې ډېره کارول کېږي، هغه شعري فورمونه چې له عربي څخه پښتو ته راغلي هغو کې د قافيې استعمال حتمي دی، قافيه په لغت کې وروسته، شا، څټ او ورپسې تلونکي ته وايي او په اصطلاح کې هغه پوهنه ده چې د بيتونو د دورونو د پای کلمو له غږونو څخه بحث کوي. قافيه تر دوو زيات مشترک اوازونو ته ويل کېږي، يانې داسې کلمې چې په خپل منځ کې لږ تر لږه دوه مشترک غږونه ولري. پوهان قافيه پر څو ډوله وېشي، ازاده يا مطلقه قافيه، مقيده يا تړلې قافيه، يوه ستوې قافيه، غبرګه قافيه او ځينې نور ډولونه. په پښتو ادبياتو کې د امير کروړ نظم يو قافيوال نظم دی، دلته به زه په ترتيب سره په پښتو لرغونې دوره

کې د ځینو قافیه والو نظمونو ځینې برخې د بېلګې په توګه یادې کړم:

زه یم زمری پر دې نړۍ له ما اتل نسته
پر هندو سندو پر تخار او پر کابل نسته
بل پر زابل نسته
لـه ما اتل نسته

دلته (اتل، کابل او زابل) د قافیې کلمې دي، (نسته نسته) یې ردیفونه دي (ل) (ل) او تر هغه دمخه حرکتونه یې مشترک غړونه دي.

لویــــه خدایــــه لویــــه خدایــــه
ســــتا پــــه مینــــه پــــه هرځایــــه
غـــــر ولاړ دی درنــــــاوي کــــــې
ټولــــــه ژوي پــــــه زاري کــــــې
دلتــــــه دي د غـــــــرو لمنــــــې
زمـــورږ کېـــږدۍ دي پـــه کـــې پلنـــې
دا وګـــــړي ډېـــــر کـــــړې خدایــــه
لویــــه خدایــــه لویــــه خدایــــه

په لومړي بیت کې (خدایه او ځایه) د قافیې کلمې دي، ردیف نه لري، په دویم بیت کې (درناوي او زاري) د قافیې کلمې دي (کې کې) ردیف دی. په درېیم بیت کې (لمنې او پلنې) د قافیې کلمې دي ردیف نه لري.

کـه یـون دی یـون دی　　　مخکې بېلتون دی
لـه کـسي غـره څـخه　　　ځــي خـربښبون دی

(یون، بېلتون او خربښبون) د قافیې کلمې دي، (دی دی) ردیف دی.

د فـلـک لـه چـارو څه وکړم کوکار
زمولوي هر ګل چې خاندي په بهار

(کوکار او بهار) د قافیې کلمې دي ردیف نه لري.

د پسرلي ښکلونکي بیا کړه سینګارونه
بـیا یـې ولـونـل پـه غـرونـو کـې لالونه

(سینګارونه او لالونه) د قافیې کلمې دي.

تر دې ځایه چې پـه نظمونـو کې قافیـه یـې څرنګـوالي تـه ګـورو، نـو اکثـره نظمونـه پـه تـول برابـر دي، خـو یـو نـیم ځـای پـه کـې قافیـه نیمګړتیاوې ښکاره کېږي، لکه:

ژبه هم ښه وینا کاندي چې یې وینه
د خاوند په لاس کې زر او درهمونه

په دې کې (وینه او درهمونه) قافیه شوي چې سستـه غونـدې قافیـه جوړوي او مشترکات یې کم دي.

یـا هـم د شـیخ اسـعد سـوري پـه قصـیده کـې چـې (اوجـاړ) کلمـه لـه (کوکار، بهار، تار، خونخوار) او نورو سره هم قافیه شوې ده.

ښېتـن مو مل دی، اوس مو یرغل دی، هېواد د بل دی

دلته (مل، یرغل، بل) د قافیې کلمې دي ( دی دی) ردیف دی.

نـن زه غــړېږم پـه صـفت د سلطان
چې دی بادار غازي ملک د جهان

جهان او سلطان د قافيې کلمې دي.

ګهيځ رڼا د لمر خپره سوه
زما پر کور د وير ناره سوه

دلته (خپره او ناره) د قافيې کلمې دي، (سوه، سوه) رديف دی.

پـر لـويـو غـرو هم په دښتو کې
پـه لوی سهار پـه نيمو شپو کې
پـه غـاړه ږغ او پـه شپېلکو کې
يـا د ويـرژلـيو پـه شپېلـو کې
ټول ستا د ياد نارې سورې دي
دا ستـا د مـينې ننـدارې دي

په پورته درېيو سربيتونو کې (دښتو، شپو، شپېلکو او شپېلو) د قافيې کلمې دي او (کې کې) رديف دی. پـه وروستي بيـت کـې (سورې او ننداري) د قافيې کلمې دي او (دي دي) رديف دی.

زه عاشق يم يار هم نيز
بـل څـه نـه لـرو تميز

(نيز او تميز) د قافيې کلمې دي رديف نه لري.

ساقي پاڅه پياله راکړه
مرور يار مې پخلا کړه

(را او پخلا) د قافيې کلمې دي (کړه کړه) رديف دی.

اوربدلي مې قصه ده          چې له شاتو هم خوږه ده

(قصه او خوږه) د قافيې کلمې دي (ده ده) رديف دی.

همداسې ترپايـه پـورې د پښـتو لرغونو ادبيـاتو پـه نظمي برخـه کـې قافيـه پـه ښـه ډول مراعـت شـوې خـو ځـای نـيم پـه کـې ځينـې نيمګړتياوې هم ليدل کېږي.

# د شیخ اسعد سوري د قصیدې هنري او فني ارزښت

سریزه:
اصلي موضوع چې زما په تحقیق او څېړنې پورې اړه لري هغه د شیخ اسعد سوري د ویرنې هنري اهمیت په ګوته کول دي، خو مخکې تر دې لازمه بولم چې د قصیدو د ادبي او هنري صنف پر تاریخي پس منظر رڼا واچوم او هغه په دې ډول.

بولله (قصیده) د ختیزو ادبیاتو په دایره کې یوه ډېره با ارزښته او د سرو زرو په تول برابره برخه تشکیلوي، چې په خاص ډول د عربي، دري، پښتو او اردو ژبو د ادب یوه ډېره ښکلې او منلې زېرمه او سرمایه په حقیقت کې همدغه قصیده ګڼل کېږي.

قصیده په عربي اصطلاح کې هغه متوصل او بې عیبه اصلاح شوي کلام او موزون شعر و چې د بیتونو شمېر به یې له (۱۲) نه تر (۱۷) بیتونو پورې و او له دې څخه به کم نه وو او دا نوم له اره د قصد له مخرج او مصدر څخه جوړ او مرتبط شوی چې مانا یې استقامت، اصالت او سموالی دی او له بل پلوه د برابرۍ او سوچه والي مالګه ورسره هم ګډه وه.

قصیده په عربي ادب کې تر اسلام وړاندې هم موجوده وه، نو له دې نه داسې معلومېږي چې قصیده په موجوده بڼه او ګاڼه کې د پورته

لیکل شوي تعریف او پېژندنې له مخې د نورو ملتونو ادبپوهانو او څېړونکو له عربي ادب نه کتې متې یا په لږ او ډېر تغیر تر ګوتو کړې وي. د عربو له جاهلي او شهل ادب څخه موږ ته هغه اوړدې او په عین حال کې رواني او ساده قصیدې د نمونې په توګه راپاتې دي، چې د عربي ادبیاتو په اصطلاح کې ورته (معلقات سبعه) وایي او دغه شاعران تر اسلام دمخه په عربو کې تېر شوي دي. د څېړونکو د وینا او لیکنې له مخې ویلای شو چې عربي قصیده په شګلنو دښتو کې د مېشتو پرګنو د قبیلوي ژوند یو زړه راښکونکی او ښایسته تصویر و.

د دغو عربي قصیده ویونکو قصیدې به په مجموع کې له (۱۲) څخه نیولې تر (۱۰۰) بیتونو پورې غزېدلې وې، که زه په دې اړه د کتابونو په مرسته وغواړم چې د قصیدې ادبي ناوې د ښکلي مخ نه پلو نور هم پورته کړم او ددې ادبي ناوې ښکلا او ښایست لوستونکو او د ادب مینه والو ته نور هم وځلوم، انشاالله د خپلې مطالعې او ژورې پرله پسې هڅې په رڼا کې په ډاډه او زغرده توګه دا کار کولای شم، خو اوس راته ناشوني ښکارېږي، ځکه چې زه د یوې ښځې او بیا خاصتاً د مور په حیث چې له یوې خوا راته ماشومان را په غاړه دي، د کور اخلی پخلی او د ورځنې ژوند کړاوونه او له بلې خوا د خپلو زده کړو په چاپېریال کې لالهانده، سرګردانه او د کتابونو د نشتوالي معضله هم ده، د امتحانونو د پرله پسې څپو هم په سر اخیستې یمه، د داسې موضوع لیکنه که له یوې ډډې ډېره دلچسپه او ښکلې هم ده، خو له بلې خوا د پورته لیکل شویو عذرونو او مجبوریتونو له مخې ما غوندې نا وزګارې

ښځې ته ډېره سخته او مشکله ده چې په دې اړه لکه څنګه چې د موضوع حق دی ډېر څه ولیکم، هیله ده زما خپل استاد به دا معذرت قبول کړي.

## د شیخ اسعد د قصیدې هنري ارزښت:

د شیخ اسعد سوري قصیده هم لکه د نورو قصیدو په شان یو مخصوص او ځانګړی هنري او فني اهمیت لري او ددې قصیدې هنري ارزښت ددې قصیدې په شروع او ترتیبولو کې پروت دی او هغه په دې ډول په ګوته کوو:

شاعر په لومړي سر کې د خپلې ویرنې په جوړولو کې د اسمان له چپه ګردش نه شکایت کوي او دی د فلک د ناخوالو او ګردش تاثیرات په کایناتو کې په ګوته کوي. ددې قصیدې لومړۍ برخه دا راښیي چې خوښۍ او خوشالۍ د قصیدې د بدیعي صنعتونو په لړۍ کې د تشبیب مقام نیولی دی، دلته شاعر د خپل اصلي هدف د ښکاره کولو او څرګندولو په ادا کې د خپل فکري قدرت او سرشاره استعداد، زور او قوت لوستونکو ته ښیي، په څو بیتونو کې دا قدرت رانغاړي، د اسمان د تېري، ظلم، ناخوالو او حرکاتو منظرې موږ ته په ګوته کوي او د خپلې قصیدې تهداب او بنسټ په ډېره هوښیارۍ او د یو مجرب استاد په حیث داسې ږدي:

د فلک له چارو څه وکړم کوکار
زمولوي هرګل چې خاندي په بهار
ډېر مخونه د فلک څپېړه شنه کا
ډېر سرونه کا ترخاورو لاندې زار

چې يې ملاوې نه کرېږي په غښتليو
دا فلک پرې وکا څه کاري ګوزار.

بيا تر دې وروسته د قصيدې اساس په تدريجي ډول تر خپل هدف پورې رارسوي، نو بيا دغه شاعر غواړي چې ددغو ظلمونو تر رابرسېره کولو او څرګندولو وروسته په خپله نېغ په نېغه له فلک سره وينا وکړي، په دغو پورته بيتونو کې شاعر غايبانه حکايت او شکايت کوي، مګر تر دې وروسته د غايب نه مخاطب ته متوجه کېږي او دا يې بل فني اهميت دی، چې اول د ګيلې او شکايت شروع له غايب نه کوي او داسې انځورنه کوي چې هغه نه شته او دده شکايت نه اوري او شاعر هم نه غواړي چې خپل شکايت د هغه غوږ ته ورسوي، مګر کله چې دده تاثير نور هم زياتېږي او زغم له لاسه ورکوي، نو لکه په يو غشي د ويشتلي زخمي انسان په ډول پر اصلي ويشتونکي باندې په ډېر جرئت ګوزار کوي او بيا فلک له غيابت نه حضور ته راولي، له هغه سره خپلې ګيلې مخامخ شروع کوي او فلک ته په څرګند ډول او جرئت سره خطاب کوي، لکه چې وايي:

څه تېری څه ظلم کاندې ای فلکه!
ستا له لاسه نه دی هيڅ ګل بې له خار
پر ويرژلو لور نه کړی په زړه کراړيه
پر تتلو وروې د غم ناتار.

دغـه نېـغ پـه نېغـه باجرئتـه مخاطبـه تقريباً تـر يوولسـو بيتـو پـوري رسېږي، پـه ډول ډول د فلک ناروا وې او جفاګانې ښکاره کوي او پـه اخره کې پـه ډېره اسـتادۍ او پـوره مهـارت خپـل مقصـد تـه مخـه او خلاصه کوي او دا مرحله پـه ډېر ادبي ډول پـه کې رانغاړي چې پـه ادبي اصـطلاح کـې ورتـه حسـن تخلـيص ويـل کېـږي، نـو ځکـه بيـا داسې وايي چې:

کلـــه غـورځـــوې واکمـــن لـــه پلازونـــو
کلـــه کښـــېنوې پـــه خـــاورو کـــې بـــادار
زمورږ پر زړونو دې نن بيا يو غشـی وويشـت
و دې ژوبللـــه پـــه دې غشـــي هـــزار
پـر سـوريو بانـدې ويـر پرېـوت لـه پاسـه
محمـــد واکمـــن چـــې ولاړ ئ پـــه بـــل دار

په پورتـه بيتونـو کې شاعر د خپـل واکمـن او بادشـاه عـدالت او ښـه کردار په ګوته کوي دا يې بل هنري ارزښت دی، خو لـه دې سره سره د خپل واکمن پر اسارت او مړينې افسوسونه کوي، لکه چې وايي:

پـه دې ويـر د غـور وګـړي تـور نمـری سـول
پـــه دې ويـــر، رڼـــا تيـــاره ســـوه د ښـــار
ګـوره ځـاځي رڼـې اوښـې لـه دې غرونـو
دا کړونګــی ســاندې لــي پــه شــور هــار.

دلتـه نو شاعر پـه مهارت او هنريت سره طبيعت ته مخه کوي، د غـور ښايسته منظرې پـه دې ويرجنـه واقعـه کې هـم نـه بې برخې کـوي او

چاپېريال د شاعر پر طبيعت داسې جلوه او رڼا پرېباسي، لکه چې وايي:

نــــه هغـــه زرغـــا د غرونـــو د بيـــديا ده
نـــــه د زرکيــــو پــــه مســـا دي کتهـــار
نــه غتهــول بيــا زرغــونېږي پــه لاښــونو
نــه بــامي بيــا مســېده کــا پــه کهســـار

همدلته ده چې شاعر د طبيعي شعر ښېګڼې ښه ترا څرګندوي. د شاعر تکيه او باور پر طبيعت باندې معلومېږي، خپل نظر پر طبيعي مناظرو باندې څرګندوي او په درد او وير کې هم خپل چاپېريال او محيط له ياده نه باسي.
شاعر يو ځل بيا د قصيدې بل اړخ انځوروي او له فلک سره داسې د زړه له سوزه ډکه وينا کوي، لکه چې وايي:

لاس دې مات شه اې فلکه! چې دې وکا
محـمد غـونـدې زمـرى د مـړينې ښکار

په لاندې بيتونو کې شاعر نور هم له ډېره قهره وينا توندوي او د وير اورني او تونـد احساسات او جذبات په خپل ادبي هنر او مهارت داسې ښکاره کوي:

شيــن زړګـى فلـکه! ولــې لاولاړ يــــې
اى د غور غـرونو پـه څه نـه سوئ غبار
چې زمري غوندې واکمن ځي له جهانه
چـې څـوک نـه کړي پر نړۍ باندې قرار

وروسته بیا شاعر خپله قصیده په بل ډول پای ته رسوي او بله نتیجه ورنه اخلي چې یو ډول ملي غرور، پښتني ننګ، غیرت او تولنیز شعور ورځنې ښکاري، لکه چې وایي:

سخ پر تا ای محمده! د غور لمر وې
پر نړۍ به نه وي ستا د عدل سار
ته په ننګه وې ولاړ په ننګ کې مړ سوې
هم پر ننګه دې پر ننګه کا ځان جار
که سوري دې په مرګ وير کاندي ويرجن سول
هم به ویاړي ستا په نوم ستا په تبار.

دا وه د شیخ اسعد سوري د قصیدې شننه او هنري اړخونه چې په لنډیز سره مو ورته نغوته وکړه.

یادونه: ددې مقالې په لیکلو او ترتیبولو کې چې مې له کومو کتابونو ګټه اخیستې، په لاندې ډول دي:

۱- د پښتو ادبیاتو تاریخ، د پوهاند عبدالحی حبیبي اثر.
۲- عرفان مجله، د پوهندوی وسیع الله احسان مقاله.
۳- پښتو ادب کې قصیده، د مرحوم پوهاند عبدالحی حبیبي لیکنه.

# مننه او کور ودانی




له ګران او قدرمن فرهنګپال ورور (محمد اقبال عزیزي) څخه ډېره مننه کوم، چې ددې کتاب د چاپ لګښت يې برابر کړ. قدرمن ورونه (ضيا الرحمن ضياء) او (وفا الرحمن وفا) په تودو ولولو او مينه ستايم، چې د تېرو څو کلونو په بهير کې يې راسره په فرهنګي چارو کې ځانونه ډېر ستړي کړل؛ له قدرمن ورور مجيب الرحمن اميري څخه هم ډېره مننه کوم، چې ددې اثر په سمون او کره کولو کې يې مرسته او همکاري وکړه. دا کتاب او دې سره نور کتابونه، چې تاسو يې اوس ګورئ، دا ټول د دوی او د دوی په شان د نورو فرهنګپالو دوستانو د مرستې او ملګرتيا برکت دی. که زما د فرهنګي ملګرو هر اړخيزه مرسته نه وای، نو خدای ج خبر، چې زما کتابونه به پر دومره وخت او پر داسې ښه چاپ شوي او د انټرنېټ څپو ته رسېدلي وای. زه په دې فرهنګي کار کې د خپلو ټولو فرهنګي ملګرو ونډه او مرسته ستايم، د لوی خدای ج له درباره ورته پر دې دنيا دژوند په نېکو چارو کې برياليتوب او پر هغې دنيا ورته ثوابونه او جنتونه غواړم.

يو ځل بيا دې د ټولو کور ودان وي.

د افغاني فرهنګ د ښېرازۍ په هيله

په درنښت

محمد اسمعيل يون